# کشف الباری

## عما فی

# صحیح البخاری

تالیف ⬅ صدر وفاق المدارس مولانا سلیم الله خان شیخ الحدیث

جامعه فاروقیه کراچۍ

# کتاب الوضوء

جلد ⑯

**خصوصیات**

- ⬅ داحادیثو تخریج
- ⬅ د تعلیقات بخاری تخریج
- ⬅ داسماء الرجال مختصر تعارف
- ⬅ د ګرانو لغاتو لغوی صرفی اونحوی حل
- ⬅ ماقبل باب سره د ربط پوره تحقیق
- ⬅ دشرحي دهرې خبرې لاندې په حاشیه کښې حواله
- ⬅ د ترجمة الباب مقصد بیانولو کښې پوره تحقیق
- ⬅ د مختلفو مذاهبو تحقیقی بیان اوبیا د مذهب حنفی ترجیح
- ⬅ د حدیث اطراف خودل

خورونکی: ⬅ فیصل کتب خانه محله جنګی پیښور

موبائل:- ۰۳۲۱۹۰۹۱۸۳۵ ........ ۰۳۱۵۹۵۹۵۷۱۷

دکتاب نوم:- کشف الباری عما فی صحیح البخاری

شارح:- صدروفاق المدارس مولاناسلیم اللہ خان

شیخ الحدیث جامعہ فاروقیہ کراچی

د ملاویدو پتې: د فیصل کتب خانه پیښور څخه علاوه

- رحیمی کتب خانه خوست -- ۰۷۹۹۱۶۱۳۱۳
- اسلامی کتب خانه خوست--
- دیوبند کتب خانه خوست-- ۰۷۹۹۸۸۶۶۸۰
- روغانیول کتب خانه جلال آباد
- دعوت کتب خانه جلال آباد --۰۷۷۶۰۹۷۹۶۵
- رشیدیه جدید کتب خانه کابل
- انتشارات نعمانیه کابل
- انتشارات علامه تفتازانی کابل۰۷۷۷۴۹۰۵۰۰--
- قدرت کتب خانه کابل --
- واحدی کتب خانه خوست
- صداقت کتب خانه کابل-- ۰۷۰۰۳۰۵۴۰۷
- مکتبة القرآن والسنة کابل
- مکتبه صدیقیه غزنی
- مکتبه فریدیه خوست
- مسلم کتب خانه جلال اباد --۰۷۷۶۰۰۶۴۱۶
- غزنوی کتب خانه غزنی -- ۰۷۴۸۵۷۵۱۹۹

خورونکی: فیصل کتب خانه محله جنګی پیښور

موبائل:- ۰۳۲۱۹۰۹۱۸۳۵ ........ ۰۳۱۵۹۵۹۵۷۱۷

# فهرست مضامين

| شميره | مضمون | صفحه |
| --- | --- | --- |

| صفحه | مضمون | شمیره |
|---|---|---|



## ② بَاب لَا تُقْبَلُ صَلَاةٌ بِغَيْرِ طُهُورٍ

| شمیره | مضمون | صفحه |
|---|---|---|

| شمیره | مضمون | صفحه |
| --- | --- | --- |

| شمیره | مضمون | صفحه |
|---|---|---|

| شمیره | مضمون | صفحه |
|---|---|---|

## ⑩ بَاب وَضْعِ الْمَاءِ عِنْدَ الْخَلَاءِ



## ⑪ بَاب لَا تُسْتَقْبَلُ الْقِبْلَةُ بِغَائِطٍ أَوْ بَوْلٍ إِلَّا عِنْدَ الْبِنَاءِ جِدَارٍ أَوْ نَحْوِهِ

| شميره | مضمون | صفحه |
| --- | --- | --- |



## ⑫ بَاب مَنْ تَبَرَّزَ عَلَى لَبِنَتَيْنِ

| شمیره | مضمون | صفحه |
|---|---|---|

| صفحه | مضمون | شميره |
|---|---|---|

## ⑰ بَاب حَمْلِ الْعَنَزَةِ مَعَ الْمَاءِ فِي الِاسْتِنْجَاءِ



## ⑱ بَاب النَّهْيِ عَنِ الِاسْتِنْجَاءِ بِالْيَمِينِ

| شميره | مضمون | صفحه |
|---|---|---|

| شمیره | مضمون | صفحه |
|---|---|---|



## (۲۱) بَابُ الْوُضُوءِ مَرَّةً مَرَّةً



## (۲۲) بَابُ الْوُضُوءِ مَرَّتَيْنِ مَرَّتَيْنِ

| شمیره | مضمون | صفحه |
|---|---|---|

## ㉓ بَابُ الْاِسْتِنْثَارِ فِي الْوُضُوءِ

# فهرس اسماء المترجم لهم فی المجلد الخامس من کشف الباری علی ترتیب حروف الھجاء

| شمیرہ | مضمون | صفحہ |
| --- | --- | --- |

| شمیره | مضمون | صفحه |
|---|---|---|
| ○ | صاعقة (انظر: محمد بن عبد الرحيم بن ابی زهير)........................ | |
| ۲۰ | عباد بن تميم بن غزية الانصاري المازنی المدنی ........................ | |
| ۲۱ | عبد الرحمن بن الاسود بن يزيد بن قيس النخعی الكوفی ابوحفص\ابوبكر........................ | |
| ۲۲ | عبد الله بن ابی بكر بن عمرو بن حزم المدنی الانصاري ابومحمد ........................ | |
| ۲۳ | عبد الله بن ابی قتادة الانصاري السلمی المدنی ........................ | |
| ۲۴ | عبد الله بن زيد بن عاصم بن كعب بن عمرو الانصاري المازنی المدنی رضی الله عنه..... | |
| ○ | عبيد الله العمري (انظر: عبيد الله بن عمر بن حفص بن عاصم) ........................ | |
| ۲۵ | عبيد الله بن عمر بن حفص بن عاصم بن عمر بن الخطاب العمري ........................ | |
| ۲۶ | عبيد الله بن ابی يزيد المكی ........................ | |
| ۲۷ | عبيد بن عمير بن قتادة بن سعد الليثی الجندعی المكی ابوعاصم واعظ مكة........................ | |
| ۲۸ | عثمان بن عفان بن ابی العاص بن امية بن عبد شمس بن عبد مناف القرشی رضی الله عنه | |
| ○ | عطاء بن ابی ميمونة (انظر: ابومعاذ) ........................ | |
| ۲۹ | عطاء بن يزيد الليثی ........................ | |
| ۳۰ | عمرو بن يحی بن سعيد بن عمرو القرشی الاموي المكی ابوامية ........................ | |
| ۳۱ | كريب بن ابی مسلم القرشی الهاشمی مولی ابن عباس ابورشدين ........................ | |
| ۳۲ | معاذ بن فضالة الزهرانی البصري ابوزيد ........................ | |
| ۳۳ | محمد بن عبد الرحيم بن ابی زهير القرشی العدوي البغدادي البزاز المعروف بصاعقة..... | |
| ۳۴ | محمد بن يحی بن حبان بن منقذ الانصاري النجاري المدنی ابوعبد الله ........................ | |
| ۳۵ | موسی بن عقبة بن ابی عياش القرشی الاسدي المدنی امام المغازي........................ | |
| ○ | منصور بن سلمة (انظر: ابوسلمة الخزاعی) ........................ | |
| ۳۶ | النضر بن شميل البصري ابوالحسن ........................ | |
| ۳۷ | نعيم المجمر ........................ | |
| ○ | نعيم بن عبد الله المجمر المدنی ابوعبد الله (انظر: نعيم المجمر) ........................ | |
| ۳۸ | واسع بن حبان بن منقذ الانصاري النجاري المدنی ........................ | |
| ۳۹ | ورقاء بن عمر بن كليب اليشكري الشيبانی الكوفی ابوبشر ........................ | |
| ۴۰ | هاشم بن القاسم الليثی البغدادي ابوالنضر........................ | |
| ۴۱ | يزيد بن هارون بن زاذان\زاذي بن ثابت السلمی الواسطی ابوخالد........................ | |
| ۴۲ | يوسف بن اسحاق بن ابی اسحاق السبيعی الكوفی........................ | |
| ○ | يوسف بن ابی اسحاق (انظر: يوسف بن اسحاق بن ابی اسحاق السبيعی الكوفی ........................ | |
| ۴۳ | يونس بن محمد بن مسلم البغدادي المؤدب ابومحمد الحرمی ........................ | |

﴿ بسم الله الرحمن الرحيم ﴾

## غرض د مرتب

﴿ الحمد لله رب العالمين، والعاقبة للمتقين، والصلاة والسلام على سيدنا محمد النبي الامين، وعلى اله وصحابته وتابعيهم ومن تبعهم باحسان الى يوم الدين. اللهم لك الحمد لا احصى ثناء عليك، انت كما اثنيت على نفسك، اللهم ما اصبح بي من نعمة او باحد من خلقك، فمنك وحدك لا شريك لك، اللهم لك الحمد ولك الشكر. اللهم لك الحمد كما ينبغي لجلال وجهك وعظيم سلطانك ﴾
د الله پاك ډير كرم او بې انتهاء فضل او احسان دې چه هغه خپل بې وسه بنده ته د كشف البارى د يو نوى جلد د ترتيب او تحقيق او تكميل توفيق وركړو.
په دې جلد كښې هم الحمد لله هم هغه ټول التزامات كړې شوې دى كوم چه په مخكښې چهاپ شوې جلدونو كښې زمونږ مخې ته وو، چونكه كتاب الوضوء دې او د فقهى مباحثو غلبه شروع شوې ده په دې وجه تفصيلات هم زيات دى او د حواله جات په اعتبار سره هم د ډير توسع نه كار اخستلې شوې دې.
د فقهى مذاهب او د هغې د دلائل په سلسله كښې حتى الامكان دا التزام كړې شوې دې چه د هر امام د مذهب په حواله جات كښې هم د هغوى د معتبر كتابونو حواله وركړې شى، خو كله كله د نورو كتابونو حواله هم وركړې شوې ده نو هغه هم د موثوق مصادر نه وركړې شوې ده.
الحمد لله: د دې جلد په پوره كار باندې هم صاحب تقرير شيخ الحديث حضرت مولانا سليم الله خان صاحب دامت بركاتهم پوره نظر تير كړې دې.
خو په هر يو كار كښې، خاص طور د تحقيق او علم په سلسله كښې دا دعوى نه شى كيدې چه په دې كښې هيڅ غلطى، خامى يا كمې نه دې پاتې شوې، په دې وجه اهل علم ته خواست دې چه څه قسم غلطى يا خامى هم هغوى ته په نظر راشى نو ضرور دې مونږ ته خبر راكړى، هم دغه شان كه د كتاب په ظاهرى يا معنوى ښكلا كښې د اضافې دپاره څه تجويز وى نو هغه دې هم ضرور پيش كړى، مونږ ته به انشاء الله د غور او فكر كولو نه پس په قبلولو او د خپلې خامې او كوتاهې په اصلاح كولو كښې هيڅ تامل نه وى.
هسې خو په كشف البارى باندې كار ډير په تيزئ سره شروع دې او په اهل علم كښې چه كوم مقبوليت دې كتاب ته حاصل دې هغه د نمر نه زيات روښانه دې خو د ټولو انتهائى خواهش دې چه دا كتاب د شيخ محترم دامت بركاتهم په ژوند باندې د تكميل د مراحل نه تيريدو سره د طباعت په كالو باندې ډولى شى.
دعا اوكړئ چه الله پاك دحضرت شيخ صاحب په عمر كښې د عافيت تامه سره بركات وركړى او د دې كار د پوره كولو اسان توفيق راكړى.
د دې جلد د تكميل په سلسله كښې زه عاجز. د عزيز گرامى مولانا حبيب زكريا صاحب (استاذ جامعه فاروقيه كراچى، عزيزم مفتى مبارك على صاحب (استاذ جامعه فاروقيه كراچى) او د عزيزم مولوى عطاء الله رفيع سلّمهم الله تعالى شكر گزار يم چه دې حضراتو راسره

د كمپوزنگ او پروف ريډنگ په سلسله كښې انتهائى تعاون اوكړو، الله پاك دې ورته بهترين جزاء خير وركړى.

په اخر كښې دعا كوم چه الله پاك دې دا عمل د شيخ مدظلهم، ما عاجز، زما د مور او پلار، استاذانو او ټولو متعلقينو او ملګرو دپاره د نجات ذريعه او د اخرت ذخيره جوړه كړى او دې عمل ته دې قبول عام وركړى. آمين

**وكتبه: نور البشر محمد نور الحق**

استاذ الحديث وعلومه بالجامعة الفاروقية كراچى

ومدير معهد عثمان بن عفان رضي الله عنه

## يو وضاحت:

په دې تقرير كښې مونږ چه د صحيح بخارى كومه نسخه د متن په طور استعمال كړې ده په هغې باندې ډاكټر مصطفى ديب البغا تحقيقى كار كړې دې ډاكټر مصطفى ديب په احاديثو باندې د نمبر لګولو سره سره د احاديث د مواضع متكرره ښودلو التزام هم كړې دې. كه يو حديث روستو راتلونكې دې نو د حديث په اخر كښې په نمبرو سره د هغې ښودنه كوى چه په دې نمبر باندې دا حديث راروان دې، او كه حديث تير شوې وى نو د نمبر نه مخكښې (ر) لګوى. يعنى د هغه نمبر طرف ته دې رجوع اوكړې شى.

★★★★★★★★★★

﴿ بسم الله الرحمن الرحيم ﴾

# ④ كتاب الوضوء

**ترتيب كتب**: امام بخاري رحمه الله د ټولو نه اول ايمانيات ذكر كړل، ځكه چه هيڅ عمل او فعل بغير د ايمان نه مقبول نه دي، د هغې نه روستو ئې د كتاب العلم ذكر كړې دى، د هغې د مخكښې كولو وجه دا ده چه د علم نه روستو عمل صحيح كيږي، په دې وجه د علم احكام، د هغې مصالح، فضائل او آداب ئې بيان كړل، د هغې نه روستو ئې بيا احكام بيان كړې دى.
په احكاماتو كښې د ټولو نه مقدم عبادات دى او په عباداتو كښې د ټولو نه اهم مونځ دې، په دې وجه ئې هغه د ټولو نه مخكښې ذكر كړو، چونكه د مانځه دپاره طهارت شرط دې او په طهارت كښې اودس او د غسل ډير مسائل دى او بيا طهارت شرط دې، صلاة مشروط دې او شرط په مشروط باندې مقدم وى، په دې وجه مؤلف رحمه الله د كتاب العلم نه پس د طهارت بحثونه راوړې دى. (۱)

**د نسخو اختلاف**: بيا دلته په بعض نسخو كښې عنوان كتاب الوضوء دې او په بعض نسخو كښې كتاب الطهارة دى. علامه عينى او شيخ الاسلام زكريا انصارى رحمهما الله د كتاب الطهارة والا نسخې ته أنسب وئيلې ده.(۲)

د دې وجه دا ده چه امام بخارى رحمه الله د اودس مسائل او د هغې د ابواب د لاندې د استنجاء مسائل هم ذكر كړې دى كه د اودس عنوان واخستلې شى نو استنجاء په اودس كښې نه شى داخلولې، مگر دا چه دا په اودس كښې تبعا داخل اومنلې شى.

او كه د طهارة عنوان اومنلې شى نو بيا د هيڅ قسم توجيه ضرورت نه پاتې كيږي، ځكه چه اودس يو قسم طهارت دې. هم دغه شان استنجاء هم يو قسم طهارت دې. يو طهارت من الاحداث دې او بل طهارت من الاخباث والانجاس دې.

خو راجح دا معلوميږي چه دلته د كتاب الوضوء والا نسخه اصح ده، ځكه چه امام بخارى رحمه الله وړاندې د كتاب الغسل، كتاب التيمم، كتاب الحيض وغيره تراجم منعقد كړې دى، كه دلته د طهارت عنوان وې نو وړاندې ټول عنوانات به په هغې كښې داخل وې، د مستقل كتاب عنوان راوړلو سره د هغې د شروع كولو څه ضرورت وو؟

پاتې شو د استنجاء مسائل، نو مؤلف د قدماء په طرز باندې د اودس او استنجاء مسائل يو ځائې ذكر كړې دى، ځكه چه په دې دواړو كښې تلازم شان دې، انسان اول عام طور استنجاء كوى او د هغې نه روستو اودس كوى او چونكه د استنجاء نه فورا پس اودس كول وى، په دې وجه د اودس د اوبو د حصول التزام د مخكښې نه كوى، په دې وجه حضرات قدماء د اودس سره د استنجاء مسائل هم تبعا ذكر كوى. والله اعلم

---

۱) عمدة القارى ج ۲ ص ۲۲۵
۲) عمدة القارى ج ۲ ص ۲۲۵، وتحفة البارى ج ۱ ص ۱۴۸

د لفظ ﴿وضوء﴾ تحقيق: دا لفظ د ﴿وضاءة﴾ نه مشتق دې، ﴿وَضُؤَ، يوضُؤُ، وَضَاءةً﴾ معنى ئې ده حسن او نظافت. (۱)

لفظ ﴿وُضُوْ﴾ د واؤ په ضمې سره، د مصدر په طور استعماليږي او د واؤ په فتحې سره ئې په هغه اوبو باندې اطلاق كيږي چه په كومو باندې اودس كولې شى.

بعض حضراتو ﴿وَضُوْ﴾ بالفتح ته هم مصدر وئيلې دې او وئيلې ئې دى چه دا هم د ﴿قبول﴾ او ﴿ولوع﴾ په شان بفتح الفاء دې او درې واړه مصادر دى.

ابو عمرو بن العلاء خو د ﴿وُضُوْ﴾ بضم الواو انكار كوى، پس امام اصمعى د هغه نه تپوس اوكړو چه ﴿ما الوضوء بالفتح؟﴾ يعنى د ﴿وضوْ﴾ بفتح الواؤ څه معنى ده؟ نو هغوى جواب وركړو چه ﴿الماء الذى يتوضاء به﴾ يعنى په كومو اوبو سره چه اودس كولې شى هغې ته ﴿وَضوْ﴾ وئيلې شى.

او چه كله ئې د هغوى نه تپوس اوكړو چه ﴿فالوضوء بالضم؟﴾ يعنى ﴿وُضوْ﴾ بضم الواؤ څه څيز دې؟ تو هغوى اوفرمائيل چه ﴿لا اعرفه﴾ يعنى زه بضم الواؤ نه پيژنم.

او امام اخفش د الله پاك د ارشاد ﴿وَقُودُهَا النَّاسُ وَالْحِجَارَةُ﴾ په تفسير كښې فرمائى:

﴿ الوَقُودُ بالفتح الحَطَبُ والوُقُود بالضم الاتِّقادُ وهو المصدر قال ومثل ذلك الوَضُوْ وهو الماء والوُضُوْ وهو المصدر ثم قال وزعموا أنهما لغتان بمعنى واحد يقال الوَقُودُ والوُقُودُ يجوز أن يُعْنَى بهما الحَطَبُ ويجوز أن يُعنى بهما المصدر ﴾.

ترجمه: ﴿وَقود﴾ په فتح د واؤ سره د سيزلو لرګى ته وئيلې شى، او ﴿وُقود﴾ په ضم د واؤ سره سوزيدلو ته وئيلې شى كوم چه مصدر دې. هم دغه شان ﴿وَضوْ﴾ (بفتح الواؤ) اوبو ته وئيلې شى او ﴿وُضوْ﴾ (بضم الواؤ) مصدر دې. هم دغه شان هغه فرمائى چه بعض خلقو وئيلې دى چه دا په يوه معنى كښې دوه لغتونه دى، پس د ﴿وَقود﴾ او ﴿وُقود﴾ دواړو اطلاق كولو سره د دواړو نه د سيزلو لرګې هم مراد اخستلې شى او دا هم ممكن ده چه دواړه مصدر اومنلې شى. (۲)

علامه عينى فرمائى چه په ﴿وضوْ﴾ كښې درې لغات دى:

يو دا چه ﴿بضم الواؤ اسم للفعل، وبفتحها اسم للماء الذى يتوضاء به﴾ يعنى د واؤ په ضمې سره د مصدر په معنى دې او په فتحې سره هغه اوبو ته وئيلې شى په كومو باندې چه اودس كولې

---

۱) مختار الصحاح ص ۷۷۶

۲) اوګورئ لسان العرب ج ۱۵ ص ۳۲۲، مادة: وضء وتاج العروس ج ۱ ص ۴۹، ۴۹۱)، مادة: وضاء

شي. دا ټول مشهور لغات دي او ابن الانباری رحمه الله د اکثر اهل لغت نه هم دا خبره نقل کړې ده

بل لغت دې ﴿ بفتح الواؤ فيهما ﴾ يعنی دواړه په معنی کښې د واؤ په فتحې سره اولوستلې شي، دا د ډيرو حضراتو قول دې، چه په هغوی کښې خليل بن احمد هم دې او د هغوی وينا ده چه د واؤ په ضمې سره خو معروف هم نه دې.

دريم لغت کوم چه يو غريب قول دې کوم چه صاحب د مطالع نقل کړې دې چه په دواړو کښې به ئې د واؤ په ضمې سره لولو. (۱)

## ① بَاب مَا جَاءَ فِي الْوُضُوءِ

وَقَوْلِ اللَّهِ تَعَالَى : إِذَا قُمْتُمْ إِلَى الصَّلَاةِ فَاغْسِلُوا وُجُوهَكُمْ وَأَيْدِيَكُمْ إِلَى الْمَرَافِقِ وَامْسَحُوا بِرُءُوسِكُمْ وَأَرْجُلَكُمْ إِلَى الْكَعْبَيْنِ ﴿ قَالَ أَبُو عَبْدِ اللَّهِ وَبَيَّنَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّ فَرْضَ الْوُضُوءِ مَرَّةً مَرَّةً وَتَوَضَّأَ أَيْضًا مَرَّتَيْنِ وَثَلَاثًا وَلَمْ يَزِدْ عَلَى ثَلَاثٍ وَكَرِهَ أَهْلُ الْعِلْمِ الْإِسْرَافَ فِيهِ وَأَنْ يُجَاوِزُوا فِعْلَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ﴾

د علامه دیامطی رحمه الله په اصل کښې ﴿ باب ما جاء في الوضوء وقول الله عزوجل ﴾ واقع دې.

د کريمه په روايت کښې ﴿ باب في الوضوء وقوله عزوجل ﴾ راغلې دې.

د اصيلی په روايت کښې ﴿ کتاب الوضوء، باب ما جاء في قول الله عزوجل ﴾ راغلې دې. (۲)

**په شروع کښې د ايت مباركه راوړلو وجه** : امام بخاری رحمه الله دا آيت کريمه بالکل په شروع کښې په دې وجه ذکر کړې دې چه دا اودس د احکاماتو اصل او بنياد دې او د امام بخاری رحمه الله عادت دا دې چه د مسائلو د اثبات دپاره د ټولو نه اول قران کريم لره پيش کوی، ګويا دې خبرې طرف ته اشاره کوی چه اصل مسئله د قران کريم نه ثابت ده او د هغې توضيحات او تفصيلات په احاديثو کښې راغلې دی.دلته امام بخاری رحمه الله هم ددې خبرې لحاظ ساتلې دې. اصل او قاعده دا ده چه ترجمه په منزله د دعوی سره وی او آيت او روايت د هغې دليل وی او دليل د مدلول نه پس، حجت د دعوی نه پس راځی، خو مؤلف رحمه الله د آيت کريمه په اصالت باندې نظر کولو سره هغه په شروع کښې اوليکلو.

او دا هم وئيلې کيدې شی چه په بخاری شريف کښې د ﴿ کتاب الوضوء ﴾ عنوان دې، په دې عنوان کښې مصنف رحمه الله ګويا دا دعوی اوکړه چه اودس يو حکم شرعی دې، دا ئې د آيت کريمه په ذريعه مدلل کړو او آيت ئې روستو راوړو.

**د ايت کريمه جامعيت** : ابن العربی رحمه الله چه د دې آيت کريمه د لاندې د کومو مباحثو ذکر کړې دې د هغې تعداد دوه پنځوس دې. (۳)

---

۱) عمدة القاری ج ۲ ص ۲۲۵

۲) اوګورئ : عمدة القاری ج ۲ ص ۲۲۵، وفتح الباری ج ۱ ص ۲۳۲

۳) اوګورئ : احکام القران لابن العربی ج ۲ صفحه ۵۵۷ تا ۵۸۵

ابن العربی رحمه الله فرمائي چه بعض علماء کرام فرمائي چه د دې آيت کريمه نه زر مسائل مستنبط کيږي، هم دغه شان فرمائي چه زمونږ اصحاب مدينة الاسلام (بغداد) کښې راجمع شو او د دې آيت کريمه نه ئې مسائل راويستل شروع کړل نواته سوه مسئلې ئې ترې راويستلې.(۱)

**د ايت کريمه په مفهوم کښې د علماء کرامو اختلاف :** دلته امام بخاری رحمه الله چه د ﴿ ما جاء فی الوضوء وقول الله تعالى ... ﴾ راوړلو سره د آيت کريمه په معنى کښې چه کوم اختلاف دې هغې ته اشاره کړې ده.

حاصل د هغې دا دې چه د آيت کريمه اطلاق دې خبرې لره کيدل پکار وو چه کوم انسان هم د مانځه دپاره اودريږی نو د هغه په ذمه باندې اودس واجب دې پس د بعض ظاهريه هم دا مسلك بيانولې شی. (۲)

بعض علماء کرامو د سيدنا ابن عمر رضي الله عنهما نه هم دغه شان نقل کړې دی. پس د سيدنا ابن عمر رضي الله عنهما په باره کښې روايت دې چه کله د هغوی مخکښې د رسول الله صلی الله علیه وسلم دا عمل ذکر کړې شو چه رسول الله صلی الله علیه وسلم د هر مانځه دپاره د اودس حکم ورکړې وو، برابره خبره ده که د اودس په حالت کښې وی او که نه وی، بيا چه کله هغوی ته دا عمل گران شو نو د هر مانځه په موقع ئې د مسواك حکم ورکړو. نو سيدنا ابن عمر رضي الله عنهما چونکه په اول کښې دا گڼرله چه زه به دا اول عمل په دوام سره اوکړې شم، په دې وجه به هغوی د هيڅ مانځه دپاره تازه اودس کول نه پريخودل.(۳)

هم دغه شان خبره دحضرات خلفاء راشدين رضي الله عنهم نه هم نقل کولې شی.(٤)

خو حقيقت دا دې چه کومو صحابه کرام رضي الله عنهم د هر مانځه دپاره د اودس اهتمام کړې وو هغه په دې وجه باندې نه وو چه که د انسان اودس وی يا نه وی، په هرحال کښې اودس واجب دې، بلکه دې حضرات په اولی، اعلی او اکمل باندې عمل کولو. (۵)

او ظاهره دا ده چه په صحابه کرامو رضي الله عنهم کښې د هر مانځه دپاره د اودس د واجب کيدو قائل څوك هم نه وو او دا څنگه کيدې شی چه هر کله د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه په يو اودس سره څو څو مونځونه کول منقول دی!

پس په صحيح بخاری کښې د سيدنا سويد بن النعمان رضي الله عنه روايت دې چه!

---

۱) احکام القران ج ۲ ص ۵۵۸

۲) عمدة القاری ج۲ ص ۲۳۰، اوجزالمسالک ج۱ ص ۳۶۵، کتاب الطهارة، باب وضوء النائم اذا قام الی الصلاة

۳) اوگورئ: سنن ابی داؤد کتاب الطهارة باب السواک رقم ٤٨

٤) اوگورئ عمدة القاری ج ۲ ص ۲۳۱

۵) پس د سيدنا ابن عمر رضي الله عنهما نه ابو عظيف هذيلی تپوس اوکړو : ﴿ الوضوء عند كل صلاة؟ ﴾ نو هغوی اوفرمائيل ﴿ ليست بسنة، ان كان لكاف وضوئی لصلاة الصبح صلواتی كلها ما لم احدث، ولكنی سمعت رسول الله صلی الله علیه وسلم يقول: من توضاء علی طهر كتب الله له بذلک عشر حسنات، ففی ذلک رغبت يا ابن اخی. شرح معانی الاثار ج ۱ ص ۸۷ مع نثر الازهار، کتاب الطهارة، باب الوضوء هل يجب لكل صلاة ام لا؟

﴿أَنَّهُ خَرَجَ مَعَ رَسُولِ اللهِ صلى الله عليه وسلم عَامَ خَيْبَرَ حَتَّى إِذَا كَانُوا بِالصَّهْبَاءِ - وَهِيَ أَدْنَى خَيْبَرَ - فَصَلَّى الْعَصْرَ ثُمَّ دَعَا بِالأَزْوَادِ فَلَمْ يُؤْتَ إِلاَّ بِالسَّوِيقِ فَأَمَرَ بِهِ فَثُرِّيَ فَأَكَلَ رَسُولُ اللهِ صلى الله عليه وسلم وَأَكَلْنَا ثُمَّ قَامَ إِلَى الْمَغْرِبِ فَمَضْمَضَ وَمَضْمَضْنَا ثُمَّ صَلَّى وَلَمْ يَتَوَضَّأْ﴾(۱)

**يعنى** : رسول الله ﷺ د خيبر په كال باندې اوتلو، چه كله مقام صهباء ته اورسيدو كوم چه خيبر ته نژدې دې نو رسول الله ﷺ د مازيګر مونځ اوكړو چه رسول الله ﷺ د خوراك طلب اوكړو نو هغوى ته صرف ستوان پيش كړې شو هغه لوندولو سره رسول الله ﷺ هم اوخوړل او مونږ هم، بيا رسول الله ﷺ د ماښام د مانځه دپاره پاسيدو خوله مباركه ئې كنګال كړه او مونږ هم خوله كنګال كړه، مونځ ئې اوكړو او اودس ئې اونكړو.

هم دغه شان امام مسلم رحمه الله وغيره د سيدنا بريده رضي الله عنه د حديث تخريج فرمائيلې دې چه په هغې كښې ذكر دى چه رسول الله ﷺ د فتح مكه په ورځ باندې ټول مونځونه په يو اودس سره ادا فرمائيلې وو. (۲)

د سيدنا انس رضي الله عنه نه هم روايت دې : ﴿يجزئ احدنا الوضوء مالم يحدث﴾(۳)

**يعنى** ترڅو چه بې اودسى نه وى راغلې تر هغې پورې زمونږ دپاره يو اودس هم كافى دې.

بهر حال چه كله دا معلومه شوه چه آيت كريمه په خپل ظاهر باندې نه دې او د هر مانځه دپاره اودس فرض نه دې نو په دې آيت كريمه كښې به د توجيه پيش كولو ضرورت راځي.

پس علماء كرامو مختلف توجيهات كړې دى د ټولو نه مشهوره توجيه دا ده چه دلته تقدير د كلام دې : ﴿اذا قمتم الى الصلاة وانتم محدثون يا اذا قمتم الى الصلاة محدثين﴾(٤)

**يعنى** : كله چه تاسو مانځه ته په داسې حال كښې پاسئ چه تاسو د حدث په حالت كښې يئ.

امام نووى رحمه الله د قاضى عياض رحمه الله نه نقل كولو سره ليكى :

﴿وعلى هذا اجمع اهل الفتوى بعد ذلك، ولم يبق بينهم فيه خلاف﴾(۵)

**يعنى** : په دې باندې د ټولو اهل فتوى اتفاق راغلو او د هغوى ترمينځه هيڅ اختلاف پاتې نه شو.

امام دارمى رحمه الله هم دا خبره اختيار كړې ده او هغوى په دليل كښې د سيدنا بريده رضي الله عنه حديث

---

۱) صحيح البخارى ج ۱ ص ۳٤، كتاب الوضوء، باب من مضمض من السويق ولم يتوضاء رقم (۲۰۹)
۲) صحيح مسلم، كتاب الطهارة، باب جواز الصلوات كلها بوضوء واحد، رقم ۶٤۲ وسنن ابى داؤد، كتاب الطهارة، باب الرجل يصلى الصلوات بوضوء واحد، رقم ۱۷۲، وسنن النسائى كتاب الطهارة باب الوضوء لكل صلاة رقم ۱۳۳، وجامع الترمذى، ابواب الطهارة، باب ما جاء انه يصلى الصلوات بوضوء واحد، رقم (۶۱)، وسنن ابن ماجه كتاب الطهارة باب الوضوء لكل صلاة والصلوات كلها بوضوء واحد رقم ۵۱۰
۳) صحيح البخارى ج ۱ ص ۳٤، كتاب الوضوء، باب الوضوء من غير حدث رقم: ۲۱٤
٤) عمدة القارى ج ۲ ص ۲۳۰
۵) شرح النووى على صحيح مسلم ج ۱ ص ۱۱۹، كتاب الطهارة، باب وجوب الطهارة للصلاة.

پیش کړې دي چه رسول الله ﷺ به د هر مانځه دپاره اودس فرمائیلو چه کله د فتح مکه ورځ راغله نو ټولو مونځونه ئي په یو اودس سره ادا کړل او مسح علی الخفین ئي هم اوفرمائیله، په دې موقع باندې سیدنا عمر رضی الله عنه عرض اوکړو، تاسو نن داسې کار اوکړو په کوم باندې چه ما تاسو د دې نه مخکښې نه یئ لیدلې؟ رسول الله ﷺ ارشاد اوفرمائیلو اې عمره! ما عمدا داسې کړې دی. (۱)

امام دارمی رحمه الله فرمائی : ﴿ فدل فعل رسول الله ﷺ ان معنی قول الله تعالی ﴿ إِذَا قُمْتُمْ إِلَى الصَّلٰوةِ فَاغْسِلُوْا وُجُوْهَكُمْ ﴾ (الایة) لکل محدث، لیس للطاهر ﴾ (۲)

**یعنی** : د رسول الله ﷺ د فعل نه دا خبره معلومیږی چه د الله پاك ارشاد ﴿ إِذَا قُمْتُمْ إِلَى الصَّلٰوةِ ﴾ د هر محدث سره دې د طاهر سره نه دې.

هم دغه شان هغوی فرمائی : ﴿ ومنه قول النبی صلی الله علیه وسلم لا وضوْ الا من حدث ﴾ (۳)

**یعنی** : د رسول الله ﷺ ارشاد ﴿ لا وضوْ الا من حدث ﴾ تعلق هم دې سره دې.

امام مالك رحمه الله وغیره د امام زید بن اسلم رحمه الله نه نقل کړی دی چه د دې معنی ده : ﴿ اذا قمتم من النوم ﴾ (٤)

امام نسائی رحمه الله هم دې طرف ته اشاره کړې ده، پس هغوی په سنن نسائی کښې ترجمه منعقد کړې ده ﴿ باب فی قول الله عزوجل ﴿ إِذَا قُمْتُمْ إِلَى الصَّلٰوةِ ﴾ ﴾ د هغې د لاندې ئي د سیدنا ابوهریره رضی الله عنه حدیث ﴿ إِذَا اسْتَيْقَظَ أَحَدُكُمْ مِنْ نَوْمِهِ فَلَا يَغْمِسْ يَدَهُ فِي وَضُوئِهِ حَتَّى يَغْسِلَهَا ثَلَاثًا، فَإِنَّهُ لَا يَدْرِي أَيْنَ بَاتَتْ يَدُهُ ﴾ (۵) (یعنی : رسول الله ﷺ فرمائی چه کله په تاسو کښې څوك د خوب نه پاسی نو خپل لاس دې د اودس په اوبو کښې نه وردننه کوی ترڅو پورې چه ئي هغه درې کرته وینځلې نه وی ځکه چه په تاسو کښې چاته هم نه ده معلومه چه د هغه لاس چرته شپه تیره کړې ده) تخریج فرمائیلې دې ګویا امام نسائی رحمه الله دې خبرې طرف ته اشاره اوفرمائیله چه دا آیت کریمه په مستیقظ من النوم باندې محمول دې.

د بعض علماء کرامو رائې دا ده چه د محدث په حق کښې دا حکم ایجابی دې او د غیر محدث په حق کښې دا حکم استحبابی دې. (۶)

---

۱) اوګورئ : سنن الدارمی ج ۱ ص ۱۷۶، کتاب الطهارة باب قوله تعالی ﴿ إِذَا قُمْتُمْ إِلَى الصَّلٰوةِ فَاغْسِلُوْا وُجُوْهَكُمْ (رقم ۶۵۹)

۲) ایضا

۳) ایضا

٤) اوګورئ : موطاء امام مالک (مع شرحه اوجز المسالک ج ۱ ص ۳۶٤)، کتاب الطهارة، باب وضوء النائم اذا قام الی الصلاة.

۵) سنن النسائی، کتاب الطهارة، باب تاویل قوله عزوجل : اذا قمتم الی الصلاة ... رقم ۱.

٦) اوګورئ : فتح الباری ج ۱ ص ۲۳۲، وتفسیر ابن کثیر ج ۲ ص ۲۱

خو علامه سيد محمودى آلوسى رحمه الله صاحب روح المعانى دا خبره رد كړي ده (۱) هم دغه شان د احنافو د اصولو مطابق خو دا قول دي ګران، ځکه چه د يو لفظ نه په يو وخت کښ دوه معاني مراد اخستل د احنافو په نزد جائز نه دي.(۲)

د بعض حضراتو رائې دا ده چه په شروع کښ د هر مانځه دپاره اودس کول فرض وو. د هغې نه روستو منسوخ شو. (۳)

امام طحاوى رحمه الله احتمالا دا توجيه کړي ده، پس هغوى فرمائى.

﴿وقد يجوز ايضا ان يكون كان يفعل ذلك وهو واجب، ثم نسخ﴾(٤)

**يعنى** دا احتمال هم دې چه رسول الله ﷺ به د هر مانځه دپاره هغه وخت اودس کولو چه داسې کول واجب وو، بيا دا حکم منسوخ شو.

د دې تائيد د سيدنا عبدالله بن حنظله رضي الله عنه د روايت نه کيږي. ﴿أَنَّ رَسُولَ اللهِ صلى الله عليه وسلم أُمِرَ بِالْوُضُوءِ لِكُلِّ صَلَاةٍ طَاهِرًا وَغَيْرَ طَاهِرٍ فَلَمَّا شَقَّ ذٰلِكَ عَلَيْهِ أُمِرَ بِالسِّوَاكِ لِكُلِّ صَلَاةٍ﴾(۵)

**يعنى**: رسول الله ﷺ ته د هر مانځه دپاره د اودس کولو حکم ورکړې شوې وو، که د مخکښ نه به ئې اودس وو او که به نه وو. چه کله په هغوى باندې دا عمل ګران شو نو د هر مانځه دپاره ورته د مسواك حکم اوکړې شو.

خو امام نووى رحمه الله د دې قول نقل کولو نه پس ليکلي دى چه ﴿وهذا القول ضعيف﴾(٦) يعنى د وجوب قول اختيارولو سره د هغې د منسوخ منلو بالکل ضرورت نشته، بله دا چه سورة مائده د نزول په اعتبار سره بالکل د اخر زمانې په سورتونو کښ دې، ظاهره دا ده چه په دې کښ نسخ نه ده واقع شوې. (۷) په دې وجه دا قول ضعيف دې.

بعض علماء کرام فرمائى چه په اصل کښ رسول الله ﷺ به په شروع کښ مونځ، اذکار او تلاوت د ټولو دپاره اودس کولو، ترديې چه د سلام د جواب ورکولو دپاره به ئې هم اودس يا تيمم کولو، الله پاك د اودس آيت کريمه نازولو سره دا عموم ختم کړو او دا ئې اوخودل چه صرف د مانځه دپاره اودس واجب دې، د ذکر او سلام وغيره دپاره اودس واجب نه دې.

پس په معجم کبير د امام طبرانى رحمه الله کښ روايت دې، کوم چه د سيدنا علقمه بن الفغواء رضي الله عنه نه نقل دې چه: ﴿كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا أَهْرَاقَ الْمَاءَ فَنُكَلِّمُهُ فَلَا يُكَلِّمُنَا،

---

۱) اوګورئ: روح المعانى ج ۶ ص ۶۹

۲) اوګورئ: مسلم الثبوت بشرحه فواتح الرحموت ج ۱ ص ۱۶۵ تا ۱۶۷

۳) شرح النووى على صحيح مسلم ج ۱ ص ۱۱۹، كتاب الطهارة، باب وجوب الطهارة للصلاة.

٤) اوګورئ شرح معانى الاثار مع نثر الازهار ج ۱ ص ۸۷، كتاب الطهارة، باب : الوضوء هل يجب لكل صلاة ام لا ؟

۵) السنن لابى داؤد، كتاب الطهارة، باب السواک رقم ٤٨، وشرح معانى الاثار مع نثر الازهار ۱۱/۸۸.

٦) شرح النووى على صحيح مسلم ج ۱ ص ۱۳۵، كتاب الطهارة، باب جواز الصلوات كلها بوضوء واحد.

۷) اوګورئ: تفسير البيضاوى مع شرحه للشيخ زاده ج ۲ ص ۹۶، سورة المائده

وَنُسَلِّمُ عَلَيْهِ فَلا يَرُدُّ عَلَيْنَا حَتَّى يَأْتِيَ مَنْزِلَهُ فَيَتَوَضَّأُ وُضُوْءَهُ لِلصَّلاةِ قُلْنَا: يَا رَسُولَ اللهِ نُكَلِّمُكَ فَلا تُكَلِّمُنَا، وَنُسَلِّمُ عَلَيْكَ فَلا تَرُدُّ عَلَيْنَا؟، قَالَ: حَتَّى نَزَلَتْ آيَةُ الرُّخْصَةِ "يَاأَيُّهَا الَّذِيْنَ آمَنُوْا إِذَا قُمْتُمْ إِلَى الصَّلٰوةِ" [المائدة آية ٦] (١)

**يعني**: رسول الله ﷺ چه به كله د قضاء حاجت نه فارغ شو نو مونږ به د هغه سره خبرې كولې، خو هغوى به خبرې نه كولې، ترڅو چه به ئې كور ته راتلو سره اودس نه وو كړې، مونږ عرض اوكړو يا رسول الله ﷺ دا څه خبره ده چه مونږ تاسو سره خبرې كوو؟ او تاسو جواب نه راكوئ او مونږ تاسو ته سلام اوكړو او تاسو د سلام جواب نه راكوئ؛ ترديې چه د رخصت آيت كريمه ﴿يَاأَيُّهَا الَّذِيْنَ آمَنُوْا إِذَا قُمْتُمْ إِلَى الصَّلٰوةِ﴾ نازل شو.

خو دا روايت ضعيف دې (٢) ځكه چه د جابر جعفى په طريق سره نقل دې او جابر جعفى صرف ضعيف نه دې بلكه متهم بالكذب هم دې.

امام ابو حنيفه رحمه الله فرمائى: ﴿ما رأيت احدا اكذب من جابر الجعفى﴾ (٣)

**يعني**: ما د جابر جعفى نه لوئې دروغژن نه دې ليدلې.

د امام ابو حنيفه رحمه الله دا كلام امام ترمذى رحمه الله نقل كړې دې، خو د هندوستان او پاكستان په عام نسخو كښې نشته، خو د مصر په مطبوعه نسخو كښې شته. والله تعالى اعلم

**اودس لره واجبونكې څه څيز دې؟**: د علماء كرامو په دې كښې اختلاف دې؛

د شوافع قول دا دې چه د اودس واجبونكې حدث دې. دويم قول ئې دا دې چه د اودس واجبونكې ﴿قيام الى الصلاة﴾ دې. دريم قول ئې دا دې چه د حدث او ﴿قيام الى الصلاة﴾ دواړو مجموعه ئې واجبونكې دې.

امام نووى رحمه الله هم دې قول ته د شوافع رحمهم الله په نزد راجح وئيلې ده. (٤)

د حافظ ابن حجر رحمه الله د صنيع نه معلوميږى چه هغوى ﴿قيام الى الصلاة﴾ ته ترجيح وركوى. (٥)

پس هغوى د دې په تائيد كښې د سيدنا ابن عباس رضي الله عنهما حديث نقل كړې دې كوم چه اصحاب السنن روايت كړې دې.

---

١) المعجم الكبير للطبرانى ج ٦ ص ١٨، ومجمع الزوائد ج ١ ص ٢٧٦، كتاب الطهارة، باب قراءة الجنب رقم ١٥١٠. واحكام القران للجصاص ج ٢ ص ٣٢٩.

٢) قال الهيثمى رحمه الله وفيه جابر الجعفى وهو ضعيف. مجمع الزوائد ج ١ ص ٢٧٦. كتاب الطهارة باب قراءة الجنب.

٣) كتاب العلل (اخر جامع الترمذى، نسخة احمد شاكر وصاحبيه) ج ٥ ص ٧٤١، وشرح علل الترمذى لابن رجب ج ١ ص ٦٩ (بتحقيق نور الدين عتر)

٤) د تفصيل دپاره اوګورئ: شرح النووى على صحيح مسلم ج ١ ص ١١٩، كتاب الطهارة، باب وجوب الطهارة للصلاة، وعمدة القارى ج ٢ ص ٢٣١، وفتح البارى ج ١ ص ٢٣٢، والمجموع ج ١ ص ٤٦٦.

٥) فتح البارى ج ١ ص ٢٣٢

﴿ خَرَجَ مِنَ الْخَلَاءِ فَقُرِّبَ إِلَيْهِ طَعَامٌ فَقَالُوا أَلَا نَأْتِيكَ بِوَضُوءٍ قَالَ : إِنَّمَا أُمِرْتُ بِالْوُضُوءِ إِذَا قُمْتُ إِلَى الصَّلَاةِ ﴾ (۱)

**یعنی** : رسول الله ﷺ د بیت الخلاء نه راوتلو او د هغوی مخکښ خوراك کیخودلې شو، صحابه کرامو ﷺ تپوس اوکړوچه ایا مونږ تاسوته د اودس دپاره اوبه راوړو؟ رسول الله ﷺ اوفرمائیل : ماته خود اودس حکم هغه وخت راکړې شوې دې چه کله زه مانځه ته اودریږم.

د حافظ ابن حجر رحمه الله په اختیار کړی قول باندې دا شکال واردیږی چه د دې نه دا لازمیږی چه کله هم انسان د مانځه دپاره اودریږی نو اودس به کوی، حال دا چه د جمهور علماء کرامو په نزد په هر قائم الی الصلاة باندې اودس فرض نه دې.

د دې جواب دا ورکړې کیدې شی چه د آیت کریمه تقاضه خو هم دا ده چه د هر مانځه دپاره اودس ضروری وی، خو د آیت کریمه تعلق د محدث سره دې، ځکه چه په متوضی کښ یو مانع موجود دې، کوم چه په هغه باندې دا حکم عائد کیدو ته نه پریږدی، هغه مانع د هغه متوضی زائل الحدث کیدل دی، ځکه چه د اودس حکم دحدث د ازالې د وجې نه دې. والله اعلم

خو د دې جواب حاصل بیا دا راوتلو چه اصل سبب خو ئې حدث دې. والله اعلم

په احنافو کښ صاحب محیط رحمه الله فرمائی چه د اودس سبب موجب ﴿ ارادة الصلاة بشرط الحدث ﴾ دې. (۲)

د دې معنی دا هم کیدې شی چه د دواړو مجموعه وی او دا هم کیدې شی چه اصل سبب خو ﴿ارادة الصلاة﴾ دې حدث د هغې شرط دې.

په احنافو کښ بعض اقامة الصلاة لره سبب موجب منلې دې او بعض ارادة الصلاة لره.

علامه قاسم بن قطلوبغا رحمه الله فرمائی : ﴿ سبب وجوب الطهارة وجوب الصلاة او ارادة مالایحل الابها ﴾ او بعض احنافو د نجاست حکمیه په صورت کښ حدث لره او د نجاست حقیقیه په صورت کښ خبث لره موجب وضوء ګڼړلې دې.

خو راجح قول هغه دې کوم چه صاحب محیط وغیره ذکر کړې دې چه د دې موجب ارادة الصلاة بشرط الحدث دې. (۳)

**د ایت کریمه نه په اودس کښ د اشتراط نیت استنباط**: په آیت کریمه کښ ﴿إِذَا قُمْتُمْ إِلَى الصَّلٰوةِ فَاغْسِلُوا﴾ نه علماء کرامو دا استنباط کړې دې چه په اودس کښ نیت شرط دې.

---

۱) سنن النسائی، کتاب الطهارة، باب الوضوء لکل صلاة رقم ۱۳۲، وسنن ابی داؤد کتاب الاطعمة، باب فی غسل الیدین عند الطعام رقم (۳۷۶۰) وجامع الترمذی، ابواب الاطعمة باب فی ترک الوضوء قبل الطعام، رقم ۱۸٤۷.

۲) اوګورئ: عمدة القاری ج ۲ ص ۲۳۱

۳) د تفصیل دپاره اوګورئ: عمدة القاری ج ۲ ص ۲۳۱، والبحر الرائق ج ۱ ص ۸، ۹، ورد المحتار مع الدر المختار ج ۱ ص ۶۲ و۶۳

د استدلال حاصل دا دي چه ﴿اِذَا قُمْتُمْ اِلَى الصَّلٰوةِ فَاغْسِلُوْا﴾ معنى ده ﴿ اذا اردتم القيام الى الصلاة فتوضؤا لاجلها ﴾ يعنى كله چه تاسو د مانځه په ارادې سره پاسيږئ نو د مانځه دپاره اودس كوئ او دا هم داسې ده لكه چه وئيلې شى ﴿ اذا رايت الامير فقم، اى فقم لاجله ﴾ يعنى چه ك له ته امير وينې نو پاسيږه. يعنى د امير دپاره اودريږه (١)

د احنافو د طرف نه جواب دا دي چه دلته ﴿ اذا ﴾ يا خو ظرفيه ده يا شرطيه، كه ظرفيه وى نو د مستدل استدلال نه صحيح كيږى ځكه چه په دې صورت كښې به معنى دا شى چه ﴿ فى وقت القيام الى الصلاة يجب عليكم الوضوء ﴾

او كه شرطيه وى نو د دې نه زيات نه زيات دا معنى معلوميږى چه جزا په شرط باندې په نفس الامر كښې مرتب ده چه كله هم مونځ كولې شى نو په طهارت او اودس سره به كولې شى، خاص د هغې لحاظ ساتل ضرورى نه دى كوم چه مستدل ذكر كړې دې، پس كه د مخكښې نه ئې اودس وى نو د ﴿ قيام الى الصلاة ﴾ دپاره اودس ضرورى نه دې. (٢)

**د اشتراط نيت فى الوضوء په سلسله كښې د قاضى ابن العربى رحمه الله تقرير** : خو قاضى ابن العربى مالكى رحمه الله په دې سلسله كښې د بعض شوافعو ترديد كړې دې چا چه دا وئيلې دى چه آيت كريمه د نيت په وجوب باندې دلالت نه كوى.

د هغوى د ترديد حاصل دا دي چه ﴿ يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اِذَا قُمْتُمْ اِلَى الصَّلٰوةِ ﴾ شرط او جزا دى او دا د شپږو حالو نه خالى نه دى، يا خو به د جزا د شرط سره بالكل تعلق نه وى يا به وى-

د تعلق كيدو په صورت كښې د پنځو قسمونو احتمال دې.

يا به ئې تعلق د صلاة سره وى، يا قيام الى الصلاة سره، يا حدث سره، يا درې واړو سره، يا په درې واړو كښې د يو غير معين سره

اول احتمال خو بالكل صحيح نه دې. ځكه چه د شرط او جزاء ترمينځه ربط خو يو بديهى امر دې بيا د ربط په صورتونو كښې آخرى څلور منفى دى، لهذا اولنې صورت به ثابت وى.

د دې تقرير داسې دې چه د اودس تعلق د حدث سره نه شى كيدې، ځكه چه حدث خو ناقض دې نه موجب.

او د ﴿ قيام الى الصلاة ﴾ سره هم نه شى كيدې، ځكه چه اودس د قيام الى الصلاة سره نه جمع كيږى ځكه چه د ﴿ اذا قمتم ﴾ معنى ده ﴿ اذا اردتم القيام ﴾ نو قيام د اودس نه مخكښې موندلې شى نو بيا به اودس د قيام دپاره ولې او څنګه وى؟

او د حدث او ﴿ قيام الى الصلاة ﴾ سره ربط نه شى كيدې نو د درې واړو د مجموعې سره هم نه شى كيدې.

---

١ . اوګورئ فتح البارى: ج١ ص٢٣٢

٢) اوګورئ: السعاية ج ١ ص ٣٠

هم دغه شان د يو سره لاعلى التعيين تعلق مفيد نه دى، په دې وجه دا احتمال هم صرف عقلي پاتې شو. لهذا اول احتمال يعنى د صلاة سره ئې تعلق ثابت شو او هم دا د حديث نه هم ثابت دې، پس رسول الله ﷺ فرمائى : ﴿ لا تقبل صلاة بغير طهور ﴾ (۱) معلومه شوه چه د طهارت د صلاة سره تعلق دې. (۲)

**د قاضى ابن العربى د تقرير مناقشه:** د قاضى ابن العربى رحمه الله په تقرير كښې مونږ مناقشه كولې شو چه قاضى صاحب چه كوم د ﴿ حدث ﴾ سره د تعلق نه كيدو كوم ذكر كړې دې هغه ئې صرف يو جهت طرف ته نظر كولو سره وئيلې دى چه حدث خو ناقض دې نه موجب. حال دا چه په حدث كښې يو طرف دناقض كيدو دې هم دغه شان پكښې يو جهت د موجب كيدو هم موجود دې، ځكه چه حدث د وضوء سابق دپاره ناقض دې او د وضوء لاحق دپاره موجب دې.
او اوس شاته اصل مسئله تيره شوې ده چه د باودس سبب موجب څه دې.

**قوله: فَاغْسِلُوا وُجُوهَكُمْ:** د غسل معنى ده ﴿ ايصال الماء على المغسول ﴾ يا ﴿ امرار الماء على المغسول ﴾ يعنى مغسول ته اوبه رسول، يا په مغسول باندې اوبه بهيول. (۳)

**د غسل په شرعى معنى كښې د علماء كرامو اختلاف :** د غسل په شرعى معنى كښې د علماء كرامو درې اقوال دى، جمهور علماء كرام فرمائى : مغسول ته داسې اوبه رسول چه د هغې نه كم از كم يوه قطره ضرور اوبهيږى. هم دا د امام ابوحنيفه او امام محمد رحمهما الله قول دې.

② امام ابو يوسف رحمه الله فرمائى ﴿ هو مجرد بل المحل بالماء، سال او لم يسل ﴾ يعنى . محل لره صرف ـر كول او موندلې شى. كه اوبه بهيږى يا اونه بهيږى

③ امام مالك رحمه الله فرمائى ﴿ امرار الماء ودلك الموضع بيده ﴾ يعنى اوبه بهيولو سره هغه محل لره په لاس سره مږل هم ضرورى دى. (٤)

**دمالكيانو دلائل اودهغې تضعيف :** قاضى ابن العربى رحمه الله د مالكيانو درې دلائل ذكر كړې دى.
اول دليل خو د هغوى په زعم كښې دا دې چه په لغت كښې د غسل په معنى كښې د لاس استعمالول داخل دى، ځكه چه د امرار يد نه بغير غسل ته صب الماء خو وئيلې شى. د غسل اطلاق په هغې باندې نه كيږى.

---

۱) صحيح مسلم، كتاب الطهارة، باب وجوب الطهارة للصلاة، رقم ۵۳۵، ۵۳۶، وسنن النسائى، كتاب الطهارة، باب فرض الوضوء رقم ۱۳۹، وسنن ابى داؤد كتاب الطهارة باب فرض الوضوء رقم (۵۹)، وجامع الترمذى، ابواب الطهارة، باب ما جاء لا تقبل صلاة بغير طهور، رقم (۱) وسنن ابن ماجه، كتاب الطهارة، باب لايقبل الله صلاة بغير طهور، رقم (۲۷۱ – ۲۷۴)

۲) احكام القران لابن العربى ج ۲ ص ۲۶۴، ۲۶۵)

۳) (تفصيل دپاره اوګورئ : الاستذكار ج ۱ ص ۳۰۷، باب العمل فى غسل الجنابة)

٤) د مذاهب د تفصيل دپاره اوګورئ : احكام القران للجصاص ج۲ ص۳۳۲ والبحر الرائق ج ۱ ص ۱۱.

خو د هغوی دا دلیل ضعیف دې ځکه چه په لغت کښې د غسل دپاره استعمال ید او دلك بالید ثابت نه دې.

پس ابن عبد البر رحمه الله فرمائی : ﴿ فدل هذا كله على أن الغسل فی لسان العرب یکون مرة بالعرك ومرة بالصب والإفاضة كل ذلك یسمی غسلا فی اللغة العربیة وقد حکی عن بعض العرب غسلتنی السماء یعنی بها انصب علیه من الماء ﴾(۱)

یعنی د غسل اطلاق په عربئ ژبه کښې کله خو په دې باندې کیږی چه مږلو سره یو څیز وینځلې شی او کله په دې باندې کیږی چه په هغې باندې اوبه واچولې شی او اوبهیولې شی، د بعض اهل عرب قول هم دې چه ﴿ غسلتنی السماء ﴾ یعنی د باران اوبو زه وینځلم.

دویم دلیل هغوی دا پیش کړې دې چه الله پاك فرمائی ﴿ حتی تغتسلوا ﴾(۲) جنبی انسان ته الله پاك د غسل حکم ورکړې دې او غسل بغیر د لاس د استعمال نه ممکن نه دې، ځکه چه الله پاك د انسان په بدن باندې غوړوالې پیدا کړې دې، چه د هغې د وجې نه اوبه پوره بدن ته نه رسیږی، بدن د خپل غوړوالی د وجې نه اوبه لرې کوی، لهذا په ټول بدن باندې د اوبو رسولو دپاره د لاس خوزول ضروری دی.

خو دا دلیل هم ضعیف دې، ځکه چه د لاس خوزول د غسل دپاره ضروری نه شو، بلکه د تکمیل غسل دپاره ضروری شو، دا څه ضروری ده چه کوم څیز د تکمیل دپاره شرط وی هغه به د اصل دپاره هم شرط وی، او دا هم مونږ علی وجه التنزل وایو ګینې د تکمیل دپاره هم ضروری نه دې، پس یو انسان په دریاب کښې اودریږی، د هغې اوبه روانې دی، په هغې سره ټول بدن لوند شی دغه شان مقصود حاصل شی.

هم دغه شان باران شروع شی، یو سړې راشی او هغې ته اودریږی، په باران باندې ئې ټول بدن لوند شی دغه شان مقصود حاصل شی.

قاضی ابن العربی رحمه الله دریم دلیل دا پیش کړو چه د رسول الله ﷺ په خدمت کښې یو ماشوم راوستلې شو او هغه په رسول الله ﷺ باندې متیازې اوکړې، په حدیث کښې دی ﴿ فدعا بماء، فاتبعه بوله، ولم یغسله ﴾(۳) یعنی اوبه ئې راطلب کړې او په متیازو باندې ئې واړولې او هغه ئې او نه وینځلې. معلومه شوه چه اوبه اچول غسل نه دې بلکه ﴿ دلك ﴾ ضروری دې، ګینې که صرف په اوبو اچولو سره غسل متحقق کیدې نو د هغې نه پس به په ﴿ لم یغسله ﴾ سره د ﴿ غسل ﴾ نفی ولې کیده؟

ددې جواب دادې چه ﴿ لم یغسله ﴾ نه د ﴿ غسل مخصوص ﴾ نفی کړې شوې ده او هغه ﴿ غسل بالمبالغة ﴾

---

۱) الاستذکار ج ۱ ص ۳۰۷، باب العمل فی غسل الجنابة.

۲) النساء : ۴۳

۳) صحیح مسلم، کتاب الطهارة، باب حکم بول الطفل الرضیع، وکیفیة غسله، رقم (۲۶۲)

دي، پس په مسلم کښې هم په دې حديث کښې ﴿ ولم يغسله غسلا ﴾ دې. (۱)
په مصدر سره تاکيد راوړل ددې خبرې دليل دې چه دمخصوص قسم ﴿غسل﴾ نفی مقصود ده.(۲) والله اعلم

**قوله: وُجُوهَكُمْ:** دا د ﴿ وجه ﴾ جمع ده چه د هغې معنی ده مخ.

﴿ فاغسلوا وجوهكم ﴾ کښې ﴿ وجوه ﴾ جمع ده او ﴿ کم ﴾ هم د جمعې ضمير دې او قاعده دا ده چه کله جمع د جمع سره مقابله کولو باندې راوړلې شی نو د مقابلة الآحاد بالاحاد فائده حاصليږی (۳) چه د هغې مطلب دا دې چه هر انسان دې خپل مخ وينځی.
که د يو انسان دوه مخونه وی نو امام نووی رحمه الله فرمائی چه د دواړو وينځل واجب دی. (٤)
مولانا عبدالحئ لکهنوی رحمه الله فرمائی که يو مخ اصلی دې او دويم غير اصلی، د اصلی وينځل فرض دی او که دواړه اصلی وی، په دواړو کښې د اصل کيدو اثار موجود وی، مثلا په دواړو سره خوراك څکاك کوی نو احتياط په دې کښې دې چه دواړه دې وينځلې شی. (۵)

**د وجه تحديد** د ﴿ وجه ﴾ يا مخ حد په اوږدوالی باندې عام طور د سر د ويښتو د راختلو د ځائې نه تر د زنې د اخره پورې دې او په پلن والی باندې د يو غوږ د پوستکی نه د بل غوږ د پوستکی پورې دې. (۶)

**قوله: وَأَيْدِيَكُمْ إِلَى الْمَرَافِقِ:** او خپل لاسونه (وينځئ) تر د څنګلو پورې.

**مرافق:** د مرفق (بکسر الميم وفتح الفاء يا بفتح الميم وكسر الفاء) جمع ده، څنګل ته وئيلې شی، دا د رفق نه ماخوذ دې، چه د هغې معنی نرمی ده، په څنګل سره کارونه کښې سهولت وی، په دې وجه ورته مرفق وئيلې شی. (۷)

**څنګل به وينځلې شی يا نه؟:** په دې مسئله کښې اختلاف دې.
جمهور علماء کرام فرمائی چه د مرافق وينځل فرض دی، او ابوبکر بن داؤد ظاهری، ابن

---

۱) صحيح مسلم كتاب الطهارة، باب حكم بول الطفل الرضيع، وكيفية غسله، رقم ۶۶۷
۲) اوګورئ فتح الملهم ج ۱ ص ۴۵۰، ۴۵۱، كتاب الطهارة، باب حكم بول الطفل الرضيع، وكيفية غسله.
۳) السعاية ج ۱ ص ۳۲، المبحث التاسع والعشرون
٤) المجموع ج ۱ ص ۳۸۲
۵) السعاية ج ۱ ص ۳۲، المبحث التاسع والعشرون
۶) وهومن قصاص الشعر الى اسفل الذقن، والى شحمتي الاذن ... انظر كنزالدقائق مع بحرالرائق ج۱ ص ۱۱
۷) قال ابن الفارس رحمه الله تعالى : الراء والفاء والقاف أصلٌ واحدٌ يدلُّ على موافقة ومقاربة بلا عنْف. فالرِّفق: خلاف العنْف... هذا هو الأصل ثم يشتقّ منه كلُّ شيء يدعو إلى راحة وموافَقة. والمرفقٌ(۱) مَرفق الإنسان؛ لأنه يستريح في الاتّكاء عليه. يقال ارتَفَق الرّجلُ: إذا اتّكأ على مَرفقه في جلوسه... ويقال فيه مَرْفِق ومِرْفَق، حكاهما ثعلب. معجم مقاييس اللغة ج ۲ ص ٤۱۸، مادة : رفق

حزم او زفر بن الهذيل رحمه الله فرمائي چه فرض نه دی، د امام مالك رحمه الله نه هم يو روايت داسې منقول دې او دويم روايت ئې د جمهور مطابق دې. (١)

**د ظاهريه وغيره دليل** : د ظاهريه او امام زفر رحمه الله دليل مشهور اصول دې ﴿ الغاية لاتدخل تحت المغيا ﴾ يعنی غاية په مغيا (د کوم څيز دپاره چه مغيا بيان کړې شوې وی) د لاندې داخل نه وی. (٢)

په نورو الفاظو کښې دا وئيلې شو چه چونکه په ﴿ وَأَيْدِيَكُمْ إِلَى الْمَرَافِقِ ﴾ کښې د ﴿ الی ﴾ په ذريعه د ﴿ غسل يد ﴾ غاية بيان کړې شوې دې او غايت يعنی مرفق به د غسل يد په حکم کښې داخل وی يا به نه وی؟ په دې کښې ادله متعارض دی، پس په بعض ځايونو کښې يقينی غايت په مغيا کښې داخل نه وی لکه ﴿ ثُمَّ أَتِمُّوا الصِّيَامَ إِلَى اللَّيْلِ ﴾(٣)

او په بعض مقاماتو کښې غايت يقينی طور په مغيا کښې داخل ګڼړلې شی. لکه وئيلې شی ﴿بعتك هذا المكان من هنا الی هناك﴾ يعنی ما په تا باندې دا کور در خرڅ کړو د دې ځائې نه تر هغه ځائې پورې. په دې مثال کښې غايت يقينا په مغيا کښې داخله ده.

په آيت وضوء ﴿ وايديكم الی المرافق ﴾ کښې چونکه دواړه احتمالات دی، په دې وجه به د شك په بنياد څنګل په مغسول کښې داخله نه وی. (٤)

هم ددې نه بعض حضراتو داسې تعبير هم کړې دې چه په آيت وضوء کښې ﴿ وايديكم الی المرافق ﴾ وئيلو سره يد مغسول منلې شوې دې، د هغې حد د ﴿ ماقبل المرفق ﴾ پورې خو يقينی دې خو د ﴿ مرفق ﴾ په مغسول کښې داخليدل مشکوك دی، لهذا متيقن به فرض منلې شی، مشکوك به فرض نه منلې کيږی. (٥)

**د جمهور د طرف نه د دې جواب** دا دې چه د دې قاعدې ﴿ الغاية لا تدخل تحت المغيا ﴾ نه استدلال کول صحيح نه دی ځکه چه دا متفق عليه مسئله نه ده. بلکه د غايت په مغيا کښې داخليدل او نه داخليدل په قرائن او دلائل باندې موقوف دی، که قرينه په دخول باندې دلالت کوی نو داخل به ګڼړلې شی، ګينې داخل به نه ګڼړلې کيږی.

او ګورئ يو سړې وائی ﴿قرات القران من اوله الی اخره﴾ نو په دې کښې غايت داخل منلې شی هم

---

١) د مذاهبو د تفصيل دپاره اوګورئ: السعاية ج ١ ص ٥٦. والمغنی لابن قدامة ج ١ ص ٨٥. والمجموع شرح المهذب ج ١ ص ٢٨٥. ونيل الاوطار ج ١ ص ١٦٨، ابواب صفة الوضوء، باب ٥٩. المضمضة والاستنشاق. والمحلی لابن حزم ج ١ ص ٢٩٧.
٢) اوګورئ: السعايه ج ١ ص ٥٦، ٥٧
٣) البقرة ١٨٧
٤) اوګورئ: السعايه ج ١ ص ٥٦ و ٥٧
٥) پورته حواله

دغه شان د الله پاك ارشاد دې ﴿ ثُمَّ أَتِمُّوا الصِّيَامَ إِلَى اللَّيْلِ ﴾ (۱) دلته غايت په مغيا كښې داخل نه شي منلې.
اوس بعض علماء كرامو د دې دپاره قاعده بيان كړې ده. هغوى فرمائى چه كه غايت د مابعد غايت د جنس نه وى نو غايت به په مغيا كښې داخل وى لكه ﴿ قرأت القرآن من اوله الى اخره ﴾ او كه د هغې د جنس نه نۀ وى نو داخل به نه وى لكه ﴿ ثُمَّ أَتِمُّوا الصِّيَامَ إِلَى اللَّيْلِ ﴾ كښې. (۲)
هرچه د ظاهريه وغيره دا استدلال دې چه ماقبل المرفق يقينى او د مرفق دخول په دې كښې مشكوك دې، په دې وجه به مرفق مغسول نه وى، پس د دې جواب دا دې چه مرفق دلته مشكوك نه دې، بلكه د هغې دخول يقينى دې، ځكه چه غايت كه د صدر كلام د جنس نه وى نو هغه يقينا په مغيا كښې داخل وى. (۳)
د دې نه علاوه په عباداتو كښې په احوط باندې عمل كول اولى وى، نه د هغې په مقابله كښې په متيقن باندې عمل كول. (۴)
د جمهورو د طرف نه دا جواب هم كړې شوې دې هغه دا چه دا غايت ﴿ غاية الاسقاط ﴾ دې. اصل كښې الله فرمائيلې دى ﴿ وَأَيْدِيَكُمْ ﴾ د دې نه دا معلوميږى چه د ټول لاس. يعنى د ګوتو د سوكو نه تر د اوګو او ترخونو پورې وينځل ضرورى دى، ځكه چه لفظ د يد د ﴿ انامل ﴾ نه تر د مناكب پورې وئيلې شى، د هغې نه روستو چه ئې كله ﴿ إِلَى الْمَرَافِقِ ﴾ اوفرمائيلو نو مابعد الغايه د غسل د حكم نه خارج شو او باقى اندام د غسل د لاندې راغلل. اوس معنى دا شوه چه تاسو خپل لاسونه د څنګلو پورې وينځئ، خو ما وراء المرفق يعنى كوم چه د مرفق نه وړاندې دې د هغې د وينځلو ضرورت نشته. (۵)
قاضى ابن العربى رحمه الله دا توجيه د قاضى عبدالوهاب مالكى رحمه الله نه نقل كړې ده او فرمائى چه ما دا توجيه د هغوى نه علاوه چا سره هم نه ده ليدلې. (۶)
خو حقيقت دا دې چه دا توجيه د قاضى عبدالوهاب استاذ قاضى ابو الحسن ابن القصار نه هم منقول ده. د قاضى عبدالوهاب وفات په ۴۲۲ هجرى كښې شوې دې (۷) او د قاضى ابو الحسن بن القصار وفات په ۳۹۷هجرى كښې شوې دې (۸)

---

۱) البقرة: ۱۸۷
۲) اوګورئ: السعايه ج ۱ ص ۵۷، واحكام القران لابن العربى ج ۲ ص ۵۶۷
۳) اوګورئ: السعاية ج ۱ ص ۵۷
۴) پورته حواله
۵) اوګورئ: الهداية للمرغينانى ج ۱ ص ۱۶، ۱۷، كتاب الطهارات وشرح الوقاية مع شرحه السعايه ج ۱ ص ۶۸، ۶۹
۶) اوګورئ: احكام القران ج ۲ ص ۵۶۷
۷) اوګورئ: وفيات الاعيان ج ۲ ص ۲۲۲، ترجمة القاضى عبد الوهاب المالكى.
۸) سير اعلام النبلاء ج ۱۷ ص ۱۰۸

هم دغه شان په علماء احناف كښې صاحب هدايه، صاحب كشف البزدوى او صاحب كافى وغيره دا توجيه كړې ده. (۱)

په جمهورو كښې بعض دا جواب هم كړې دې چه دلته ﴿ الى ﴾ د ﴿ مع ﴾ په معنى كښې دې (۲) لكه د الله پاك ارشاد دې ﴿ وَلَا تَأْكُلُوٓا۟ أَمْوَٰلَهُمْ إِلَىٰٓ أَمْوَٰلِكُمْ ﴾ (۳) يعنى د هغوى مالونه د خپل مال سره مه خورئ. په دې كښې ﴿ الى ﴾ د ﴿ مع ﴾ په معنى كښې دې. (٤)

بعض وائى چه دلته ﴿ الى ﴾ د غايت په معنى كښې دې، خو مرفق چونكه د ﴿ يد ﴾ حصه ده، په دې وجه به دا د مغسول د لاندې داخل وى، خو د هغې نه وړاندې د لاس نه تر اوږې پورې حصه به د اجماع د وجې نه خارج شى. (۵)

د جمهورو استدلال د بعض احاديثو نه هم دې. پس امام دار قطنى رحمه الله د سيدنا جابر رضى الله عنه نه روايت نقل كړې دې. ﴿ كان رسول الله صلى الله عليه وسلم اذا توضاء ادار الماء على مرفقيه ﴾ (۶)

خو دا حديث ضعيف دې، په دې كښې يو راوى عبدالله بن محمد بن عقيل دې او هغه ضعيف دې. (۷)

امام دارقطنى رحمه الله فرمائى : ﴿ ابن عقيل ليس بالقوى ﴾ (۸)

بيا د هغوى نه روايت كونكې د هغوى نمسې القاسم بن محمد بن عبدالله بن محمد بن عقيل دې. دې هم ضعيف دې (۹)

---

۱) اوګورئ : السعايه ج ۱ ص ۶۷

۲) المجموع شرح المهذب ج ۱ ص ۳۸۶، واحكام القران لابن العربى ج ۲ ص ۵۶۷، والمغنى لابن قدامة ج ۱ ص ۸۵

۳) النساء : ۲

٤) مختار الصحاح ص ۲٤، وانظر الكشاف للزمخشرى ج ۱ ص ٤۶۵

۵) المجموع شرح المهذب ج ۱ ص ۳۸۶

۶) سنن الدارقطنى ج ۱ ص ۸۳، كتاب الطهارة باب وضوء رسول الله صلى الله عليه وسلم رقم : ۱۵

۷) قال ابن سعد : منكر الحديث، وقال احمد بن حنبل : منكر الحديث، وقال ابن معين : لا يحتج بحديثه، وقال مرة : ضعيف الحديث، وقال النسائى : ضعيف، قال يعقوب وابن عقيل صدوق، وفى حديثه ضعف شديد جدا. قال الترمذى : صدوق وقد تكلم فيه بعض اهل العلم من قبل حفظه، وسمعت محمدا بن اسماعيل يقول : كان احمد بن حبل واسحاق بن ابراهيم، والحميدى يحتجون بحديث ابن عقيل، قال محمد بن اسماعيل : وهو مقارب الحديث، وقال ابن عدى : روى عنه جماعة من المعروفين الثقات وهو خير من ابن سمعان، ويكتب حديثه. انظر تهذيب الكمال ج ۱۶ ص ۸۰ - ۸٤، والكامل فى ضعفاء الرجال ج ٤ ص ۱۲۷ - ۱۲۹، ومختصر الكامل للمقريزى : ۳۶۲ و ۳۶۳.

۸) سنن الدارقطنى ج ۱ ص ۸۳، كتاب الطهارة باب وضوء رسول الله صلى الله عليه وسلم، رقم ۱۵

۹) امام ابن حبان اګر چه په كتاب الثقات كښې ذكر كړې دې خو امام احمد رحمه الله فرمائى ﴿ ليس بشئ ﴾، امام ابوحاتم رحمه الله فرمائى ﴿ كان متروك الحديث ﴾ ..... (بقيه بر صفحه آئنده.....

امام دارقطني رحمه الله د سيدنا عثمان رضي الله عنه نه د اودس طريقه نقل کړې ده، په هغې کښې دي ﴿ويديه الى المرفقين حتى مس اطراف العضدين ﴾ (١) حافظ ابن حجر رحمه الله د دې سند ته حسن وئيلې دې. (٢)

هم دغه شان امام طبراني او امام بزار رحمهما الله د سيدنا وائل بن حجر رضي الله عنه نه د صفة الوضوء په باره کښې حديث نقل کړې دې. په هغې کښې دي ﴿ ثم ادخل يمينه في الاناء فغسل بها ذراعه اليمنى، حتى جاوز المرفق ثلاثا، ثم غسل يساره بيمينه، حتى جاوز المرفق ثلاثا ﴾ (٣)

امام طحاوي رحمه الله او امام طبراني رحمه الله د ﴿ ثعلبة بن عباد عن ابيه ﴾ په طريق سره مرفوعا نقل کړی دی: ﴿ غسل ذراعيه حتى يسيل الماء على مرفقيه ﴾ (٤)

حافظ رحمه الله فرمائي ﴿ هذه الاحاديث يقوى بعضها بعضا ﴾ (٥) يعنى دا احاديث د يو بل دپاره د تقويت باعث دی.

امام نووي رحمه الله په صحيح مسلم کښې د سيدنا ابوهريره رضي الله عنه د حديث نه استدلال کړې دې، هغوی د رسول الله ﷺ د اودس صفت لره عملا اوښودلو، چه په هغې کښې دي ﴿ ثم غسل يده اليمنى حتى اشرع في العضد، ثم يده اليسرى حتى اشرع في العضد ﴾ (٦)

امام نووي رحمه الله فرمائي د دې حديث نه د رسول الله ﷺ مرفقين لره وينځل ثابت شو، دهغوی

.....بقيه از صفحه گذشته)... امام ابو زرعه رحمه الله فرمائي: ﴿ احاديثه منكرة، وهو ضعيف الحديث ﴾ امام بخاري رحمه الله فرمائي : ﴿ عنده مناكير ﴾ او ابن عدي رحمه الله فرمائي : ﴿ روى عن جده احاديث غير محفوظة ﴾ اوګورئ: الثقات لابن حبان ج ٧ ص ٣٤٨، وكتاب الجرح والتعديل لابن ابى حاتم ج ٧ ص ١٦٠، رقم ١٢٢٢٢، ٦٧٨، ولسان الميزان ج ٦ ص ٣٨٠، رقم ٦١٣٠، والكامل ج ٦ ص ٣٥.

١) سنن الدارقطني ج ١ ص ٨٣، كتاب الطهارة، باب وضوء رسول الله ﷺ رقم ١٧

٢) اوګورئ: فتح الباري ج ١ ص ٢٩٢، كتاب الوضوء، باب مسح الراس كله.

٣ ) المعجم الكبير للطبراني ج ٢٢ ص ٥٠، ومسند البزار ج ١٠ ص ٣٥٥، ومجمع الزوائد ج ١ ص ٢٣٢، كتاب الطهارة، باب ما جاء في الوضوء، ج ٢ ص ١٣٤، كتاب الصلاة باب صفة الصلاة والتكبير فيها رقم ٢٨٠٥، وكشف الاستار ج ١ ص ١٤٠، كتاب الطهارة، باب صفة الوضوء رقم ٢٦٨، قال الهيثمي : رواه الطبراني في الكبير والبزار وفيه سعيد بن عبدالجبار، قال النسائي : ليس بالقوى وذكره ابن حبان في الثقات، وفي سند البزار والطبراني محمد بن حجر وهو ضعيف.

٤) مجمع الزوائد ج ١ ص ٢٢٤، كتاب الطهارة، باب فضل الوضوء، وشرح معاني الاثار للطحاوي مع نثر الازهار ج ١ ص ٧٥، كتاب الطهارة، باب فرض الرجلين في وضوء الصلاة. قال الهيثمي : رواه الطبراني في الكبير، ورواه باسناد اخر فقال ﴿ عن ثعلبه بن عمارة ﴾ وقال هكذا رواه اسحاق الديري عن عبدالرزاق ووهم في اسمه، والصواب ثعلبه بن عباد، ورجاله موثقون.

٥) فتح الباري ج ١ ص ٢٩٢، كتاب الوضوء، باب مسح الراس كله

٦) صحيح مسلم، كتاب الطهارة، باب استحباب اطالة الغرة والتحجيل في الوضوء رقم ٥٧٩.

د فعل د وضوء د مامور به بيان دې، د رسول الله ﷺ نه كله هم د دې ترك ثابت نه دې. (١)

**قوله: وَامْسَحُوا بِرُءُوسِكُمْ:** يعنى په خپلو سرونو باندې مسح كوئ.

**د مسح لغوى او اصطلاحى معنى** : په لغت كښ مسح ﴿ امرار الشئ على الشئ بسطا ﴾ (٢) ته وئيلې شى، يو څيز لره په بل څيز باندې په نرمئ سره راښكل يا تيرول.

د شريعت په اصطلاح كښ د دې لغوى معنى لحاظ خو ضرور ساتلې شى، د دې سره سره د اله مسح د لونديدلو د قيد لحاظ هم ساتلې شى او دا هم ضرورى ده چه هغه اله به د انسانى بدن نه وى، لهذا د شريعت په اصطلاح كښ به مسح وئيلې شى : ﴿ امرار اليد المبتلة العضو ﴾ يعنى د لوند لاس په اندام باندې راښكل. (٣)

ابن العربى رحمه الله فرمائى چه مسح اله ممسوح بها (يعنى د څه په ذريعه چه مسح كولې شى) ته اوبو رسولو، او غسل مغسول ته اوبه رسولو ته وئيلې شى. (٤)

حاصل دا چه په مسح كښ اوبه اله ممسوح بها ته رسولې شى او بيا هغه په ممسوح باندې راښكلې شى او په غسل كښ اوبه مغسول ته رسولې شى.

**د سر په مسح كښ فرض مقدار څه دې؟** : د مسح فرضيت خو د قران كريم نه ثابت دې، ددې په فرضيت كښ د چا اختلاف نشته، خو په فرض مقدار كښ اختلاف دې. (٥)

**د امام شافعى رحمه الله اقوال** : د امام شافعى رحمه الله په مذهب كښ دوه اقوال دى.

د هغوى مشهور قول كوم چه د هغوى نه منصوص دې هغه دا دې چه ﴿ ادنى مايطلق عليه اسم المسح ﴾ فرض دې. لهذا څه مخصوص مقدار مقرر نه دې، تردې چه د هغوى په نزد كه يو سړې د يو ويښته په بعض حصه باندې هم مسح اوكړى نو هم كافى ده.

په شوافع كښ ابو العباس بن القاص او ابو الحسن بن خيران وائى چه كم از كم په درې ويښتو باندې مسح ضرورى ده. (۶)

**د امام احمد بن حنبل رحمه الله اقوال** : د امام احمد رحمه الله نه يو قول دا منقول دې چه د پوره سر مسح كول ضرورى دى. دويم قول د هغوى نه دا نقل دې چه د بعض سر مسح كافى ده.

خو امام ابن قدامه رحمه الله فرمائى چه د امام احمد رحمه الله نه چه منقول دى هغه دا دى چه د سړى دپاره خو استيعاب ضرورى دې او د زنانه دپاره د سر په وړاندې حصه باندې مسح كول كافى دى. (٧)

---

١) شرح المهذب ج ١ ص ٣٨٧
٢) معجم مقاييس اللغة ج ٥ ص ٣٢٢
٣) اوګورئ : السعاية ج ٢ ص ٧٤
٤) احكام القران لابن العربى ج ٢ ص ۶۶٧
٥) اوګورئ : المغنى لابن قدامة ج ١ ص ٨۶
٦) اوګورئ : المجموع شرح المهذب ج ١ ص ٣٩٨
٧) اوګورئ : المغنى لابن قدامة ج ١ ص ٨۶، ٨٧

**د امام مالك رحمه الله اقوال** : د مالكيانو نه په دې سلسله كښې شپږ اقوال منقول دى.
ابن مسلمه رحمه الله فرمائى چه د دوه ثلث مسح كافى ده.
اشهب او ابوالفرج وائى چه د يو ثلث مسح كافى ده.
د اشهب نه يو بل قول منقول دې چه د مقدم راس مسح كافى ده.
خپله د امام مالك رحمه الله نه نقل دى چه د پوره سر استيعاب ضروى دې.
يو قول ترې دا هم نقل دې چه ﴿ ادنى مايطلق عليه اسم المسح ﴾ كافى دې.
شپږم قول دا دې چه د سر استيعاب فرض دې، خو كه معمولى حصه پاتې شى نو مسح به اوشى (١)

**د امام ابوحنيفه رحمه الله اقوال** : د امام ابوحنيفه رحمه الله درې اقوال دى.
يو دا چه د ربع الراس مسح فرض ده.
دويم دا چه د مقدار ناصيه مسح فرض ده.
دريم دا چه د درې گوتو په مقدار باندې مسح كول فرض دى. (٢)
خو دا حقيقى اختلاف نه دې بلكه د يوې معنې مختلف عنوانات او د يو معنې مختلف تعبيرونه دى.
د حضرات علماء كرام او مجتهدينو د دې مختلفو اقوالودلائل ابن العربى او علامه عبد الحى لكهنوى رحمه الله په تفصيل سره بيان كړى دى، هغې ته دې مراجعت اوكړې شى. (٣)

**قوله: ﴿وارجلكم الى الكعبين ﴾** : او خپلې خپې د گيټو سره وينځې.

**كعب څه ته وئيلې شى؟** ﴿ كعب ﴾ وئيلې شى ﴿ العظم الناتى الذى ينتهى اليه عظم الساق ﴾ يعنى هغه زايوږنه شوې هډوكې چرته چه د پنډئ هډوكې ختم شوې وى، دې ته كعبين په دې وجه وئيلې شى چه دا دوه جدا جدا بهر راوتلې هډوكى وى.

**د كعب په باره كښې د شيعه گانو اختلاف او د هغې ترديد** : شيعه گان وائى چه د كعب نه مراد هغه هډوكې دې كوم چه د قدم په ظاهر باندې وى خو دا قول صحيح نه دې.

**اول**: خو په دې وجه چه دټول اهل لغت ددې په خلاف باندې اتفاق دې،پس صاحب المغرب علامه مطرزى،صاحب القاموس المحيط علامه مجدالدين فيروزابادى اوصاحب الصحاح علامه جوهرى رحمهم الله وغيره د كعب هم هغه تعريف ليكلې دې كوم چه مونږ پورته ذكر كړو، او اصمعى رحمه الله نه د دې خبرې انكار نقل كړې شوې دې چه د كعب اطلاق د وسط قدم دپاسه هم كيږى. (٤)

---

١) اوگورئ احكام القران لابن العربى ج ٢ ص ٥٦٨، وعمدة القارى ج ٢ ص ٢٣٥
٢) اوگورئ عمدة القارى ج ٢ ص ٢٣٥
٣) احكام القران لابن العربى ج ٢ ص ٥٦٩- ٥٧٢، والسعاية ج ١ ص ٧٨- ٩٩
٤) المغرب ج ٢ ص ٢٢٢، والقاموس المحيط ص ١٢١و وصحاح اللغة ج ١ ص ٢١٣، وتاج العروس ج ٢ ص ٣٧٤، والنهاية فى غريب الحديث ج ٢ ص ٥٤٤، مختار الصحاح ص ٥٧٢.

دويم : په صحيح مسلم وغيره كښې د سيدنا عثمان رضي الله عنه روايت دې: ﴿ انه غسل رجله اليمنى الى الكعبين ثم اليسرى كذلك ﴾ (١) رسول الله ﷺ خپله ښئ خپه د ګيټو سره وينځله.
امام نووى رحمه الله فرمائى چه په دې حديث كښې د هرې خپې دپاره د كعبين اثبات دې، په دې سره د روافضو خبره بالكل لغو كيږي. (٢)

هم دغه شان د سيدنا نعمان بن بشير رضي الله عنه حديث دې : ﴿ فرأيت الرجل يلزق منكبه بمنكب صاحبه، وركبته بركبة صاحبه، وكعبه بكعبه ﴾ (٣)

يعنى : ما اوليدل چه يو سړي به خپله اوګه د بل د اوګې سره او خپله ګيټئ به ئې د بل د ګيټئ سره برابروله.
حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى چه دا حديث د دې خبرې واضح دليل دې چه د كعب نه مراد ګيټئ دى ګينې نورې معنې خو دلته نه دى ممكن. (٤)
هم دغه شان د طارق بن عبد الله رضي الله عنه روايت دې :

﴿ رَأَيْتُ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي سُوْقِ ذِي الْمَجَازِ وَعَلَيْهِ حُلَّةٌ حَمْرَاءُ ، وَهُوَ يَقُوْلُ : يَا أَيُّهَا النَّاسُ قُوْلُوْا لَا إِلٰهَ إِلَّا اللهُ تُفْلِحُوْا ، وَرَجُلٌ يَتْبَعُهُ يَرْمِيْهِ بِالْحِجَارَةِ ، وَقَدْ أَدْمَى عُرْقُوْبَيْهِ وَكَعْبَيْهِ ، وَهُوَ يَقُوْلُ : يَا أَيُّهَا النَّاسُ ، لَا تُطِيْعُوْهُ ، فَإِنَّهُ كَذَّابٌ ، فَقُلْتُ : مَنْ هٰذَا ؟ قِيْلَ : هٰذَا غُلَامُ بَنِيْ عَبْدِ الْمُطَّلِبِ ، قُلْتُ : فَمَنْ هٰذَا الَّذِيْ يَتْبَعُهُ يَرْمِيْهِ بِالْحِجَارَةِ ؟ قَالَ : هٰذَا عَبْدُ الْعُزّٰى أَبُوْ لَهَبٍ ﴾ (٥)

يعنى : ما رسول الله ﷺ د ذوالمجاز په بازار كښې اوليدو ، هغوى د سور رنګ (يوه برګه) جبه اغوستلې وه او وئيل ئې : اې خلقو! اوايئ ﴿ لا اله الا الله ﴾ اوايئ تاسو به كامياب شئ. يو

---

١) صحيح مسلم. كتاب الطهارة، باب صفة الوضوء وكماله رقم ٥٣٨.
٢) اوګورئ شرح النووى على صحيح مسلم ج ١ ص ١٢٠. كتاب الطهارة باب صفة الوضوء وكماله.
٣) قال البخارى فى صحيحه ج ١ ص ١٠٠، كتاب الاذان، باب الزاق المنكب بالمنكب. والقدم بالقدم فى الصف. تعليقا ..... وقال النعمان بن بشير : رايت الرجل منا يلزق كعبه بكعب صاحبه. وانظر السنن لابى داؤد، كتاب الصلاة، باب تسوية الصفوف، رقم : ٦٦٢
٤) فتح البارى ج ٢ ص ٢١١، كتاب الاذان، باب الزاق المنكب بالمنكب والقدم بالقدم فى الصف.
٥) موارد الظمآن الى زوائد ابن حبان ص ٤٠٦. كتاب المغازى والسير، باب دعاء النبى ﷺ الناس الى الاسلام وما لقيه، رقم ١٦٨٣، وقد اخرجه الحاكم فى المستدرك ج ٢ ص ٦١٢، كتاب التاريخ، باب : يد المعطى العليا وابد بمن تعول، وابن ابى شيبة فى مصنفه ج ٢٠ ص ٢٤٢، كتاب المغازى، باب فى اذى قريش للنبى ﷺ وما لقى منهم، رقم ٣٧٧٢٠، وابو نعيم فى معرفة الصحابة ج ٣ ص ٧٧، ترجمة : طارق بن عبدالله المحاربى الكوفى رضي الله عنه رقم ٣٩٥٥. والدارقطنى فى سننه ج ٣ ص ٤٤، ٤٥، كتاب البيوع، رقم ١٨٦، وابن حجر فى المطالب العالية ج ١ ص ٣٩٤، ٣٩٥، كتاب البيوع، باب ما اذى المشركون به النبى ﷺ ونبانه على امره، رقم ٤٢٧٧. والبيهقى فى سننه الكبرى ج ١ ص ٨٦، كتاب الطهارة، باب الدليل على ان الكعبين هما الناتيان في جانبي القدم و ج ٢ ص ٢١، كتاب البيوع، باب جواز السلم الحال.

سړې په هغوی پسې شاته روان وو چه په کاڼړو باندې ئې ويشتلو، د رسول اللهﷺ پونډې او ګيټې په وينو باندې ککړې شوې وې، هغه سړی به دا آواز کولو اې خلقو! د دې سړی خبره او نه منئ دا دروغژن دې، ما تپوس اوکړو دا څوك دې؟ خلقو اووې چه دا د بنی عبد المطلب هلك دې او د بل سړی باره کښې مې تپوس اوکړو چه دا څوك دې نو وې وئيل چه د عبد العزی ابو لهب دې.
علامه عينیؒ فرمائی دا دې خبرې دليل دې چه کعب هغه بهر راوتلې هډوکې دې کوم چه د قدم په طرف باندې وی ځکه چه کله تلونکې سړې د روستو نه په کاڼړی باندې ويشتلې شی نو د خپې وړاندې حصه باندې به نه لګی. (۱)
هم دغه شان د سيدنا ابو سعيد خدریؓ حديث دې.

﴿ ان النبی صلی الله عليه وسلم قال: إِزْرَةُ الْمُسْلِمِ إِلَى نِصْفِ السَّاقِ، وَلَا حَرَجَ - أَوْ لَا جُنَاحَ - فِيمَا بَيْنَهُ وَبَيْنَ الْكَعْبَيْنِ، مَا كَانَ أَسْفَلَ مِنَ الْكَعْبَيْنِ فَهُوَ فِي النَّارِ ﴾ (۲) يعنی: د مسلمان پينسې تر نيمې پنډئ پورې وی، بيا د نيمې پنډئ او د دواړو ګيټو ترمينځه هم څه باك نشته، خو که د ګيټو نه ښکته شی نو هغه به جهنم ته ځی.

هم دغه شان رسول اللهﷺ سيدنا جابر بن سليمؓ ته اوفرمائيل: ﴿ وَارْفَعْ إِزَارَكَ إِلَى نِصْفِ السَّاقِ، فَإِنْ أَبَيْتَ فَإِلَى الْكَعْبَيْنِ ﴾ (۳) يعنی: خپل پرتوګ د نصف ساق پورې اوچت ساته، که د دې نه انکار کوې نو بس د ګيټو پورې ساته.
امام نوویؒ فرمائی چه د دې دواړو احاديثو نه صراحة معلوميږی چه د کعبين نه مراد د پنډئ نه لاندې هډوکې دې نه د ظهر قدم راوتلې هډوکې.(۴)

**دريم**: د عربيت د قاعدې په لحاظ سره به هم دلته د ﴿ کعبين ﴾ نه مراد ګيټئ وی، نه د ظهر قدم راوتلې هډوکې، ځکه چه چرته مقابلة الجمع بالجمع راځی هلته افراد لره په افرادو باندې تقسيم کوې لکه چه وئيلې شی ﴿ رکبوا دوابهم ﴾ د دې مطلب دا دې چه په خلقو کښې هر هر فرد په خپله سورلئ باندې سور شو.
د دې په خلاف که مقابلة الجمع بالمثنی وی نو بيا د انقسام الاحاد علی الاحاد فائده نه حاصليږی، بلکه هلته د تثنيه مقابله د هر هر فرد سره وی، لکه چه که اوئيلې شی. ﴿ لبسوا ثوبين ﴾ نو مطلب به دا وی چه هر هر فرد دوه دوه کپړې واغوستلې.
چه هر کله په دې خبره پوهه شوې نو اوس په آيت وضوء کښې سوچ اوکړئ الله پاك دلته د

---

۱) البناية ج ۱ ص ۷۰. کتاب الطهارة
۲) السنن لابی داؤد. کتاب اللباس. باب قدر موضع الازار. رقم: ٤٠٩٣
۳) السنن لابی داؤد. کتاب اللباس. باب ما جاء فی اسبال الازار. رقم: ٤٠٨٤
٤) تهذيب الاسماء واللغات ج ٤ ص ١١٦ ماده کعب)

جمعي الفاظ استعمال كړي دی پس ﴿ وجوه ﴾، ﴿ رؤوس ﴾، ﴿ ايدی ﴾ او ﴿ مرافق ﴾ جمع دی، لهذا دلته به د قاعدې مطابق انقسام الاحاد علی الاحاد وی او مطلب به دا وی چه هر سړي دې خپل مخ وينځی، خپل لاس دې د څنګلو سره وينځی او د خپل سر مسح دې اوکړی، د دې نه معلومه شوه چه د مخ غسل فرض دې، هم دغه شان غسل يد واحد ة مع المرفق الواحد فرض دې. هم دغه شان د هر يو په خپل خپل سر باندې مسح کول فرض دی. هم دغه شان د مرفق مقابله چه د ايدی سره کړې شوې ده، د دې تقاضا دا ده چه په هر لاس کښې يو مرفق دې، او حال دا چه الله پاك د کعب بيان کولو سره د تثنيه صيغه استعمال کړه او مخکښې اسلوب ئې پريخودلو .لهذا دلته به دانقسام الاحاد علی الاحاد په ځائې ﴿ مقابلة المثنی بکل فرد فرد من افراد الجمع ﴾ لحاظ ساتلې شي.ددې نه دا خبره په فهم کښې راغله چه په هره خپه کښې دوه کعب دی. او روافض چه څه ته کعب وائی په هغې کښې دتثنيه څه ګنجائش نشته.(١) والله اعلم

**ايا د امام محمدرحمه الله په نزد د کعب نه مراد د ظهر قدم والا لوړ هډوکي دې؟** بعض حضراتو د شيعه ګانو قول چه د کعب نه مراد د ظهر قدم والا لوړ هډوکي دې د دې نسبت د امام محمدرحمه الله طرف ته کړې دی. (٢)

خو دا نسبت اول خو الی غير محله دې، ځکه چه اصل کښې د امام محمدرحمه الله نه د محرِم په سلسله کښې نقل دی چه ﴿ اذالم يجد النعلين فليقطع خفيه اسفل من الکعبين ﴾ يعنی چه کله نعلين نه وی نو خفين دې د کعبين نه لاندې پرې کولو سره استعمال کړی. دې بيان سره هغوی په خپل لاس سره د موضع قطع طرف ته اشاره اوکړه، دا خبره د هغوی شاګرد هشام رازی د طهارت په باب کښې نقل کړې ده. (٣)

بيا به تاسو ته د دې تفصيل نه معلومه شوې وی چه دا نقل هم محتمل شان دی، ځکه چه امام محمدرحمه الله د موضع قطع طرف ته اشاره کولو سره څنګه چه د کعبين نه لاندې لاس کيخودلو . هغه شان ئې د ظهر قدم والا راپورته شوی هډوکی طرف ته اشاره اوکړه، حال دا چه په دې هډوکی باندې د کعب اطلاق مقصود نه وو.

**خپې به وينځلې شی که مسح به پرې کولې شی؟ د علماء کرامو د مذهب تنقيح:** خپې به وينځلې شی که مسح به پرې کولې شی؟ په دې کښې څلور مذاهب دی؛

① اولنې مذهب د ائمه اربعه او جمهور اهل سنت والجماعة دې چه خپې به وينځلې شی.

② دويم مذهب د شيعه ګانو د فرقه اماميه دې چه د خپو وظيفه مسح ده نه غسل.

③ دريم مذهب د امام حسن بصری، محمد بن جرير طبری او ابو علی جبائی معتزلی دې چه

١) السعاية فی کشف ما فی شرح الوقاية ج ١ ص ٧١

٢) قال فی شرح الوقاية (مع السعاية ج ١ ص ٦٩) : ثم الکعب فی رواية هشام عن محمد هو المفصل الذی فی وسط القدم عند معقد الشراک. لکن الاصح نها العظم الناتی الذی ينتهی اليه عظم الساق.

٣) اوګورئ السعاية ج ١ ص ٦٩

د غسل او مسح ترمينځه ورته اختيار دي.
④ څلورم مذهب د اهل ظاهر دې چه غسل او مسح دواړه واجب دي. (۱)
حافظ ابن القيم رحمه الله فرمائي چه دلته چه د تخيير بن الغسل والمسح په قائلين کښې د کوم ابن جرير ذکر کړې شوې دې د هغه نه مراد مشهور معروف امام ابن جرير نه دې بلکه دا يو شيعه مصنف دې، د مشهور محمد بن جرير د نوم او د پلار د نوم سره د اشتراك د وجې نه اشتباه پيدا شوه. هغوی فرمائي چه ما د دې شيعه ابن جرير ډېر کتابونه کتلي دي کوم چه په اصول او فروع کښې د مذهب شيعه سره متعلق دي. (۲)
د حافظ ابن حجر رحمه الله هم دا رائې معلوميږي، هم دغه شان علامه آلوسي رحمه الله هم دغه رجحان ظاهر کړې دې، د دې حضراتو د تصريح مطابق دا شيعه مصنف د امام ابن جرير طبري رحمه الله سره په نوم، د پلار په نوم او کنيت، نسبت او اکثر تصنيفات کښې يو شان دې، خو د نيکۀ په نوم سره دواړو کښې فرق راځي چه د اهل سنت د امام نوم محمد بن جرير بن يزيد طبري دې، او د هغه شيعه نوم محمد بن جرير بن رستم طبري دې. (۳)
خو حافظ ابن کثير رحمه الله فرمائي چه د ابن جرير رحمه الله د مسلك په باره کښې بعض خلق وائي چه هغوی د احاديثو د وجې نه غسل رجلين ته واجب وئيلي دي او د قران کريم د آيت کريمه د وجې نه ئې مسح رجلين ته واجب وئيلې دي، نو دا د هغوی تحقيقي مذهب نه دې، د هغوی په تفسير کښې د هغوی د کلام کتلو نه معلوميږي چه په ﴿ رجلين ﴾ کښې د وجوب دلك قائل دی او هغوی د ﴿ دلك ﴾ نه په مسح سره تعبير کړې دې. والله اعلم
هم دغه شان حافظ ابن کثير رحمه الله فرمائي چه ما د هغوی په کلام کښې غور اوکړو نو معلومه شوه چه هغوی د قراءت نصب او قراءت جر دواړو قراتونو ترمينځه د جمع او تطبيق راوستلو کوشش کړې دې، ګويا د جر قراءت ئې په مسح باندې محمول کړو او هغه د هغوی په نزد ﴿ دلك ﴾ دې او د نصب قراءت ئې په غسل باندې محمول کړې دې دغه شان ئې دواړه قراتونه جمع کړل
اګر چه امام ابن القيم رحمه الله د معروف ابن جرير انکار کړې دې او حافظ ابن کثير رحمه الله د ابن

۱) اوګورئ المجموع شرح المهذب ج ۱ ص ۴۱۷، وعمدة القاري ج ۲ ص ۲۳۸، کتاب الوضوء، باب ما جاء في الوضوء، وقول الله تعالى ﴿إِذَا قُمْتُمْ إِلَى الصَّلَوٰةِ فَاغْسِلُوا وُجُوهَكُمْ﴾
۲) اوګورئ تهذيب سنن ابي داؤد لابن القيم ج ۱ ص ۹۸، کتاب الطهارة، باب صفة وضوء النبي ﷺ قال البنوري رحمه الله : وما قاله ابن القيم فغير متجه فان عبارة ابن جرير فيه ايهام لذلک، وقد کشف ابن کثير في تفسيره عن الامر، وبين وجه النسبة اليه وما يوهم کلامه، ثم بين غرضه، فليراجع من المائدة وقد فهم القاضي ابوبکر ايضا من کلام ابن جرير هذا التخيير بين الغسل والمسح، کما قاله في العارضة واحکام القران له،وکذلک غيرواحد من الاعلام،معارف السنن ج۱ ص۱۸۶، ابواب الطهارة باب ما جاء: ويل للاعقاب من النار.
۳) اوګورئ لسان الميزان: ۲۶، ترجمة محمد بن جرير الطبري . رقم: (۶۵۷۹)، و:۲۹۱۷، ترجمة محمد بن جرير بن رستم الطبري، رقم: (۶۵۸۰)، او اوګورئ روح المعاني : ۷۸/۶

جریر د مسلك په سلسله کښې تاویل کړې دې، خو ډیرو حضراتو د ابن جریر د عبارت هم دا مطلب اخستلې دې چه هغه د تخییر بین الغسل والمسح قائل دې. پس ابن العربیؒ په احکام القران او عارضة الاحوذی کښې د دې تصریح کړې ده. (۱)
حاصل دا چه د اهل سنت والجماعة په نزد په خپې وینځلې شی، مسح جائز نه ده. او د روافض په نزد به په خپو مسح کولې شی او وینځلې به نه شی.
د دواړو ډلو دلائل به انشاء الله وړاندې په تفصیل سره راځی.
**اودس چرته فرض شوې دې؟**: بعض علماء کرام فرمائی چه اودس په مدینه منوره کښې مشروع شوې دې. پس د ابن الجهم مالکیؒ وینا ده چه د هجرت نه مخکښې اودس کول بس مستحب وو، او امام ابن حزمؒ جزما وئیلې دی چه اودس په مدینه منوره کښې مشروع شوې دې
آیت وضوء چونکه مدنی دې په دې وجه د دې آیت کریمه نه هغه خلقو استدلال کړې دې کوم چه وائی چه اودس د ټولو نه مخکښې په مدینه منوره کښې فرض شوې دې. (۲)
خو د دې نه مخکښې د دې کیفیت څه وو؟ ابن عبد البرؒ د اهل سیر په دې باندې اتفاق نقل کړې دې چه په رسول اللهﷺ باندې غسل جنابت د مانځه په شان په مکه کښې فرض شوې وو او په دې خبره هم اتفاق دې چه رسول اللهﷺ کله هم یو مونځ بغیر د اودس نه نه دې کړې. هم دغه شان هغوی فرمائی چه دا خبره د یو عالم نه هم پټه نه ده. (۳)
امام حاکمؒ په مستدرك کښې فرمائی چه اهل سنت ته په دې خبره باندې د دلیل پیش کولو ضرورت دې چه د آیت مائده د نزول نه مخکښې هم اودس مشروع وو. (٤)
امام حاکمؒ په دې سلسله کښې د سیدنا ابن عباسؓ روایت نقل کړې دې:
《دَخَلَتْ فَاطِمَةُ عَلَى رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهِيَ تَبْكِي، فَقَالَ: يَا بُنَيَّةُ، مَا يُبْكِيكِ؟ قَالَتْ: يَا أَبَتِ مَالِي لَا أَبْكِي وَهَؤُلَاءِ الْمَلَأُ مِنْ قُرَيْشٍ فِي الْحِجْرِ يَتَعَاقَدُونَ بِاللَّاتِ وَالْعُزَّى وَمَنَاةَ الثَّالِثَةِ الْأُخْرَى لَوْ قَدْ رَأَوْكَ لَقَامُوا إِلَيْكَ فَيَقْتُلُونَكَ، وَلَيْسَ مِنْهُمْ رَجُلٌ إِلَّا وَقَدْ عَرَفَ نَصِيبَهُ مِنْ دَمِكَ، فَقَالَ: يَا بُنَيَّةُ، ائْتِينِي بِوَضُوءٍ فَتَوَضَّأَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ خَرَجَ إِلَى الْمَسْجِدِ》 (۵)
**یعنی**: سیده فاطمةؓ رسول اللهﷺ ته په ژړا باندې راغله. رسول اللهﷺ ترې تپوس اوکړو نو هغې عرض اوکړو چه زه به ولې نه ژاړم. حال دا دې چه د قریشو سرداران په حطیم کښې ولاړ په لات منات او عزی باندې قسم خوړلو سره عهد کوی چه کله هغوی تاسو وینی

۱) اوګورئ: معارف السنن ج ۱ ص ۱۸۶. اوګورئ: احکام القران لابن العربی: ج ۲ ص ۵۷۷، المسالة الجادیة والاربعون، وعارضة الاحوذی ج ۱ ص ۵۸، ابواب الطهارة، باب ما جاء: ویل للاعقاب من النار.
۲) اوګورئ: فتح الباری ج ۱ ص ۲۳۲ - ۲۳۳
۳) اوګورئ: الاستذکار ج ۱ ص ۳۵۱، کتاب الطهارة، باب التیمم.
٤) المستدرك للحاکم ج ۱ ص ۱۶۳، کتاب الطهارة
۵) المستدرك للحاکم ج ۱ ص ۱۶۳، کتاب الطهارة

نو ستاسو د مقابلې دپاره به اودریږي او تاسو به قتل کړي. په هغوی کښې د هر یو سړي دا خواهش دې چه ستاسو په وینه کښې ورته ضرور څه حصه ملاؤ شي. رسول الله ﷺ اوفرمائیل : اې لوړی! ماته د اودس دپاره اوبه راوړه، رسول الله ﷺ اودس اوفرمائیلو او د مسجد طرف ته اوتلو.

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي چه په دې حدیث سره به د هغه خلقو رد خو اوشي کوم چه د هجرة نه مخکښې د اودس د وجود نه هم انکار کوي خو د دې نه د اودس وجوب نه شي ثابت کیدې. (۱).

ابن الجهم مالکی او ابن حزم باندې د یو بل روایت نه هم رد کیږي کوم چه ابن لهیعه په مغازی کښې د ﴿عن ابی الاسود يتيم عروة عن عروة﴾ په طریق سره مرسلا نقل کړې دې.

﴿ان جبريل علم النبي ﷺ الوضوء عند نزوله عليه بالوحي﴾(۲)

**یعنې** سیدنا جبرائیل علیه السلام رسول الله ﷺ ته هغه وخت اودس ښودلې وو چه کله هغه وحی راوړلو سره نازل شوې وو

دا روایت امام احمد رحمه الله د ابن لهیعه په طریقه سره ﴿عن الزهري عن عروة عن اسامة بن زيد عن ابيه﴾ په سند سره موصولا تخریج کړې دې. (۳)

هم دغه شان امام احمد او د هغوی ځوئي عبد الله رحمه الله د ﴿الهيثم بن خارجة عن رشدين بن سعد عن عقيل عن الزهري عن اسامة بن زيد عن النبي ﷺ﴾ په سند سره حدیث نقل کړې دې ﴿ان جبريل لما نزل على النبي ﷺ فعلمه الوضوء﴾(٤) په دې کښې د سیدنا زید بن حارثه رضي الله عنه ذکر نشته.

په دې طریق کښې رشدین بن سعد ضعیف راوی دې. (۵)

امام ابن ماجه رحمه الله هم په خپل سنن کښې دا حدیث ﴿حسان بن عبد الله، حدثنا ابن لهيعة، عن عقيل، عن الزهري، عن عروة قال حدثنا اسامة بن زيد، عن ابيه زيد بن حارثة﴾ په طریق سره تخریج کړې دې.(۶) په دې کښې هم د ابن لهیعة واسطه موجود ده.

---

۱) فتح الباری ج ۱ ص ۲۳۳

۲) فتح الباری ج ۱ ص ۲۳۳

۳) اوګورئ : مسند احمد ج ٤ ص ۱۶۱، رقم ۱۷۶۱۹، حدیث زید بن حارثه رضي الله عنه

٤) مسند احمد ج ۵ ص ۲۰۳، رقم ۲۲۱۱٤، حدیث اسامة بن زید، حب رسول الله ﷺ

۵) قال الهیثمی فی مجمع الزوائد ج ۱ ص ۲٤۲، کتاب الطهارة، باب نضح الفرج بعد الوضوء، وفیه رشدین بن سعد، وثقه هیثم بن خارجه واحمد بن حنبل فی روایة وضعفه اخرون. قال الحافظ فی تقریب التهذیب ص ۲۱۰و رقم ۱۹٤۲ : ضعیف، رجح ابو حاتم علیه ابن لهیعة، وقال ابن یونس کان صالحا فی دینه، فادرکته غفلة الصالحین فخلط فی الحدیث.

۶) سنن ابن ماجة، کتاب الطهارة، باب ما جاء فی النضح بعد الوضوء رقم ٤۶۲.

**تنبیه:** حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائیلې دي: واخرجه ابن ماجة من روایة رشدین بن سعد..(بقیه برصفحه آئنده..

خو امام طبرانی رحمه الله په المعجم الاوسط کښې د ﴿ سعید بن شرحبیل قال: حدثنا اللیث بن سعد، عن عقیل عن ابن شهاب، عن عروة عن اسامة بن زید عن ابیه زید بن حارثة ﴾ په طریق سره حدیث ذکر کړې دې، په دې کښې نه خو رشدین بن سعد دې او نه ابن لهیعة. (۱)

خو امام طبرانی رحمه الله فرمائی ﴿ لم یروا هذا الحدیث عن اللیث الا سعید بن شرحبیل، والمشهور من حدیث ابن لهیعة ﴾(۲) یعنی: دې حدیث لره د لیث نه نقل کونکې سعید بن شرحبیل دې، خو دا حدیث د ابن لهیعة په طریق سره مشهور دې.

هم دغه شان حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی: ﴿ ولو ثبت لکان علی شرط الصحیح ولکن المعروف روایة ابن لهیعة ﴾(۳) یعنی: که دا طریق ثابت شی نو دا حدیث به د صحیح د شرط مطابق شی خو دا روایت د ابن لهیعة نه معروف دې.

**ایا د وخت د داخلیدو نه مخکښې اودس صحیح دې؟** بعض حضراتو د آیت کریمه ﴿ اذا قمتم الی الصلاة فاغسلوا ﴾ نه په دې باندې استدلال کړې دې چه اودس صرف د وخت د داخلیدو نه پس صحیح دې. د وخت د داخلیدو نه مخکښې صحیح نه دې. (٤)

خو جمهور فرمائی چه د وخت د داخلیدو نه مخکښې اودس بالکل صحیح دې.

هر چه د آیت کریمه نه د استدلال تعلق دې نو هغه په دې وجه صحیح نه دې چه په دې آیت کریمه کښې صلاة د فرض سره نه دې مقید کړې شوې بلکه د امت په اتفاق سره د صلاة نه هر قسم مونځونه مراد دی که فرض وی او که نفل وی، لهذا چه کله نوافل د وخت سره مقید نه دی نو اودس هم د هغې سره نه شی مقید کیدلې. (۵)

د دې نه علاوه په دې خبره باندې د ټولو اتفاق دې چه مونځ په اول وخت کښې یعنی د وخت د داخلیدو سره ادا کول جائز دی او په اول وخت کښې ادا کول ئې صرف په هغه صورت کښې ممکن دی چه کله اودس د وخت د داخلیدو نه مخکښې کړې شوې وی. (۶)

هم دغه شان د جمعې په فضائلو کښې د سیدنا ابوهریره رضی الله عنه حدیث نقل دې!

---

.....بقیه از صفحه گذشته)... عن عقیل، عن الزهری نحوه لکن لم یذکر زید بن حارثة فی السند. فتح الباری ج ۱ ص ۲۳۳. خو په ظاهر کښې حافظ رحمه الله د تسامح سره مخ شوې دې. ځکه چه ابن ماجه د رشدین بن سعد والا طریق نه دې ذکر کړې. بلکه هغوی د ابن لهیعه په طریق سره حدیث ذکر کړې دې. لکه چه پورته په متن کښې د سیاق نه معلومه ده. د رشدین والا طریق امام احمد رحمه الله نقل کړې دې. چه د هغې پورته ذکر راغلې دې. والله اعلم

۱) المعجم الاوسط للطبرانی ج ٤ ص ۱۷٤. رقم الحدیث ۳۹۰۱

۲) پورته حواله

۳) فتح الباری ج ۱ ص ۲۳۳

٤) اوګورئ: المحلی لابن حزم ج ۱ ص ۷٤. کتاب الطهارة، الوضوء قبل الوقت مسالة ۱۱۲

۵) پورته حواله

٦) پورته حواله

《 مَنِ اغْتَسَلَ يَوْمَ الْجُمُعَةِ غُسْلَ الْجَنَابَةِ ثُمَّ رَاحَ فَكَأَنَّمَا قَرَّبَ بَدَنَةً ، وَمَنْ رَاحَ فِي السَّاعَةِ الثَّانِيَةِ فَكَأَنَّمَا قَرَّبَ بَقَرَةً ، وَمَنْ رَاحَ فِي السَّاعَةِ الثَّالِثَةِ فَكَأَنَّمَا قَرَّبَ كَبْشًا أَقْرَنَ ، وَمَنْ رَاحَ فِي السَّاعَةِ الرَّابِعَةِ فَكَأَنَّمَا قَرَّبَ دَجَاجَةً ، وَمَنْ رَاحَ فِي السَّاعَةِ الْخَامِسَةِ فَكَأَنَّمَا قَرَّبَ بَيْضَةً فَإِذَا خَرَجَ الإِمَامُ حَضَرَتِ الْمَلَائِكَةُ يَسْتَمِعُونَ الذِّكْرَ 》(اللفظ للبخاری)(۱) **یعنی** : څوك چه د جمعې په ورځ باندې د غسل جنابة په شان غسل اوكړی او بيا د جمعې دپاره لاړ شي نو ګويا هغه يو اوښ قرباني كړو، څوك چه په دويم ساعت كښې لاړ شي نو ګويا هغه د غوا قرباني وركړه، څوك چه په دريم ساعت كښې لاړ شي نو هغه ته په د ښكرو والا ګډ قرباني كولو ثواب ملاويږي، څوك چه په څلورم ساعت كښې لاړ شي نو هغه ته به د چرګې د صدقه كولو ثواب ملاويږي، او څوك چه په پنځم ساعت كښې لاړ شي نو هغه ته په د اګۍ د صدقه كولو ثواب ملاويږي، بيا چه كله امام (د خطبې دپاره) راوځي نو ملائك هم ذكر او خطبه اوري.

ظاهره دا ده چه د جمعې دپاره حاضرين د وخت نه مخكښې ځي او ذكر شوې ثواب حاصلوي.(۲)

**قوله: قَالَ أَبُو عَبْدِ اللَّهِ وَبَيَّنَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّ فَرْضَ الْوُضُوءِ مَرَّةً مَرَّةً وَتَوَضَّأَ أَيْضًا مَرَّتَيْنِ وَثَلَاثًا:** امام بخاری رحمه الله فرمائی چه رسول الله ﷺ بيان اوفرمائيلو چه په اودس كښې د اندامونو يو يو كرت وينځل فرض دی، رسول الله ﷺ دوه دوه كرته او درې درې كرته هم وينځلي دی

**د ذكر شوې عبارت غرض** : د امام بخاری رحمه الله په دې عبارت سره غرض دا دې چه په آيت مباركه كښې 《 فاغسلوا 》د امر صيغه ده او د امر په ذريعه دا مطالبه كولې شي چه هغه مامور به ته د حقيقت جامه واغوندی، په هغې كښې د 《 مرة 》قيد نه وی، نه موجب تكرار وی او نه د تكرار احتمال لری، چونكه امر صرف د ايجاد حقيقت د طلب دپاره راځي په دې وجه د آيت كريمه نه دا يوه خبره هم نه ثابتيږي، خو د رسول الله ﷺ د سنت نه به د دې شرح او تفسير معلوميږي.

امام بخاری رحمه الله د دې مطابق فرمائی چه رسول الله ﷺ په خپل فعل سره دا بيان اوكړو چه يو يو كرت وينځل فرض دی د دې نه علاوه سنت. (۳)

---

۱) صحيح البخاری ج ۱ ص ۱۲۱و كتاب الجمعة، باب فضل الجمعة، رقم ۸۸۱، وصحيح مسلم، كتاب الجمعة، باب الطيب والسواك يوم الجمعة، رقم ۱۹۶۴، وسنن النسائی، كتاب الجمعة، باب وقت الجمعة، رقم ۱۳۸۹، وسنن ابی داؤد، كتاب الطهارة، باب فی الغسل يوم الجمعة، رقم ۳۵۱، وجامع الترمذی، ابواب الجمعة، باب ما جاء فی التبكير يوم الجمعة، رقم ۴۹۹، ومسند احمد ج ۲ ص ۴۶۰، رقم ۹۹۲۸.

۲) د تفصيل دپاره اوګورئ : المحلی لابن حزم ج ۱ ص ۷۴- ۷۶، كتاب الطهارة، الوضوء قبل الوقت، مسالة ۱۱۲.

۳) اوګورئ : فتح الباری ج ۱ ص ۲۳۳

پس امام بخاری رحمه الله ﴿ وبين النبى ﷺ ان فرض الوضوء مرة مرة ﴾ د تعليق په صورت كښې ذكر كړې دي. وړاندې هغوى باب قائم كړې دې، ﴿ باب الوضوء مرة مرة ﴾ او د هغې د لاندې ئې د ابن عباس رضي الله عنهما مرفوع حديث نقل كړې دې ﴿ توضاء النبى ﷺ مرة مرة ﴾(١)

هم دغه شان ئې باب قائم فرمائيلې دې ﴿ باب الوضوء مرتين مرتين ﴾ او د هغې د لاندې ئې د سيدنا عبدالله بن زيد رضي الله عنه حديث نقل كړې دې. ﴿ ان النبى ﷺ توضاء مرتين مرتين ﴾ (٢)

هم دغه شان ئې د هغې نه روستو باب قائم كړې دې ﴿ باب الوضوء ثلاثا ثلاثا ﴾ او د هغې د لاندې ئې د سيدنا عثمان رضي الله عنه تفصيلى حديث بيان كړې دې، چه په هغې كښې هغوى درې درې كرته د اودس اندامونه وينځلې دى او فرمائى چه رسول الله ﷺ هم دغه شان اودس كولو سره د دې فضيلت بيان اوفرمائيلو. (٣) والله اعلم

**امر د تكرار تقاضه كوى يا نه؟** : د علماء اصول په دې خبره كښې اختلاف دې چه ايا امر د تكرار تقاضه كوى يا نه؟

د احنافو اوحنابله په نزد امرمطلق د تكرار تقاضه نه كوى او نه پكښې د تكرار احتمال شته. ابن بدران. رازى. امدى. ابن الحاجب او بيضاوى رحمهم الله هم دا قول اختيار كړې دې، د علامه ابن السبكى رحمه الله د رائې مطابق د اكثر شوافع هم دا مذهب دې.

قاضى عبدالوهاب د اكثر مالكيانو او ابو اسحاق شيرازى د اكثر شوافع مذهب دا نقل كړې دې چه امر په مرة واحدة باندې دلالت كوى او په هغې كښې د تكرار احتمال دې.

ابو حامد اسفرائينى، ابو اسحاق شيرازى نه علاوه د فقهاء او متكلمينو د يو جماعت رائې دا ده چه امر په تكرار باندې دلالت كوى.

او د يو جماعت په نزد په دې كښې توقف لازم دې، لهذا امر د مرة واحدة دپاره وضع كړې شوې دې يا پكښې د تكرار احتمال دې يا په دې باندې مكررا عمل لازم دې، د دې ټولو امورو نه به توقف كولې شى. (٤)

**قوله**: وَلَمْ يَزِدْ عَلَى ثَلَاثٍ : رسول الله ﷺ په درې كرته وينځلو باندې اضافه نه ده فرمائيلې.

بلكه په درې كرتو باندې اضافه كولو نه حديث كښې منع راغلې ده، د سيدنا عبدالله بن عمرو بن العاص رضي الله عنهما حديث په ابوداؤد شريف كښې دې:

---

١) صحيح البخارى ج ١ ص ٢٧، رقم ١٥٧
٢) صحيح البخارى ج ١ ص ٢٧، رقم ١٥٨
٣) صحيح البخارى ج ١ ص ٢٧، ٢٨، رقم ١٥٩
٤) د مسئلې د تفصيل دپاره اوګورئ: التقرير والتحبير ج ١ ص ٣٧١ – ٣٧٥، وفواتح الرحموت شرح مسلم الثبوت ج ١ ص ٤٠٦ – ٤١١، وكشف الاسرار ج ١ ص ١٨٤ – ١٩٩، والفصول فى الاصول ج ٢ ص ١٣٣ – ١٤٤، والاحكام للامدى ج ٢ ص ١٧٣ – ١٨٠، واصول الفقه الاسلامى ج ١ ص ٢٢٤ – ٢٢٦

﴿ أَنَّ رَجُلاً أَتَى النَّبِيَّ صلى الله عليه وسلم فَقَالَ يَا رَسُولَ اللهِ كَيْفَ الطُّهُورُ فَدَعَا بِمَاءٍ فِي إِنَاءٍ فَغَسَلَ كَفَّيْهِ ثَلَاثًا ثُمَّ غَسَلَ وَجْهَهُ ثَلَاثًا ثُمَّ غَسَلَ ذِرَاعَيْهِ ثَلَاثًا ثُمَّ مَسَحَ بِرَأْسِهِ فَأَدْخَلَ إِصْبَعَيْهِ السَّبَّاحَتَيْنِ فِي أُذُنَيْهِ وَمَسَحَ بِإِبْهَامَيْهِ عَلَى ظَاهِرِ أُذُنَيْهِ وَبِالسَّبَّاحَتَيْنِ بَاطِنَ أُذُنَيْهِ ثُمَّ غَسَلَ رِجْلَيْهِ ثَلَاثًا ثَلَاثًا ثُمَّ قَالَ: هَكَذَا الْوُضُوءُ فَمَنْ زَادَ عَلَى هَذَا أَوْ نَقَصَ فَقَدْ أَسَاءَ وَظَلَمَ ﴾ (١)

يعنى يو سړي د رسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضر شو او عرض ئې اوکړو يا رسول الله ﷺ د اودس طريقه څه ده؟ رسول الله ﷺ په يو لوښي کښې اوبه راطلب کړې، خپل لاسونه مبارك ئې درې کرته وينځل، بيا ئې خپل مخ مبارك درې کرته وينځلو. بيا ئې خپل لاسونه درې کرته وينځلو بيا ئې په خپل سر مبارك باندې مسح اوکړه، د خپل شهادت ګوتې ئې په غوږونو مبارکو کښې دننه کړې، د غوږونو پورته حصه ئې په خپلو غټو ګوتو باندې او دننه حصه ئې د شهادت په ګوتو سره مسح کړهو بيا ئې دواړه خپې درې درې کرته وينځلې، د دې نه پس ئې اوفرمائيل چه اودس به داسې کولې شي، ځوك چه په دې باندې زيادت کوی يا په دې کښې کمې کوی نو هغه بد کوی او ظلم کوی.

دا حديث د ﴿ عمرو بن شعيب عن ابيه عن جده ﴾ په سند سره نقل دې، په دې سند باندې اګر چه محدثينو کافی کلام کړې دې، خو اکثر حضرات دا سند تسليم کوی او حجت ئې منی. پس حافظ ابن حجر رحمه الله د دې حديث په باره کښې فرمائی ﴿ اسناده جيد ﴾(٢)

خو امام مسلم رحمه الله دا حديث د ﴿ عمرو بن شعيب ﴾ د منكر رواياتو نه شمارلې دې. (٣) ځکه چه د رسول الله ﷺ نه د درې نه کم، يعنی يو کرت او دوه کرته وينځلو باندې اکتفاء هم ثابت دی. بيا رسول الله ﷺ د هغې فاعل ته مسئ او ظالم څنګه وئيلې شی؟

غالبا د امام مسلم رحمه الله مقصد پوره حديث لره منكر شمارل نه دی بلکه په دې کښې د ﴿ او نقص﴾ الفاظو زيادت لره منکر شمارل دی، ځکه چه دا حديث امام نسائی. امام ابن ماجه او امام احمد رحمهم الله هم نقل کړې دې او په دې کښې د ﴿ اونقص﴾الفاظ نشته. (٤)

اګر چه شارحينو د ﴿ اونقص﴾تاويل او توجيهات (٥) بيان کړې دی، خو اصل وجه هم دا ده چه دا د راوی وهم دې.

---

١) السنن لابی داؤد، كتاب الطهارة، باب الوضوء ثلاثا ثلاثا رقم ١٣٥.

٢) فتح الباري ج ١ ص ٢٣٣

٣) پورته حواله

٤) اوګورئ : سنن النسائی، كتاب الطهارة باب الاعتداء فی الوضوء، رقم ١٤٠، وسنن ابن ماجة كتاب الطهارة، باب ما جاء فی القصد وكراهة التعدی فيه، رقم ٤٢٢، ومسند احمد ج ٢ ص ١٨٠، مسند عبدالله بن عمرو بن العاص رضي الله عنهما رقم ٦٦٨٤.

٥) د دې تاويلات او توجيهات دپاره اوګورئ: عون المعبود ج ١ ص ٢٢٧ تا ٢٢٩، كتاب الطهارة، باب الوضوء ثلاثا ثلاثا، وبذل المجهود ج ١، ص ٥٩٧، بتحقيق وتعليق الدكتور تقی الدين الندوی.

**د اودس اندامونو لره د درې کرتو نه زيات وينځلو حکم :** امام احمد رحمه الله فرمائی :

﴿ لايزيد على الثلاث الا رجل مبتلى ﴾(١) يعنى : د درې کرته نه زيات اندامونو لره وينځلو والا په د وسوسې په بيمارئ کښې اخته سړې وی.

امام عبد الله بن المبارک رحمه الله فرمائی : ﴿ لا آمن من ازاد على الثلاث ان يأثم ﴾(٢)
يعنى څوک چه د درې کرتو نه زيات اندامونو لره وينځى ماته د هغه د ګناهګاريدو ويره ده.

امام نووی رحمه الله د شوافع درې وجوه ذکر کړې دی. ① زيادت على الثلاث حرام دې.
② زيادت على الثلاث نه حرام دې او نه مکروه دې، خو خلاف اولى دې.
③ زيادت على الثلاث مکروه تنزيهى دې.

امام نووی رحمه الله هم دې اخرى قول ته ترجيح ورکړې ده او فرمائی : ﴿ وهو الصحيح، بل الصواب، تكره كراهة تنزيه، فهذا هو الموفق للاحاديث، وبه قطع جماهير الاصحاب ﴾(٣)
**يعنى** : هم دا خبره صحيح ده، بلکه حقه خبره ده چه کراهت تنزيهى دې، د احاديثو موافق هم دا قول دې او اکثر اصحاب هم دې ته قطعى وئيلې ده.

**د احنافو په نزد د زيادة على الثلاث حکم څه دې؟** : په خلاصه او تاتارخانيه کښې دی چه ﴿ لوزاد على الثلاث فهو بدعة ﴾(٤) يعنى زيادة على الثلاث بدعة دې.

علامه شامی رحمه الله د مختلف اقوالو نقل کولو نه پس فرمائی : ﴿ ويمكن التوفيق بما قدمناه من أنه إذا فعل ذلك مرة لا يكره ما لم يعتقده سنة وإن اعتاده وأصر عليه يكره وإن اعتقد سنية الثلاث إلا إذا كان لغرض صحيح ﴾(٥)
**يعنى** : که د درې کرتو نه زيات وينځل يو کرت موندلې شوې وی نو ترڅو چه هغه سنت نه ګڼړی هيڅ کراهت نشته او که هم دغه شان په اضافې کولو باندې عادت شوې وی او په دې عمل باندې اصرار کوی نو بيا په هر صورت مکروه دې، اګر چه د درې کرته د سنت کيدو عقيده ئې هم وی. مګر دا چه د يو غرض صحيح د لاندې داسې کوی نو بيا کراهت نشته.

حافظ ابن حجر رحمه الله ليکلې دی : ﴿ حكى الدارمي عن قوم ان الزيادة على الثلاث تبطل الوضوء كالزيادة في الصلاة ﴾(٦)

---

١) المغنى لابن قدامة ج ١ ص ٩٥ رقم ١٨٥
٢) پورته حواله
٣) المجموع ج ١ ص ٤٣٩
٤) انظر الفتاوى التاتارخانيه ج ١ ص ٢٢٣، کتاب الطهارة، الفصل الاول، رقم ١٠٤، والسعاية ج ١ ص ١٣٢، تحت قوله : وتثليث الغسل، البحث السابع.
٥) رد المحتار ج ١ ص ٨٩ تحت شرح قوله : وحديث فقد تعدى ...
٦) فتح البارى ج ١ ص ٢٣٤

**يعنى** : څنګه چه په مانځه کښ اضافي کولو سره مونځ فاسد کيږي، هم دغه شان په اودس کښ هم د دري کرتو نه زيات اضافي کولو سره اودس ماتيږي.

**قوله:** وَكَرِهَ أَهْلُ الْعِلْمِ الْإِسْرَافَ فِيهِ وَأَنْ يُجَاوِزُوا فِعْلَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: **ترجمه** : اهل علم په اودس کښ اسراف مکروه ګنړلي دي او دا چه د رسول الله ﷺ د فعل نه تجاوز اوکړې شي.

د زيادة على الثلاث حکم خو مخکښ تير شو، دلته مصنف رحمه الله د اسراف فى الماء مسئلې ته اشاره کړې ده.

**اسراف فى الماء** : دا مسئله مختلف فيها ده، په دې کښ دوه اقوال دي.

صاحب بحر او صاحب د در مختار خو ورته مکروه تحريمى وائى (١)، او د علامه شامى رحمه الله رائې دا ده چه دا کار مکروه تنزيهى دې. (٢)

خو دا اختلاف په ماء مباح او ماء مملوك کښ دې، که وقف اوبه وى نو بالاتفاق حرام دې. (٣)

د شوافع هم دوه قوله دى، د هغوى راجح او مشهور قول دا دې چه مکروه تنزيهى دې، خو د هغوى نه بغوى او متولى وائى چه اسراف حرام دې. (٤)

حنابله هم د اسراف فى الماء کراهت تصريح کړې ده، پس ابن قدامه رحمه الله فرمائى :

﴿ ويكره الاسراف فى الماء والزيادة الكثيرة فيه ﴾ (٥)

**يعنى** : په اوبو کښ اسراف او زيادت کثيره مکروه دې.

د سيدنا عبد الله بن عمرو بن العاص رضى الله عنهما نه روايت دې چه :

﴿ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَرَّ بِسَعْدٍ وَهُوَ يَتَوَضَّأُ، فَقَالَ : مَا هٰذَا السَّرَفُ ؟ فَقَالَ : أَفِي الْوُضُوءِ إِسْرَافٌ ؟ قَالَ : نَعَمْ، وَإِنْ كُنْتَ عَلَى نَهَرٍ جَارٍ ﴾ (٦)

---

١) انظر : البحر الرائق ج ١ ص ٢٩، سنن الوضوء، قال فى الدر : ومكروهه (والاسراف) ومنه الزيادة على الثلاث (فيه) تحريما .... قال الشامى : قوله تحريما الخ : نقل ذلك فى الحلبة عن بعض المتاخرين مز الشافعية، وتبعه عليه فى البحر وغيره... انظر رد المحتار ج ١ ص ٩٧، ٩٨.

٢) اوګورئ: رد المحتار ج ١ ص ٩٨

٣) قال فى الدر ج ١ ص ٩٧، ٩٨ : وأما الموقوف على من يتطهر به ومنه ماء المدارس فحرام. قال فى رد المحتار ج ١ ص ٩٨ : قوله ( فحرام ) لأن الزيادة غير مأذون بها لأنه إنما يوقف ويساق لمن يتوضأ الوضوء الشرعى ولم يقصد إباحتها لغير ذلك حلية. وينبغى تقييده بماء ليس بجار كالذى فى الصهريج أو حوض أو نحو إبريق أما الجارى كماء مدارس دمشق وجوامعها فهو من المباح كماء النهر كما أفاده الرحمتى.

٤) المجموع ج ٢ ص ١٩٠

٥) المغنى لابن قدامة ج ١ ص ١٤٢، فصل : وان زاد على المد فى الوضوء والصاع فى الغسل جاز.

٦) سنن ابن ماجة، كتاب الطهارة، باب ما جاء فى القصد فى الوضوء وكراهية التعدى فيه، رقم ٤٢٥، هم دغه شان اوګورئ. مسند احمد ج ٢ ص ٢٢١، مسند عبدالله بن عمرو رقم (٧٠٦٥)

یعنی : رسول الله ﷺ په سیدنا سعد رضي الله عنه باندې ورتیر شو، هغوی اودس کولو، رسول الله ﷺ اوفرمائیل دا څنګه اسراف دې؟ سعد رضي الله عنه عرض اوکړو ایا په اودس کښې هم اسراف وی؟ رسول الله ﷺ اوفرمائیل : اګر چه ته په جاری نهر باندې اودس ولې نه کوې.

د سیدنا عبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه روایت دې : ﴿ رَأَى رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَجُلًا يَتَوَضَّأُ، فَقَالَ : لَا تُسْرِفْ، لَا تُسْرِفْ ﴾(۱) یعنی : رسول الله ﷺ یو سړي په اودس کولو باندې اولیدو. وې فرمائیل چه اسراف مه کوه، اسراف مه کوه. والله سبحانه وتعالیٰ اعلم

**د اودس په اندامونو کښې د تثلیث فی الغسل حکم** د اودس په اندامونو کښې درې کرته د وینځلو حکم ورکولې شی. په دې کښې د فرض او سنت په تعیین کښې اختلاف دې.

یو قول دا دې چه یو کرت وینځل فرض دی، دویم کرت وینځل سنت دی، او دریم کرت وینځل د هغې د تکمیل دپاره دی.

یو قول دا دې چه اول کرت وینځل خو فرض دی، باقی دواړه کرته سنت دی.

یو قول دا دې چه دویم کرت وینځل سنت دی او دریم کرت نفل دی.

یو قول د دې برعکس دې چه دویم کرت وینځل نفل او دریم کرت وینځل سنت دی.

د ابوبکر الاسکاف رحمه الله نه نقل دی چه درې واړه کرته وینځل فرض دی.

علامه ابن الهمام رحمه الله په فتح القدیر کښې لیکلي دی چه ﴿ الحق هو ان مجموع الثانیة والثالثة سنة واحدة ﴾ یعنی دویم کرت او دریم کرت د دواړو مجموعه سنت ده. هم دا خبره صاحب بحر اختیار کړې ده

صاحب د السراج الوهاج فرمائی چه اول کرت خو وینځل فرض دی او دویم او دریم کرت وینځل ئې سنت مؤکده دی. (۲) والله اعلم

**ایا تثلیث سنت نه دې؟** : علامه ابن العربی رحمه الله په احکام القران کښې ذکر کړې دی چه د امام مالک رحمه الله په نزد تثلیث فی نفسه مسنون نه دې، بلکه دا تثلیث د استیعاب په غرض سره مشروع دی. هم دا وجه ده چه امام مالک رحمه الله یو عدد ته هم مسنون نه دې وئیلې. (۳) خو د ابن العربی رحمه الله دا قول قابل تسلیم نه دې، ځکه چه اول خو جمهور علماء هم دا فرمائی چه نفس تثلیث فی الغسل مسنون دې.

ددې نه علاوه په حدیث شریف کښې چه هر کله دا وضاحت دې چه رسول الله ﷺ د اودس اندامونه یو یو کرت هم وینځلې دی نو ظاهره هم دا ده چه دا اودس به استیعاب سره وی، ځکه چه که د وینښته برابر ځائې هم اوچ پاتې شوې وی نو اودس نه کیږی او په دې سره به مونځ صحیح نه وی.

۱) سنن ابن ماجة، کتاب الطهارة، باب ما جاء فی القصد فی الوضوء وکراهیة التعدی فیه رقم ۴۲۴.
۲) اوګورئ: السعایة ج ۱ ص ۱۳۱، البحث الخامس
۳) اوګورئ احکام القران لابن العربی ج ۲ ص ۵۸۲، المسالة الثامنة والاربعون

بیا په مضمضمه او استنشاق کښې بالاتفاق تثلیث مستحب دي، حال دا چه په مضمضه او استنشاق کښې په یوکرت استیعاب حاصلیدل یقیني دي، که تثلیث في نفسه خپله یو امر مستحب او مستحسن بالذات نه وي نو دلته به تثلیث ولې وي. (۱)

## ۲ بَاب لَا تُقْبَلُ صَلَاةٌ بِغَيْرِ طُهُورٍ

**د مخکښې باب سره مناسبت** : امام بخاري رحمه الله د مخکښې باب ﴿ باب ما جاء في الوضوء ﴾ نه د اودس فرضیت ثابت کړې وواو په دې باب کښې دا بیانوی چه اودس د مانځه دپاره شرط دې او په دې کښې د چا هیڅ اختلاف نشته.

**د ترجمة الباب مقصد** : هم د دې ځائې نه د ترجمة الباب مقصد هم واضح شو چه امام بخاري رحمه الله د ذکر شوی باب نه د اودس فرضیت یا د اودس شرطیت ثابتول غواړي. (۲)

**د حدیث شریف نه د ترجمة الباب انعقاد** : دلته امام بخاري رحمه الله د یو حدیث ټکړه د ترجمة الباب په طور ذکر کړې ده، کومه چه امام مسلم، امام ترمذی او امام ابن ماجه رحمهم الله د سیدنا عبدالله بن عمر رضي الله عنهما او امام ابوداؤد، امام نسائی او ابن ماجه رحمهم الله د سیدنا اسامه بن عمیر هذلی رضي الله عنه نه نقل کړې ده. (۳)

د هغې یوه ټکړه خو دلته امام بخاري رحمه الله ذکر کړې ده ﴿ لا تقبل صلاة بغير طهور ﴾ او دویمه ټکړه ﴿ لا يقبل الله صدقة من غلول ﴾ ئې په کتاب الزکاة کښې نقل کړې ده. (٤)

او دا خبره د امام بخاري رحمه الله د اصول مطرده نه ده چه هغه د ترجمة الباب په طور کله کله لفظ حدیث هم راوړي، چه د هغې مطلب دا وی چه حدیث في نفسه ثابت دې، اګر چه د امام بخاري رحمه الله د شرط مطابق نه دې. (۵)

﴿ لا تقبل صلاة بغير طهور ﴾ قاضي عیاض رحمه الله فرمائی چه دا حدیث د وجوب طهارت په سلسله کښې نص دې. د فرض مونځ دپاره د دې په وجوب کښې هیڅ اختلاف نشته. (۶)

خو ابو عبدالله ابي رحمه الله په دې باندې اشکال کړې دې چه په حدیث کښې اودس د قبول دپاره شرط دې او قبول اخص دې د صحت په مقابله کښې او کوم چه د اخص دپاره شرط وی نو ضروری نه ده چه هغه دې د اعم دپاره هم شرط وی، دلته قبول اخص دې، ځکه چه د دې

---

۱) اوګورئ: فضل الباري ج ۲ ص ۲۰۷
۲) اوګورئ: الکنز المتواری فی معادن لامع الدراری وصحيح البخاري ج ۳ ص ۸
۳) اوګورئ: صحيح مسلم، كتاب الطهارة، باب وجوب الطهارة للصلاة، رقم ۵۳۵، وجامع الترمذي، فاتحة كتاب الطهارة، باب ما جاء: لا تقبل صلاة بغير طهور رقم ۱، وسنن ابن ماجة، كتاب الطهارة، باب لا يقبل الله صلاة بغير طهور، رقم ۲۷۲، هم دغه شان اوګورئ: سنن النسائي، كتاب الطهارة، باب فرض الوضوء، رقم ۱۳۹، وسنن ابن ماجة، كتاب الطهارة، باب لا يقبل الله صلاة بغير طهور، رقم ۲۷۱.
٤) اوګورئ: صحيح البخاري ج ۱ ص ۲۵، رقم الباب ۲ و ج ۱ ص ۱۸۹، رقم الباب ۷.
۵) اوګورئ: مقدمة لامع الدراري (الكنز المتواري) ج ۱ ص ۳۵۱
۶) اوګورئ: اكمال المعلم ج ۲ ص ۱۰

معنى ده: حصول الثواب على الفعل او "صحت" اعم دي، ځکه چه ددي معنى ده: ﴿ وقوع الفعل مطابقاللامر ﴾ لهذا هر مقبول صحيح دي، دغه شان د دي برعكس د هر صحيح مقبول كيدل ضروري نه دی، دلته د شرط طهارت د انتفاء سره چه د كوم څيز نفى كيږى هغه قبول دي صحت نه دي او چه هر كله صحت منتفى شوې نه دې نو د حديث نه به په وجوب طهارت باندې استدلال هم صحيح نه وى. (١)

د دي اشكال جواب دا دې چه د لفظ قبول حقيقى او اصل معنى ده ﴿ ثمرة وقوع الطاعة مجزئة رافعة لما فى الذمة ﴾ يعنى داسې اطاعت كوم چه كافى وى او د ذمه نه انسان برى كړى، په هغې چه كومه ثمره مرتب كيږى هغې ته قبول وئيلې شي او د طاعت كافى كيدل او د هغې رافع للذمة كيدل په دې خبره باندې موقوف دى چه هغه شرائط او اركان لره جامع وى، د طاعت شرائط او اركان لره جامع كيدل د هغې د موجب كافى كيدو مظنه دې، بل طرف ته صحت مظنه قبول دې. نو چونكه صحت مظنه قبول دې او قبول په صحت باندې مرتب كيږى. په دې وجه قبول وئيلو سره دلته د صحت معنى مراد اخستلې شوې ده. (٢)

حاصل د دې دا دې چه: د قبول دوه قسمونه دى.

يو دا چه ﴿ ان يكون الشئ مستجمعا للاركان والشرائط ﴾ يعنى د يو څيز ټولو اركانو او شرطونو لره جامع كيدل. صحت او اجزاء د هغې مترادف دى هم دې ته قبول اجابت وئيلې شي. (٣)

دويم دا چه ﴿ كون الشئ يترتب عليه من وقوعه عند الله جل ذكره، موقع الرضاء، ويترتب عليه الثواب والدرجات ﴾ يعنى د يو څيز د الله پاك په نزد د هغه د رضا په مقام باندې واقع كيدل، په څه باندې چه ثواب او د درجاتو اوچتولې مرتب وى.

دا دويمه مرتبه د اولې مرتبې نه روستو ده. هم دې ته قبول اثابت وئيلې شي. (٤)

لفظ قبول د شارع په نطق كښ د دواړه قسم معانى دپاره مستعمل شوې دې، پس د سيده عائشه رضي الله عنها مرفوع روايت دې ﴿ لايقبل الله صلاة حائض الا بخمار (٥) ﴾

---

١) اوګورئ: اكمال المعلم ج ٢ ص ٧

٢) فتح البارى ج ١ ص ٢٣٥

٣) انظر: تعليقات الشيخ الكاندهلوى رحمه الله تعالى على بذل المجهود ج ١ ص ٣٥٨، كتاب الطهارة، باب فرض الوضوء

٤) د تفصيل دپاره اوګورئ: معارف السنن ج ١ ص ٢٩، ٣٠، ابواب الطهارة، باب ما جاء: لا تقبل صلاة بغير طهور ... هم دغه شان اوګورئ: تعليقات شيخ الحديث رحمه الله عليه على بذل المجهود. ج ١ ص ٣٥٨، كتاب الطهارة، باب فرض الوضوء.

٥) سنن ابى داؤد، كتاب الصلوة، باب: المراة تصلى بغيرخمار، رقم(٦٤١)، وسنن الترمذى أبواب الصلاة، باب ما جاء لاتقبل صلاة المراة الحائض الا بخمار، رقم (٦٧٧)، وسنن ابن ماجه، كتاب الطهارة، باب: اذا حاضت الجارية لم تصل الا بخمار، رقم (٦٥٥)، ومسند احمد ١٥٠/٦، رقم: (٢٥٦٨٢).

يعنی الله پاك د بالغې زنانه مونځ بغير د لوټې څادر نه نۀ قبلوی. دلته قبول په معنی د صحت دې.

هم دغه شان د رسول اللهﷺ ارشاد دې ﴿ من اتى عرافا فسأله عن شئ لم تقبل له صلاة اربعين ليلة ﴾(١) يعنی څوك چه يو نجومی ته لاړ شی او د هغه نه تپوس اوكړی نو د هغه د څلويښتو ورځو مونځونه نه قبليږی.

دلته د ﴿ قبول ﴾ نه مراد د دې معنی اخص ده، په دې معنی كښ د سيدنا عبد الله بن عمر رضي الله عنهما ارشاد دې ﴿ لان تقبل لى صلاة واحدة احب الى من جميع الدنيا ﴾(٢) يعنی كه زما يو مونځ هم د قبول درجه بيا مومی زما په نزد دا د ټولې دنيا نه غوره دې.

دلته اختلاف دا دې چه د قبول حقيقى معنى څه ده؟ حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه د قبول حقيقی معنی هغه ده كومه چه د ﴿ عراف ﴾ والا حديث كښ تيره شوه او په ﴿ لا تقبل صلاة بغير طهور ﴾ كښ معنی مجازی ده او په دې حديث كښ معنی مجازی مراد ده. (٣)

او علامه شبير احمد عثمانی رحمه الله د دې برعكس په ترجمة الباب والا حديث كښ قبول په معنی حقيقی او د عراف والا حديث كښ قبول په معنی مجازی باندې د مراد كيدو قائل دې. (٤)

د قبول حقيقی معنی څه ده؟ او مجازی څه ده؟ د دې خبرې نه قطع نظر كولو سره دا خبره متعين ده چه دلته بالاجماع قبول اجابت مراد دې (٥)، چه د هغې مطلب دا دې چه بغير د اودس نه به مونځ نه صحيح كيږی. والله اعلم

**قوله: بغير طهور:** طهور په ضمې د طاء سره حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی :

---

١) صحيح مسلم، كتاب السلام، باب تحريم الكهانة واتيان الكهان، رقم ٥٨٢١، ومسند احمد ج ٤ ص ٦٨، حديث بعض ازواج النبى ﷺ ١٦٧٥٥، و ج ٥ ص ٣٨٠، رقم ٢٣٦١٠

٢) انظر : فتح البارى ج ١ ص ٢٣٥، هذا ولم اجد هذا الاثر فى المرجع التى عندنا عن عبدالله بن عمر رضي الله عنهما بهذا اللفظ. نعم قد اخرج ابن عساكر بسنده. قال دخل سائل الى ابن عمر. فقال لابنه : اعطه دينارا. فاعطاه. فلما انصرف قال ابنه : تقبل الله منك يا ابتاه! فقال : لو علمت ان الله تقبل منى سجدة واحدة او صدقة درهم لم يكن غائب احب الى من الموت، تدرى ممن يتقبل الله؟ انما يتقبل الله من المتقين. انظر الدر المنثور ج ٢ ص ٢٧٤.

وقد اخرج ابن ابى حاتم بسنده عن ابى الدرداء رضى الله عنه قوله : لان استيقن ان الله قد تقبل منى صلاة واحدة احب الى من الدنيا وما فيها، ان الله يقول : انما يتقبل الله من المتقين. انظر : تفسير ابن كثير ج ١ ص ٤٣، والدر المنثور ج ٢ ص ٢٧٣، ٢٧٤

٣) اوګورئ : فتح البارى ج ١ ص ٢٣٥

٤) فتح الملهم ج ١ ص ٥٨٧، ٥٨٨، كتاب الطهارة، باب وجوب الطهارة للصلاة.

٥) اوګورئ : تعليقات شيخ الحديث على بذل المجهود ج ١ ص ٣٥٨

﴿ والمراد به ما هو اعم من الوضوء والغسل ﴾(١) یعنی د طهور نه عمومی معنی مراد ده، اودس هم ممکن دي او غسل هم، گویا دا بیانول مقصود دی چه که حدث اصغر وی نو د هغې ازاله او که حدث اکبر وی نو د هغې ازاله د مانځه دپاره ضروری ده، د یو حدث په موجودګئ کښې هم مونځ صحیح نه دي.

علامه شبیر عثمانی رحمه الله نور هم په عموم سره فرمائی: ﴿ والمراد به ما هو اعم من الوضوء والغسل والتیمم ﴾(٢) یعنی د طهور نه عام مراد دي، که اودس وی یا غسل وی یا تیمم وی، په دې کښې به د یو نه بغیر هم مونځ مقبول او صحیح نه وی. والله اعلم

١٣٥: ﴿حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ الْحَنْظَلِيُّ قَالَ أَخْبَرَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ قَالَ أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنْ هَمَّامِ بْنِ مُنَبِّهٍ أَنَّهُ سَمِعَ أَبَا هُرَيْرَةَ(٣) يَقُولُ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تُقْبَلُ صَلَاةُ مَنْ أَحْدَثَ حَتَّى يَتَوَضَّأَ قَالَ رَجُلٌ مِنْ حَضْرَمَوْتَ مَا الْحَدَثُ يَا أَبَا هُرَيْرَةَ قَالَ فُسَاءٌ أَوْ ضُرَاطٌ﴾(٦٥٥٤)

## رجال الحدیث

① **اسحاق بن ابراهیم حنظلی**: دا مشهور محدث او فقیه اسحاق بن راهویه رحمه الله دې. د هغوی حالات په کتاب العلم کښې د ﴿ باب فضل من علم وعلم ﴾ لاندې تیر شوي دی. (٤)

② **عبدالرزاق**: دا امام ابوبکر عبدالرزاق بن همام صنعانی رحمه الله دې، د هغوی حالات په کتاب الایمان ﴿باب الصلاة من الایمان﴾ د لاندې تیر شوي دی. (٥)

③ **معمر**: دا امام معمر بن راشد ازدی رحمه الله دې، د هغوی مختصر حالات په ﴿ بدء الوحی ﴾ د شپږم حدیث د لاندې(٦) او په لږ شان تفصیل سره په کتاب العلم ﴿ باب کتابة العلم ﴾ د لاندې تیر شوي دی. (٧)

---

١) فتح الباری ج ١ ص ٢٣٤

٢) فتح الملهم ج ١ ص ٥٨٩

٣) قوله: ابا هريرة رضی الله عنه الحدث: اخرجه البخاری ایضا فی صحیحه ج ٢ ص ١٠٢٨، کتاب الحیل، باب فی الصلاة رقم ٦٩٥٤، ومسلم فی صحیحه، کتاب الطهارة باب وجوب الطهارة للصلاة، رقم ٥٣٧، وابوداؤد فی سننه، فی کتاب الطهارة، باب فرض الوضوء، رقم (٦٠) والترمذی فی جامعه، ابواب الطهارة، باب ما جاء فی الوضوء من الریح، رقم (٧٦) واحمد فی مسنده ج ٢ ص ٢٠٨، رقم ٨٠٦٤، وج ٢ ص ٣١٨، رقم ٨٢٠٦، وعبدالرزاق فی مصنفه ج ١ ص ١٣٩، کتاب الطهارة، باب الوضوء من الحدث، رقم (٥٣٠)

٤) کشف الباری ج ٣ ص ٤٢٨

٥) کشف الباری ج ٢ ص ٤٢١

٦) کشف الباری: ١/ ٤٦٥ و٤٦٦.

٧) کشف الباری ج ٤ ص ٣٢١

④ **همام بن منبه** : دا همام بن منبه بن کامل بن سیج یمانی صنعانی ابناوی رحمه الله دي. د هغوی حالات په کتاب الایمان ﴿ باب الصلاة من الایمان ﴾ د لاندې (۱) او بیا کتاب العلم ﴿ باب کتابة العلم ﴾ د لاندې تیر شوي دی. (۲)

⑤ **سیدنا ابوهریره رضي الله عنه** : د ابوهریره رضي الله عنه تفصیلي حالات په کتاب الایمان ﴿ باب امور الایمان ﴾ د لاندې تیر شوي دی. (۳)

**قوله:** قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تُقْبَلُ صَلَاةُ مَنْ أَحْدَثَ حَتَّى يَتَوَضَّأَ : **ترجمه**: رسول الله ﷺ فرمائي : چه چاته بې اودسی اورسیږی نو د هغه مونځ نه قبلیږی ترڅو پورې چه ئې اودس نه وی کړې.

دلته ﴿لا تقبل﴾ په صیغه د مجهول راغلې دې او په کتاب الحیل کښې ﴿ لایقبل ﴾ راغلې دې. (٤)

د دې حدیث نه معلومه شوه چه بغیر د اودس نه مونځ نه قبلیږی، خو دلته دې دا خبره هم په ذهن کښې اوساتلې شي چه اودس د مانځه د صحت په شرطونو کښې یو شرط دې، لهذا د مانځه د صحیح کیدو د پاره د اودس او طهارت سره د نور شرطونو پوره کیدل هم ضروری دی.

**د جنازې د مانځه د پاره طهارت** : په حدیث شریف کښې چه دا راغلې دی چه بغیر د اودس نه مونځ نه قبلیږی، د فرائضو په باره کښې خو اتفاق دې، خو د جنازې د مانځه د پاره هم اودس شرط دې یا نه؟ په دې کښې لږ شان اختلاف دې.

د جمهور علماء کرامو په نزد د طهارت شرط د هر قسمه مونځونو د پاره دې، که فرائض وی یا د جنازې مونځ وی یا د اخترونو مونځ وی.

خو د امام شعبی او محمد بن جریر طبری رحمهما الله نه منقول دی چه هغوی د جنازې د مانځه د پاره اودس نه شرط کوی. (۵)

---

۱) کشف الباری ج ۲ ص ٤۲۸
۲) کشف الباری ج ٤ ص ۳۱۷
۳) کشف الباری ج ۱ ص ۶۵۹
٤) اوګورئ: صحیح البخاری ج ۲ ص ۱۰۲۸، کتاب الحیل، باب فی الصلاة رقم ٦٩٥٤
٥) قال ابن رشد رحمه الله : فاتفق المسلمون على أن الطهارة شرط من شروط الصلاة لمكان هذا وإن كانوا اختلفوا هل هي شرط من شروط الصحة أو من شروط الوجوب ولم يختلفوا أن ذلك شرط في جميع الصلوات إلا في صلاة الجنازة وفي السجود أعني سجود التلاوة فإن فيه خلافا شاذا. والسبب في ذلك الاحتمال العارض في انطلاق اسم الصلاة على الصلاة على الجنائز وعلى السجود فمن ذهب إلى أن اسم الصلاة ينطلق على صلاة الجنائز وعلى السجود نفسه وهم الجمهور اشترط هذه الطهارة فيهما ومن ذهب إلى أنه لا ينطلق عليهما إذ كانت صلاة الجنائز ليس فيها ركوع ولا سجود وكان السجود أيضا ليس فيه قيام ولا ركوع لم يشترط هذه الطهارة فيهما. بداية المجتهد ج ۱ ص ٤۱، الباب الخامس في معرفة الافعال التي تشترط هذه الطهارة في فعلها.

دا حضرات فرمائی چه د دې دپاره طهارت په دې وجه شرط نه دې ځکه چه هغه صلاة نه دې بلکه د مړی دپاره دعا او استغفار دی.

جمهور علماء ارشاد فرمائی چه صلاة الجنازه صلاة دې او د دې دلیل دا دې چه رسول الله ﷺ په دې باندې د صلاة اطلاق کړې دې. بله دا چه په دې کښې د صلاة خصائص موندلې شی، پس په دې کښې تکبیر تحریمه دې، تسلیم دې، قیام دې، استقبال قبله دې، بس صرف رکوع او سجود پکښې نه موندلې کیږی چه یو جاهل په دې غلطئ کښې اخته نه شی چه دا د مړی اطاعت او عبادت کولې شی، او د بعض علماء کرامو په نزد خو پکښې قراءت هم ضروری دې. (۱)

**د سجده تلاوت دپاره طهارت** : د سجده تلاوت دپاره د جمهورو په نزد طهارت شرط دې. امام ابن ابی شیبه رحمه الله په صحیح سند سره د امام شعبی رحمه الله (۲) او په حسن سند سره د عبدالرحمن سلمی رحمه الله نه نقل کړی دی چه طهارت شرط نه دې. (۳)

هم دا خبره د سیدنا ابن عمر رضی الله عنهما نه منقول ده، پس امام بخاری رحمه الله په ﴿ابواب سجود القران﴾ کښې لیکلې دی : ﴿کان ابن عمر یسجد علی غیر الوضوء﴾ (٤) صرف د ابو محمد اصیلی په نسخه کښې ﴿علی وضوء﴾ واقع شوې دې، خو دا نسخه مرجوح ده. (٥)

امام ابن ابی شیبه رحمه الله د سیدنا ابن عمر رضی الله عنهما نه نقل کړی دی چه هغوی به په سفر کښې وو، په لاره کښې به کوز شو متیازې به ئې اوکړې، بیا به ئې په سورلئ باندې سوریدو سره کلام پاک

---

۱) اختلف الناس فی القراءة فی صلاة الجنازة. فقال مالک وابوحنیفة : لیس فیها قراءة انما هو الدعاء. وقال الشافعی : یقراء بعد التکبیرة الاولی بفاتحة الکتاب. وبه قال احمد وداؤد. بدایة المجتهد ج ۱ ص ۲۳۵، الباب الخامس فی الصلاة علی الجنازة. الفصل الاول فی صفة صلاة الجنازة. المسالة الثانیة.

۲) حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، عَنْ زَكَرِيَّا، عَنِ الشَّعْبِيِّ، قَالَ : فِي الرَّجُلِ يَقْرَأُ السَّجْدَةَ وَهُوَ عَلَى غَيْرِ وُضُوءٍ، قَالَ : يَسْجُدُ حَيْثُ كَانَ وَجْهُه. المصنف لابن ابی شیبة ج ۳ ص ٤١٠، کتاب الصلاة، باب فی الرجل یسمع السجدة، وهو علی غیر وضوء، رقم (٤٣٥٧)

۳) قال الحافظ رحمه الله فی فتح الباری ج ۲ ص ٥٥٤، کتاب سجود القران، باب سجود المسلمین مع المشرکین : لم یوافق ابن عمر أحد علی جواز السجود بلا وضوء إلا الشعبی أخرجه ابن أبی شیبة عنه بسند صحیح وأخرجه أیضا بسند حسن عن أبی عبد الرحمن السلمی أنه کان یقرأ السجدة ثم یسلم. (قال محققه کذا فی الامیریة والمخطوطة. ولعل الصواب، ثم یسجد ... بدل ... ثم یسلم ...... وهو علی غیر وضوء، الی غیر القبلة وهو یمشی، یومی ایماء.

قلت : لم اجد فی المصنف لابن ابی شیبة شیئا عن ابی عبدالرحمن فیما رجعت الیه، نعم وجدت عنده : عن ابی عبدالرحمن قال : کان یقراء السجدة وهو علی غیر القبلة، وهو یمشی فیؤمی براسه، ثم یسلم.

انظر : المصنف ج ۳ ص ٤١١، کتاب الصلاة، باب الرجل یقراء السجدة وهو علی غیر القبلة، رقم ٤٣٦٠، و لیس هناک روایة ثبت فیها عن ابی عبدالرحمن السلمی انه کان یقراء السجدة وهوعلی غیروضوء. والله اعلم

٤) صحیح البخاری ج ۱ ص ١٤٦، کتاب سجود القران، باب سجود المسلمین مع المشرکین.

٥) اوګورئ فتح الباری ج ۲ ص ٥٥٣، کتاب سجود القران، باب سجود المسلمین مع المشرکین.

لوستلو او چه کله به آیت سجده راغلو نو سجده به ئې کوله. (١)

خو امام بیهقي رحمه الله د سیدنا ابن عمر رضی الله عنهما نه نقل کړی دی چه: ﴿لایسجد الرجل الا هو طاهر﴾ (٢)
دا په ظاهره کښې په حدث اکبر یا اختیار باندې محمول دې او ابن ابی شیبه چه کوم نقل کړې دې هغه په حدث اصغر یا حالت اضطرار باندې محمول دې.
حاصل دا چه سیدنا ابن عمر رضی الله عنهما به د سجده تلاوت دپاره اودس کول ضروری نه ګڼړلو.
جمهور علماء کرام فرمائی چه هر کله د مانځه دپاره اودس شرط دې نو د سجدې دپاره به خو په طریقه اولی شرط وی، ځکه چه سجده خو د مانځه ډیر اهم رکن دې، رسول الله ﷺ فرمائی: ﴿اقرب مایکون العبد من ربه وهو ساجد﴾ (٣)
خو د نورو حضراتو د طرف نه علامه ابن تیمیه رحمه الله وغیره فرمائی چه که د مانځه دپاره شرط دې نو د دې نه دا ځنګه لازمه شوه چه د بعض صلاۃ یعنی د سجده تلاوت دپاره هم شرط وی، کیدې شی چه د کل دپاره خو شرط وی خو د جزء دپاره شرط نه وی. (٤)
د دې دلیل دا دې چه په صحیح بخاری کښې دی:
﴿أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَجَدَ بِالنَّجْمِ وَسَجَدَ مَعَهُ الْمُسْلِمُونَ وَالْمُشْرِكُونَ وَالْجِنُّ وَالْإِنْسُ﴾ (٥)
یعنی رسول الله ﷺ د سورة نجم آیت سجده تلاوت کړو او سجده ئې اوکړه، رسول الله ﷺ سره ټولو مسلمانانو، مشرکانو او جن او انس سجده اوکړه.
د دې نه داسې استدلال کړې شوې دې چه دا ډیره بعیده ده چه دا ټول حضرات دې په اودس کښې وې، هم دغه شان د ابن عمر رضی الله عنهما روایت دې چه:
﴿كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقْرَأُ عَلَيْنَا السُّورَةَ فِيهَا السَّجْدَةُ فَيَسْجُدُ وَنَسْجُدُ حَتَّى مَا يَجِدُ أَحَدُنَا مَوْضِعَ جَبْهَتِهِ﴾ (٦)
یعنی رسول الله ﷺ به مونږ ته د سجدې والا یو آیت کریمه تلاوت فرمائیلو سره سجده کوله نو هغوی سره به مونږ هم سجده کوله، تردې چه کله به داسې کیدل چه په مونږ کښې به

١) المصنف لابن ابی شیبة ج ٣ ص ٤٠٩، کتاب الصلاة، باب فی الرجل یسمع السجدة وهو علی غیر وضوء . رقم ٤٣٥٤
٢) السنن الکبری للبیهقی ج ١ ص ٩١، کتاب الطهارة، باب استحباب الطهر للذکر والقراءة، و جزء ٢ ص ٣٢٥، کتاب الصلاة، باب لا یسجد الا طاهرا.
٣) صحیح مسلم، کتاب الصلاة، باب ما یقال فی الرکوع والسجود، رقم ١٠٨٣، وسنن النسائی، کتاب الصلاة، باب اقرب ما یکون العبد من الله عزوجل، رقم ١١٣٨، وسنن ابی داؤد، کتاب الصلاة، باب فی الدعاء فی الرکوع والسجود، رقم ٨٧٥
٤) اوګورئ: مجموع الفتاوی لشیخ الاسلام ابن تیمیة ج ٢١ ص ١٤١، قسم الفقه، مسالة ما تجب له الطهارتان: الغسل والوضوء.
٥) صحیح البخاری ج ١ ص ١٤٦، کتاب سجود القران، باب سجود المسلمین مع المشرکین رقم ١٠٧١.
٦) صحیح البخاری ج ١ ص ١٤٦، کتاب سجود القران، باب من سجد بسجود القاری رقم ١٠٧٥

بعضو ته د تندی د کیخودلو ځائې هم نه ملاویدو.
د دې نه داسې استدلال کړې شوې دې چه د سیدنا ابن عمر رضی الله عنهما په باره کښې شاته تیر شو چه هغوی به بغیر د اودس نه سجده تلاوت کوله، چه هر کله د ابن عمر رضی الله عنهما په شان فقیه او د رسول الله ﷺ د سنتو سره سخت محبت کونکی صحابی دا حال دې نو یقینا نورو صحابه کرامو رضی الله عنهم به هم دا لازم نه گنړله. (۱)
خو د جمهورو د طرف نه دا وئیلې کیدې شی چه ظاهره هم دا ده چه صحابه کرام رضی الله عنهم به په اودس کښې د رسول الله ﷺ په مجلس کښې کیناستل، سجده تلاوت ته چه د مانځه د سجدې سره کوم مشابهت حاصل دې د هغې د وجې نه به صحابه کرام رضی الله عنهم د هغې دپاره هم د اودس اهتمام فرمائیلو، چه د هغې تائید د ابن عمر رضی الله عنهما د اثر نه کیږی کوم چه مونږ شاته ذکر کړې دې ﴿لایسجد الرجل الا وهو طاهر﴾ (۲)
خپله به د سیدنا ابن عمر رضی الله عنهما فعل د جمهور صحابه کرامو رضی الله عنهم د فعل نه د جدا کیدو د وجې نه یو اجتهادی عمل گنړلې شی، چه په هغې باندې د رسول الله ﷺ تقریر ثابت نه دې، په دې وجه د دې نه استدلال او احتجاج صحیح نه دې. (۳) والله اعلم

**قوله: قَالَ رَجُلٌ مِنْ حَضْرَمَوْتَ:** د حضرت موت یو سړی تپوس اوکړو!
د ﴿رجل﴾ نه مراد څوك دې؟ نوم ئې معلوم نه شو خو دومره راغلې دی چه دا یو باندچی سړې وو. (٤)

**قوله: حضرموت:** دا لفظ د حاء مهمله په فتحه، د ضاد معجمه په سکون، د رائی مهمله په فتحې، د میم په فتحې او د واؤ په سکون سره دې. په اخر کښې تاء مثناة من فوق ده. (۵)
دا د عدن (یمن) په مشرق کښې د بحر العرب په غاړه باندې یوه فراخه زمکه ده، د دې نه چاپیره ډیره زیاته شړه ده، دې علاقې ته احقاف وئیلې شی، هم دلته د سیدنا هود علیه السلام قبر مبارك دې. (۶)

**قوله: مَا الْحَدَثُ يَا أَبَا هُرَيْرَةَ:** اې ابوهریره رضی الله عنه حدث څه څیز دې؟

---

۱) د تفصیل دپاره اوګورئ: مجموع فتاوی شیخ الاسلام ابن تیمیة ج ۲۱ ص ۱۳۹ – ۱٤۷، قسم الفقه، مسالة ما تجب له طهارتان الغسل والوضوء

۲) السنن الکبری ج ۱ ص ۹۱، طبع قدیم، و ج ۱ ص ۱٤۷، رقم ٤۲۷، تحقیق محمد عبد القادر عطاء، کتاب الطهارة باب استحباب الطهر للذکر والقراءة و ج ۲ ص ۳۲۵، طبع قدیم، و ج ۲ ص ٤٦۱ تحقیق محمد عبد القادر عطاء، کتاب الصلاة، باب لا یسجد الا طاهرا رقم (۳۷۷۵).

۳) علامه ظفر احمد عثمانی رحمه الله په یو بل انداز سره د جمهور د مسلك ترجیح ثابت کړې ده، فلیراجع الیه للتفصیل: اعلاء السنن ج ۷ ص ۲۲۵، ۲۲٦، باب سجود التلاوة وما یتعلق به.

٤) هدی الساری ۳۹۰، مطبوعه دار السلام ریاض

۵) اوګورئ: المغنی: ۹۸، ومعجم البلدان ج ۲ ص ۲٦۹

٦) اوګورئ: معجم البلدان ج ۲ ص ۲۷۰

چونکه لفظ ﴿حدث﴾ یو مشترك شان لفظ دې لکه چه ﴿ ریح ﴾ ته وئیلې شي، دغه شان په منکر خبره باندې هم وئیلې شي، په بدعات باندې ئې هم اطلاق کیږي او نااشنا خبرې ته هم ﴿حدث﴾ وئیلې شي، په دې وجه د سائل اشتباه پیدا شوه او هغه سوال اوکړو چه د ﴿حدث﴾ نه څه مراد دې؟

**قوله: قَالَ فُسَاءٌ أَوْضُرَاطٌ:** ابوهریره رضی الله عنه اوفرمائیل چه دا فساء او ضراط ته وئیلې شي.

﴿فساء﴾ هغه هوا ده چه آواز ورسره نه وي، او ﴿ضراط﴾ هغه هوا ده چه آواز ورسره وي. (۱)

سیدنا ابوهریره رضی الله عنه چه د حدث کوم تعریف کړې دې دا د حدث پوره او جامع مانع تعریف نه دې، بلکه دا د تعریف بالمثال د قبیل نه دې، لکه یو سړې تپوس اوکړي چه ﴿ ماالاسم؟ ﴾ او په جواب کښې ورته اوئیلې شي چه ﴿زید﴾ نو د دې مطلب به دا وي چه د زید په شان الفاظ اسماء دي. هم دغه شان دلته هم د سیدنا ابوهریره رضی الله عنه مقصد هم دا دې چه د ﴿فساء﴾ او ﴿ ضراط﴾ په شان څیزونه ناقض وضوء دي او حدث دي. (۲)

دا هم کیدې شي چه سیدنا ابوهریره رضی الله عنه اخف لره ذکر کولو سره په اغلظ باندې استدلال کړې وي او د هغې طرف ته ئې اشاره فرمائیلې وي. (۳)

حاصل دا چه ﴿فساء﴾ او ﴿ضراط﴾ چه هر کله ناقض الوضوء دي نو کوم چه د هغې نه اغلظ (یعنی واړه او لوئې بول) دي هغه بدرجه اولی ناقض دي.

علامه ابن بطال رحمه الله فرمائي چه اصل کښې داسې معلومیږي چه سائل د هغه احداث متعلق تپوس کړې وو کوم چه عادة په مانځه کښې واقع کیږي، او په مانځه کښې اکثر د ﴿فساء﴾ او ﴿ ضراط﴾ تحقق کیږي، په دې وجه ئې د سیدنا ابوهریره رضی الله عنه تذکره اوفرمائیله. (٤)

بعض علماء کرام فرمائي کیدې شي چه سیدنا ابوهریره رضی الله عنه ته دا معلومه وه چه دا سړې د نورو احداثو نه واقف دې، په دې وجه ئې هغه بیان نه کړل، خو دا خبره بعیده ده. (۵)

بعض حضرات فرمائي چه سیدنا ابوهریره رضی الله عنه د هغه احداث ذکر کړې دې کوم چه کثیر الوقوع دي. (٦) والله اعلم

۱) اوګورئ: عمدة القاري ج ۲ ص ۲٤٤
۲) عمدة القاري ج ۲ ص ۲٤۵
۳) پورته حواله او فتح الباري ج ۱ ص ۲۳۵
٤) شرح صحیح البخاري لابن بطال ج ۱ ص ۲۱۸
۵) اوګورئ: فتح الباري ج ۱ ص ۲۳۵
٦) عمدة القاري ج ۲ ص ۲٤۵

# ③ بَاب فَضْلِ الْوُضُوءِ وَالْغُرُّ الْمُحَجَّلُونَ مِنْ آثَارِ الْوُضُوءِ

اكثر روايات كښ ﴿ الغرالمحجلون ﴾ مرفوع راغلي دي، په دې صورت كښ يا خو به دا وئيلې شى چه دلته اعراب حكائى دې، پس په صحيح مسلم كښ روايت دې. ﴿ انتم الغرالمحجلون ﴾(۱) په دې صورت كښ به مطلب دا وى دا باب د اودس د فضيلت په باره كښ دې او دا باب د اودس د آثارو نه د سپينو تندو والا حضراتو د فضيلت په باره كښ دې.

يا ﴿ الغرالمحجلون ﴾ مبتدا ده او ﴿ مفضلون على غيرهم ﴾ يا د دې په شان بل تقدير به ورله خبر جوړوو. (۲) دريم صورت دا دې چه ﴿ الغرالمحجلون ﴾ مبتدا ده او ﴿ من اثار الوضوء ﴾ خبر دې. (۳)

د بعض شارحينو قول علامه عينى رحمه الله نقل كړې دې چه د ﴿ الغرالمحجلون ﴾ تعلق د ماقبل سره نه دې، ځكه چه دا د ترجمة الباب د لاندې داخل نه دى. (٤)

علامه عينى رحمه الله د داسې حضراتو ترديد كړې دې او فرمائى چه دا نه صرف په ترجمة الباب كښ داخل دى بلكه په ترجمة الباب باندې صراحة دلالت كونكې هم دا لفظ دې، ځكه چه د حديث مطابقت هم د دې سره دې. (۵)

خو د مستملى په روايت كښ ﴿ والغرالمحجلون ﴾ دې، په دې صورت كښ به د دې عطف په ﴿ الوضوء ﴾ باندې وى او مطلب واضح دې ﴿ باب فضل الوضوء وفضل الغرالمحجلين الخ ﴾(۶)

او اصيلى خو په خپل روايت كښ دا صراحة ذكر كړې دې يعنى ﴿ باب فضل الوضوء وفضل الغر المحجلين ﴾(۷)

**د مخكښې باب سره مناسبت** : مناسبت ئې واضح دې چه په مخكښې باب كښ دا بيان كړې شوې وو چه مونځ د اودس نه بغير نه قبليږى، په دې باب كښ ئې فضيلت بيانولې شى چه په هغې باندې قبوليت مرتب كيږى او د كوم په ذريعه چه دې امت ته په نورو امتونو باندې فضيلت وركولې شى. (۸)

**د ترجمة الباب مقصد** : د ترجمة الباب نه د امام بخارى رحمه الله غرض هم واضح دې چه په دې باب سره هغوى د اودس فضيلت بيانول غواړى.

---

۱) صحيح مسلم، كتاب الطهارة، باب استحباب اطالة الغرة والتحجيل فى الوضوء رقم ۵۷۹.
۲) شرح الكرمانى ج ۲ ص ۱۷۱
۳) پورته حواله
٤) عمدة القارى ج ۲ ص ۲٤۶
۵) پورته حواله
۶) فتح البارى ج ۱ ص ۲۳۵، وعمدة القارى ج ۲ ص ۲٤۶
۷) پورته حواله
۸) عمدة القارى ج ۲ ص ۲٤۶

﴿ ۱۳۶ : حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ قَالَ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ خَالِدٍ عَنْ سَعِيدِ بْنِ أَبِي هِلَالٍ عَنْ نُعَيْمٍ الْمُجْمِرِ قَالَ رَقِيتُ مَعَ أَبِي هُرَيْرَةَ (۱) عَلَى ظَهْرِ الْمَسْجِدِ فَتَوَضَّأَ فَقَالَ إِنِّي سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ إِنَّ أُمَّتِي يُدْعَوْنَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ غُرًّا مُحَجَّلِينَ مِنْ آثَارِ الْوُضُوءِ فَمَنِ اسْتَطَاعَ مِنْكُمْ أَنْ يُطِيلَ غُرَّتَهُ فَلْيَفْعَلْ ﴾

## رجال الحدیث

① **یحیی بن بکیر** : دا ابو زکریا یحیی بن عبدالله بن بکیر قرشی مخزومی مصری رحمه الله دې، د هغوی تذکره د ﴿بدء الوحی﴾ د دریم حدیث د لاندې تیره شوې ده. (۲)

② **اللیث** : دا امام لیث بن سعد بن عبدالرحمن فهمی مصری رحمه الله دې، د هغوی حالات هم په ﴿بدء الوحی﴾ کښې د دریم حدیث د لاندې تیر شوې دی. (۳)

③ **خالد** : دا خالد بن یزید جمحی اسکندرانی مصری رحمه الله دې، د هغوی کنیت ابو عبدالرحیم دې. (٤)

هغه د سعید بن ابی هلال، سلیمان بن راشد، عطاء بن ابی رباح، عقبه بن نافع، مثنی بن الصباح، محمد بن مسلم بن شهاب الزهری رحمهم الله وغیره نه روایت کوی.

هغوی نه په روایت کونکو کښې لیث بن سعد، حیوة بن شریح، بکر بن مضر، عبدالله بن لهیعة او مفضل بن فضاله رحمهم الله وغیره حضرات دی. (۵)

امام ابوزرعة، امام نسائی، امام عجلی او یعقوب بن سفیان رحمهم الله فرمائی : ﴿ثقة﴾ (۶)

امام ابو حاتم رحمه الله فرمائی ﴿لا بأس به﴾ (۷)

امام احمد رحمه الله فرمائی : ﴿ثقة﴾ (۸)

---

۱) قوله : (ابی هریرة رضی الله عنه الحدیث : اخرجه مسلم فی صحیحه فی کتاب الطهارة باب استحباب اطالة الغرة والتحجیل فی الوضوء، رقم ۵۸۰، واحمد فی مسنده ج ۲ ص ۳۳۴، رقم ۸۳۹٤، و ج ۲ ص ٤۰۰ رقم ۹۱۸٤، و ج ۲ ص ۵۲٤، رقم ۱۰۷۸۸.

۲) کشف الباری ج ۱ ص ۳۲۳

۳) کشف الباری ج ۱ ص ۳۲٤

٤) تهذیب الکمال ج ۸ ص ۲۰۸، ۲۰۹

۵) د شیوخ او تلامذة د تفصیل دپاره اوګورئ : تهذیب الکمال ج ۸ ص ۲۰۹

۶) اوګورئ : تهذیب الکمال ج ۸ ص ۲۱۰، واکمال تهذیب الکمال ج ٤ ص ۱۶٤، ۱۶۵، التهذیب التهذیب ۳\۱۲۹

۷) الجرح والتعدیل ج ۳ ص ۳۵۲، رقم (۱۶۱۹ و ۳۹۱۲)

۸) موسوعة اقوال الامام احمد فی رجال الحدیث وعلله : ج ۱ ص ۳۳۶، رقم ۶۹۱و نقلا عن سوالات ابی داؤد رقم ۲۵٤

امام دارقطني رحمه الله فرمائي: «ثقة اثبت منه، يعني يزيد بن سنان»(۱)

حافظ ذهبي رحمه الله فرمائي: «فقيه ثقة» (۲)

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي: «فقيه ثقة»(۳)

ابو سعيد بن يونس رحمه الله فرمائي: «كان عالما فقيها مفتيا»(٤)
ابن حبان رحمه الله هغه په كتاب الثقات كښې ذكر كړې دې. (۵)
په ۱۳۹ هجرى كښې ئې په اسكندريه كښې وفات اوشو. (۶) رحمه الله رحمة واسعة

۴ **سعيد بن ابى هلال**: دا ابو العلاء سعيد بن ابى هلال ليثى مصرى مولى عروة بن شييم ليثى رحمه الله دې، وئيلې شى چه دې په اصل كښې د مدينې منورې وو، د هغوى د والد ابو هلال نوم مرزوق وو. (۷)
هغه د سيدنا انس بن مالك او سيدنا جابر بن عبد الله رضي الله عنهما نه مرسلا روايت كوى.
د هغوى نه علاوه د زيد بن اسلم، ربيعه بن ابى عبد الرحمن، ابو حازم سلمه بن دينار، عمرو بن مسلم، عون بن عبدالله، قتاده، امام زهرى، نافع مولى ابن عمر، يحيى بن سعيد انصارى او نعيم المجمر رحمهم الله وغيره ډيرو حضراتو نه روايت كوى.
د هغوى نه په روايت كونكو كښې سعيد مقبرى (دا د هغوى نه مشر دې) خالد بن يزيد مصرى، عمرو بن الحارث، هشام بن سعد الليث بن سعد، يحيى بن ايوب او يزيد بن ابى حبيب رحمهم الله وغيره دى. (۸)

محمد بن سعد رحمه الله فرمائي: «كان ثقة ان شاء الله»(۹)

امام عجلى رحمه الله فرمائي: «ثقة»(۱۰)
امام ابن حزيمه، ابن عبدالبر، امام دار قطنى، خطيب بغدادى او امام بيهقى رحمهم الله د هغوى توثيق كړې دې. (۱۱)

---

۱) العلل الواردة فى احاديث النبويه ج ۶ ص ۱٤۰، س: ۱۰۳۲
۲) الكاشف ج ۱ ص ۳۷۰، رقم ۱۳۶۷
۳) تقريب التهذيب ص ۱۹۱، رقم ۱۶۹۱
٤) تهذيب الكمال ج ۸ ص ۲۰۹
۵) كتاب الثقات ج ۶ ص ۲۶۵
۶) تعليقات تهذيب الكمال: ۲۱۰۱۸، نقلاً عن المعرفة والتاريخ ليعقوب بن سفيان ۱۲۰۱۱ و ۱۲۱
۷) اوګورئ: تهذيب الكمال ج ۱۱ ص ۹٤، وتهذيب التهذيب ج ٤ ص ۹۵
۸) د شيوخ او تلامذه د تفصيل دپاره اوګورئ: تهذيب الكمال ج ۱۱ ص ۹۵، ۹۶، وتهذيب التهذيب ج ٤ ص ۹٤، ۹۵
۹) الطبقات الكبرى ج ۷ ص ۵۱٤
۱۰) معرفة الثقات للعجلى ج ۱ ص ٤۰۶، رقم ۶۲۰، واكمال تهذيب الكمال ج ۵ ص ۳۶۵، رقم ۲۰۵۲.
۱۱) پورته حواله

ابن خلفون رحمه الله هغوى په خپل كتاب الثقات كښې ذكر كړې دى او ليكلې ئې دى : ﴿كان رجلا صالحا﴾(١)

ابن حبان رحمه الله هغوى لره په خپل كتاب الثقات كښې ذكر كړې دى. (٢)

امام ابو حاتم رحمه الله فرمائى : ﴿لابأس به﴾(٣) ساجى رحمه الله فرمائى : ﴿صدوق﴾(٤)

خو امام احمد رحمه الله فرمائى : ﴿ما ادرى اى شئ فى حديثه، يخلط فى الاحاديث﴾ (٥) يعنى ما ته معلومه نه ده چه د هغه په احاديثو كښې څه خبره ده، هغوى په احاديثو كښې خلط كوى.

هم دغه شان امام ابو زرعه رازى رحمه الله فرمائى : ﴿خالد بن يزيد المصرى وسعيد بن ابى هلال صدوقان، وربما وقع فى قلبى من حسن حديثهما﴾(٦)

**يعنى** : خالد بن يزيد مصرى او سعيد بن ابى هلال صدوق دى، زما په زړه كښې د دوى دواړو د احاديثو د حسن كيدو په باره كښې شك راځى.

امام ابو حاتم رحمه الله فرمائى : ﴿اخاف ان يكون بعضها مراسيل عن ابن ابى فروة وابن سمعان﴾ (٧)

يعنى ما ته د دې خبرې ويره ده چه د هغوى بعض روايات مرسل دى كوم چه د ابن ابى فروه او ابن سمعان نه روايت دى.

ابن رجب رحمه الله ددې تشريح كولو سره فرمائى : ﴿أنه عرض حديثهما على حديث ابن أبى فروة وابن سمعان فوجده يشبهه ولا يشبه حديث الثقات الذين يحدثان عنهم فخاف (أبو زرعة) أن يكونا أخذا حديث ابن أبى فروة وابن سمعان دلساه عن شيوخهما﴾(٨)

**يعنى** : ابو حاتم رحمه الله د خالد بن يزيد او سعيد بن ابى هلال رحمه الله د بعض احاديثو د ابن ابى فروة او ابن سمعان د احاديثو سره موازنه اوكړه نو محسوس شوه چه دا احاديث هم د ابن ابى فروه او د ابن سمعان د احاديثو په شان دى او هغه ئې د هغه ثقاتو د احاديثو په شان بيا نه موندل د كومو نه چه دا دواړه عام طور روايت كوى، په دې وجه ابو حاتم رحمه الله سره ويره پيدا شوه چه خالد بن يزيد او سعيد بن ابى هلال رحمه الله به د ابن ابى فروه او ابن سمعان

---

١) پورته حواله

٢) الثقات لابن حبان ج ۶ ص ٣٧٤و رقم ٨١۶٥

٣) الجرح والتعديل ج ٤ ص ٧١، رقم (٣٠١/٥٤٢٠)

٤) اكمال تهذيب الكمال ج ٥ ص ٣۶٥

٥) پورته حواله

٦) سؤالات البرذعى لابى زرعة الرازى ص ١٠۶، رقم ٨٠، والجامع فى الجرح والتعديل ج ١ ص ٣١٢، رقم ١٥٥٨و نقلا عن السؤالات البرذعى لابى زرعة ٣۶١.

٧) شرح علل الترمذى لابن رجب ج ٢ ص ٧۶٧

٨ ) شرح علل الترمذى لابن رجب ج ٢ ص ٧۶٨

احاديث اخستلې وى او د هغوى د واسطه ذکر کولو نه بغير به ئې د هغوى د شيوخو نه روايت کړې وى. (۱)

خو حقيقت دا دې چه سعيد بن ابى هلال رحمه الله مطلقا ثقه راوى دې، د هغوى نه د اصول ستة مصنفينو احتجاج کړې دې. (۲)

د امام احمد، امام ابوزرعه او ابو حاتم رحمهم الله مقصد مطلقا د هغوى تضعيف نه دې، بلکه په بعض رواياتو کښې د علل خفيه ښودنه مقصود ده، داسې خلط خو عام طور د ثقاتو په روايتونو کښې موندلې شى، څومره ډير ثقه راويان دى چه د هغوى په يو نه يو حديث کښې څه خفى علت راوځى، بلکه د علل خفيه اصل ميدان روايات الثقات دې، په داسې قسم کلام کښې مطلقا د هغوى تضعيف نه کيږى.

علامه ابن حزم رحمه الله ورته ﴿ليس بالقوى﴾ وئيلې دې. (۳) کيدې شى چه هغوى د امام احمد رحمه الله وغيره د کلام نه متاثر کيدو سره وئيلې وى خو د هغوى په مطلق تضعيف کښې د هغوى څوک سلف موجود نه دې. (٤)

پس حافظ ذهبى رحمه الله فرمائى: ﴿ثقة معروف، حديثه فى الكتب الستة، قال ابن حزم وحده: ليس بالقوى﴾(۵)

يعنى دا معروف ثقه راوى دې چه په کتب سته کښې ئې احاديث موجود دى، صرف ابن حزم خانله دا وئيلې دى چه دې قوى نه دې.

هم دغه شان حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى: ﴿لم ار لابن حزم فى تضعيفه سلفا﴾(۶) يعنى ماته د هغوى د تضعيف په سلسله کښې د ابن حزم څوک سلف نه دې ملاؤ شوې.

هم دغه شان فرمائى: ﴿فضعف سعيد بن ابى هلال مطلقا، ولم يصب فى ذلك﴾(۷)

يعنى هغه (ابن حزم رحمه الله) د سعيد بن ابى هلال مطلقا تضعيفا کړې دې او دا عمل ئې صحيح نه دې.

---

۱) قال الدكتور نور الدين عتر حفظه الله فى تعليقاته على شرح علل الترمذى لابن رجب ج ۲ ص ۷۶۸: فى هذا القول نظر فخالد وسعيد ثقتان باطلاق، لم يوصف احدهما بتدليس، ولم تعرج المراجع على هذا القول، ولعله ورد فى بعض يسير مما غلط فيه سعيد، فظن به ذلک الظن، والله اعلم

۲) انظر هدى السارى ص ۵۷۷

۳) اوګورئ: المحلى ج ۲ ص ۲۶۹، حكم الركعتين بعد العصر

٤) د المحلى محشى ليکى: سعيد ثقة، وثقه ابن سعد والعجلى وابن خزيمة والدارقطنى والخطيب والبيهقى وابن عبدالبر وغيرهم، قال احمد: ما ادرى اى شئ فى حديثه يخلط فى الاحاديث، وما هذا بكاف فى تضعيفه مع قول من وثقه. تعليقات على المحلى ج ۲ ص ۲۶۹.

۵) ميزان الاعتدال ج ۲ ص ۱۶۲، رقم ۳۲۹۰

۶) تقريب التهذيب ص ۲٤۲، رقم ۲٤۱۰

۷) هدى السارى ص ۵۷۷

د سعید بن ابی هلال رحمه الله پیدائش په مصر کښې په ۷۰ هجري کښې شوې دې، په مدینه منوره کښې لوئې شوې دې او په اخري عمر کښې مصر ته لاړو. (۱)
د وفات په باره کښې ئې د ۱۳۰ه، ۱۳۳ه، ۱۳۵ه او ۱۴۹ه مختلف اقوال منقول دی. (۲)
رحمه الله رحمة واسعة

⑤ **نعیم المجمر** : دا نعیم (بالتصغیر) بن عبدالله المُجْمِر المدنی رحمه الله دې. ابو عبدالله ئې کنیت دې. (۳)

د سیدنا ابوهریره رضي الله عنه نه ئې خصوصي طور استفاده کړې ده، تقریبا شل کاله هغوی سره وو (٤)، د هغوی نه علاوه دې د سیدنا انس، سیدنا جابر، سیدنا عبدالله بن عمر او سیدنا ربیعه بن کعب الاسلمی رضي الله عنهم وغیره نه روایت کوی.

د دوی نه په روایت کونکو کښې سعید بن ابی هلال، مالك بن انس، بکیر بن عبدالله، الاشج، ثور بن زید، عمارة بن غزیه، فلیح بن سلیمان، محمد بن عجلان او د نعیم خپل خوئې محمد بن نعیم المجمر رحمهم الله وغیره حضرات دی. (۵)

امام یحیی بن معین، امام ابوحاتم، امام محمد بن سعد، امام نسائی او امام دارقطنی رحمهم الله فرمائی ﴿ثقة﴾(۶)

امام ابن حبان رحمه الله هغه په کتاب الثقات کښې ذکر کړې دې. (۷)

مجمر د باب افعال او باب تفعیل نه د اسم فاعل صیغه ده (۸)، لوګې کولو والا ته وئیلې شی، دا د هغه لقب دې که د هغه د والد صاحب؟ ابن حبان رحمه الله فرمائی چه دا د هغه د والد لقب وو: ﴿لان اباه کان یاخذ المجمرة قدام عمر بن الخطاب رضي الله عنه اذا خرج الی الصلاة فی شهر رمضان﴾(۹)

یعنی د هغوی پلار به د رمضان په میاشت کښې چه به عمر فاروق رضي الله عنه د مانځه دپاره راوتلو نو د هغوی نه به ئې وړاندې وړاندې خوشبویه لوګې کونکې لوښې اوړلو.

---

۱) اوګورئ: تهذیب الکمال ج ۱۱ ص ۹۶
۲) اوګورئ: تهذیب الکمال ج ۱۱ ص ۹۶، واکمال تهذیب الکمال ج ۵ ص ۳۶٤، ۳۶۵، ومشاهیر علماء الامصار ج ۱ ص ۳۰۱، رقم ۱۵۲۵
۳) اوګورئ: تهذیب الکمال ج ۲۹ ص ٤۸۷، ٤۸۸، تهذیب التهذیب ج ۹ ص ۲۳٤، وتهذیب التهذیب ج ۱۰ ص ۳۶۵
٤) پورته حواله
۵) د شیوخ او تلامذه د تفصیل دپاره اوګورئ: تهذیب الکمال ج ۲۹ ص ٤۸۸، ٤۸۹
۶) اوګورئ: تهذیب الکمال ج ۲۹ ص ٤۸۹، والجرح والتعدیل ج ۸ ص ۵۲۵، رقم ۲۱۰۶/۱۵٤۱۳، وطبقات ابن سعد ج ۵ ص ۳۰۹، وسنن الدارمی ج ۱ ص ۳۰۶.
۷) الثقات لابن حبان ج ۵ ص ٤۷۶
۸) شرح النووی ج ۱ ص ۱۲۶، کتاب الطهارة، باب استحباب اطالة الغرة والتحجیل فی الوضوء.
۹) الثقات لابن حبان ج ۵ ص ٤۷۶

هم دغه شان علامه مغلطائي رحمه الله د تاريخ اربل حوالې سره نقل كړې دې چه مجمر د نعيم والد عبدالله دې، اګر چه نعيم په دې لقب سره مشهور شو، عبدالله بن د سيدنا عمر رضي الله عنه په منبر باندې د كيناستلو په موقع باندې مسجد ته خوشبويه لوګې وركولو. (١)

هم دغه شان امام نووي رحمه الله فرمائي: ﴿المجمر صفة عبدالله، ويطلق على ابنه نعيم مجازا﴾(٢) او د حافظ ابن حجر رحمه الله او علامه عيني رحمه الله دا وينا ده چه د مجمر لقب د نعيم دپاره مجازي منلو ته ضرورت نشته، ځكه چه د خپل پلار عبدالله په شان به نعيم هم مسجد كښې خوشبوئي لوګې كوله، پس د ابراهيم حربي رحمه الله نه جزما منقول دي: ﴿بان نعيما كان يباشر ذلك﴾ يعني نعيم به خپله هم دا كار كولو. (٣)

هم دغه شان علامه عيني رحمه الله فرمائي: ﴿نقل ذلك عن جماعة﴾(٤) يعني د يو جماعت نه دا خبره منقول ده. حافظ ذهبي رحمه الله فرمائي: ﴿عاش الى قريب سنة عشرين ومائة﴾(٥)

يعني ١٢٠هـ ته نزدې نزدې ژوندې وو. رحمه الله رحمة واسعة.

⑥ **سيدنا ابوهريره رضي الله عنه**: د سيدنا ابوهريره رضي الله عنه حالات په كتاب الايمان كښې د باب امور الايمان د لاندې تير شوې دي.(٦)

**قوله:** رَقِيتُ مَعَ أَبِي هُرَيْرَةَ عَلَى ظَهْرِ الْمَسْجِدِ: نعيم مجمر فرمائي چه زه د سيدنا ابوهريره رضي الله عنه سره د مسجد چهت ته اوختلم.

د دې نه معلومه شوه چه د مسجد چهت ته ختل جائز دي. (٧)

**قوله:** فَتَوَضَّأَ: ابوهريره رضي الله عنه اودس اوكړو.

د كشميهني په نسخه كښې د ﴿فتوضاء﴾ په ځائې ﴿يوما﴾ راغلې دې، دا تصحيف دې. (٨)

اسماعيلي وغيره د دې حديث استخراج كړې دې، په هغې كښې د ﴿توضاء﴾ او ﴿ثم توضاء﴾ الفاظ دي. (٩)

---

١) اكمال تهذيب الكمال ج ١٢ ص ٧٠

٢) شرح النووي على صحيح مسلم ج ١ ص ١٢٦، كتاب الطهارة، باب استحباب اطالة الغرة والتحجيل في الوضوء.

٣) فتح الباري ج ١ ص ٢٣٥، وعمدة القاري ج ٢ ص ٢٤٦

٤) عمدة القاري ج ٢ ص ٢٤٦

٥) سير اعلام النبلاء ج ٥ ص ٢٢٧

٦) كشف الباري: ٦٥٩١١

٧) (عمدة القاري ج ٢ ص ٢٥٠)

٨) اوګورئ: عمدة القاري ج ٢ ص ٢٤٧ وفتح الباري ٢٣٥١١

٩) پورته حواله جات

خو د اسماعيلي په روايت کښې دا اضافه هم ده : ﴿ فغسل وجهه ويديه، فرفع في عضديه، وغسل رجليه فرفع في ساقيه ﴾(۱) امام مسلم رحمه الله هم تقريبا دې تفصيل سره روايت ذکر کړې دې. (۲) بلکه امام مسلم رحمه الله چه د ﴿ عمارة بن غزية عن نعيم المجمر ﴾ په طريق سره کوم حديث نقل کړې دې، په هغې کښې دا هم دی چه سيدنا ابوهريره رضي الله عنه اودس کولو سره دا هم اوفرمائيل ﴿ هکذا رايت رسول الله صلى الله عليه وسلم يتوضاء ﴾(۳) د دې نه معلومه شوه چه دا حديث مرفوع دې، چه ددې نه د دې خبرې ترديد کيږي چه دغه شان اسباغ د سيدنا ابوهريره رضي الله عنه رائې ده او روايت ثابت نه دې، او حقيقت دا دې چه دا د هغوی رائې هم ده او د رسول الله صلى الله عليه وسلم نه مرفوعا هم ثابت دې. (٤)

**په مسجد کښې اودس کول** : په دې حديث کښې دی چه سيدنا ابوهريره رضي الله عنه د مسجد په چهت باندې اودس اوکړو او د مسجد حد د تحت الثری نه تر عنان السماء پورې دې. (۵) د دې نه دا خبره مستنبط کړې شوې ده چه په مسجد کښې اودس کول جائز دی.

پس امام ابن المنذر رحمه الله ليکلې دی : ﴿ اباح کل من يحفظ عنه العلم الوضوء في المسجد، الا ان يبله، ويتاذی به الناس فانه يکره ﴾(۶)
يعنی ټولو اصحاب علم په مسجد کښې اودس کولو ته مباح وئيلې دی او! که د مسجد فرش لره تر کړې او خلقو ته د هغې نه تکليف رسيږی نو دا مکروه دی.

ابن بطال مالکی رحمه الله فرمائي : ﴿ وفيه : جواز الوضوء على ظهر المسجد، وهو من باب الوضوء في المسجد، وقد کرهه قوم واجازه الاکثر، وانما ذلك تنزيه للمسجد، کما ينزه عن البصاق والنخامة، وحرمة أعلى المسجد، کحرمة داخله، وممن أجاز الوضوء في المسجد : ابن عباس، وابن عمر، وعطاء، والنخعی، وطاوس، وهو قول ابن القاسم صاحب مالك، واکثر العلماء ﴾(۷)
يعنی د دې حديث نه د مسجد په چهت باندې د اودس کولو جواز معلوميږی او دا د وضوء في المسجد په معنی کښې دې، بعض حضراتو دې ته مکروه وئيلې دی، خو اکثرو حضراتو

---

۱) فتح الباري ج ۱ ص ۲۳۵
۲) صحيح مسلم، کتاب الطهارة، باب استحباب اطالة الغرة والتحجيل في الوضوء رقم ۵۸۰.
۳) صحيح مسلم، کتاب الطهارة، باب استحباب اطالة الغرة والتحجيل في الوضوء رقم ۵۸۹.
٤) فتح الباري ج ۱ ص ۲۳۶
۵) قال في الدر المختار : وکره تحريما الوطء فوقه والبول والتغوط، لانه مسجد الى عنان السماء، قال الشامي في رد المحتار : وکذا الى تحت الثری، انظر رد المحتار مع الدر المختار ج ۱ ص ٤٨٥
۶) اوګورئ : المجموع شرح المهذب ج ۲ ص ۱۷٤، فصل في المساجد واحکامها، وطرح التثريب ج ۱ ص ۳۱۶، کتاب الطهارة باب غسل النجاسة، الحديث الثالث عشر، الفائدة الرابعة عشرة.
۷) شرح صحيح البخاري لابن بطال ج ۱ ص ۲۲۲

د دي اجازت ورکړې دي، خو دا حضرات هم مسجد لره پاك او صفا ساتل ضروري ګڼي، څنګه چه مسجد لره د تهوك او بلغم وغيره نه پاك صفا ساتل ضروري ګڼي، د مسجد د پاسه حصه هم دغه شان ده څنګه چه د مسجد دننه حصه ده، کوموحضراتو چه په مسجد کښې د اودس کولواجازت ورکړې دې په هغوى کښې ابن عباس، ابن عمر رضي الله عنهما نه علاوه، نخعى، طاؤس رحمهم الله دى، هم دا د امام مالك رحمه الله د شاګرد ابن القاسم او اکثر علماء کرامو قول دې.
وضوء فى المسجد لره مکروه ګڼړلو والا کښې ابن سيرين رحمه الله دې، هم دا د امام مالك او سحنون رحمهما الله قول دې. (۱)

امام نووى رحمه الله فرمائى : ﴿ يجوز الوضوء فى المسجد إذا لم يؤذ بمائه وممن صرح بجواز الوضوء فى المسجد ويسقط الماء على ترابه صاحبا الشامل والتتمة ﴾(۲)
يعنى په جمات کښې اودس کول جائز دى، که د اودس اوبه سره تکليف نه رسيږى، په جمات کښې د اودس په جائز کيدو او ددې په خاوره باندې د اوبو د غورزيدو د جواز تصريح صاحب د "الشامل" او صاحب د "تتمه" کړې ده.

امام نووى رحمه الله د بغوى قول ﴿ ويجوز نضح المسجد بالماء المطلق، ولا يجوز بالمستعمل لان النفس تعافه ﴾ يعنى د مسجد چهړکاؤ په ماء مطلق سره جائز دې، په مستعمل اوبو سره جائز نه دې څکه چه د دې نه طبيعت کرکه کوى، نقل کولو سره د دې تضعيف کړې دې :
﴿ وهذا الذى قاله ضعيف والمختار الجواز بالمستعمل ايضا ﴾(۳) يعنى دا قول ضعيف دې او مختار قول دا دې چه د مستعمل اوبو په ذريعه چهړکاؤ هم جائز دې.

ابن قدامه رحمه الله فرمائى : ﴿ وهل يكره فى المسجد على روايتين، ذكرهما ابن عقيل، الا ان ابن عقيل قال: ان قلنا بنجاسة الماء المستعمل فى رفع الحدث، حرم ذلك فى المسجد ﴾(٤)
**يعنى** : په مسجد کښې اودس مکروه دې يا نه دې؟ په دې کښې دواړه روايتونه دى ابن عقيل رحمه الله دا دواړه روايتونه ذکر کړې دى، خو ابن عقيل فرمائى چه که مونږ د دې خبرې قائل کيږو چه د رفع دحدث دپاره استعمال شوې اوبه نجس دى نو د هغې استعمال به په مسجد کښې حرام وى.

مرداوى رحمه الله هم دا دواړه روايتونه نقل کړى، پس هغه ليکى : ﴿ يباح الوضوء والغسل فى المسجد ان لم يؤذ به احدا على الصحيح من المذهب، وحكاه ابن المنذر اجماعا، وعنه : يكره .... ﴾(٥)

---

۱) پورته حواله
۲) المجموع شرح المهذب ج ۲ ص ۱۷٤
۳) پورته حواله
٤) الشرح الكبير ج ۳ ص ۱۲۱، مع المقنع والانصاف، كتاب الصلاة، فصل فيما يكره فى المسجد
٥) الانصاف للمرداوى ج ۱ ص ۱٦۸

يعنی په مسجد کښې اودس او غسل جائز دي، په دې شرط چه چاته تکليف او نه رسولې شي، هم دا صحيح قول دې، ابن المنذر رحمه الله په دې خبره باندې اجماع نقل کړې ده، په يو بل روايت د امام احمد رحمه الله کښې دی چه دا کار مکروه دې.
د احنافو په نزد په مسجد کښې اودس مکروه تحريمی دې، خو که په يو داسې ځائې کښې اودس اوکړې شی کوم چه د اودس دپاره مختص کړې شوې وی يا په يو لوښی وغيره کښې اوکړې شی نو بيا گنجائش شته.

پس په در مختار کښې تصريح ده : ﴿ ومن منهياته : التوضؤ بفضل ماء المرأة، اوفی موضع نجس، لان الماء الوضوء حرمة، اوفی المسجد الافی اناء، اوفی موضع اعدلذلك ﴾ (۱)
يعنی د اودس د منهيات او ممنوعات نه يو دا هم ده چه د زنانه په باقی پاتې اوبو سره اودس اوکړې شی، يا په ناپاك ځائې کښې اودس اوکړې شی، وجه د دې دا ده چه د اودس د اوبو يو حرمت دې، دا د هغې منافی دې، يا په مسجد کښې اودس اوکړې شی، مگر دا چه په يو لوښی کښې يا داسې ځائې کښې اودس اوکړې شی کوم چه د دې دپاره تيار کړې شوې وی نو بيا څه باك نشته.

دلته ﴿ منهياته ﴾ کښې چونکه مکروه تنزيهی هم شامل دې، (۲) په دې وجه علامه طحطاوی رحمه الله باقاعده تصريح کړې ده چه په مسجد کښې اودس مکروه تحريمی دې، پس هغه فرمائی: ﴿ قوله: او فی المسجد، لعله فيه مکروه تحريما، لوجوب صيانته عما يقذره، وان کان طاهرا ﴾ (۳) په مسجد کښې اودس کول مکروه تحريمی دی، ځکه چه مسجد د هر هغه څيز نه پاك ساتل ضروری دی کوم چه گنده گنړلې شی، اگر چه پاك وی.
**حاصل مذاهب** : د مذاهبو حاصل دا دې چه ؛ د احنافو په نزد په مسجد کښې اودس کول مکروه تحريمی دی، خو که په يو لوښی کښې اودس اوکړې شی يا په داسې ځائې کښې کوم چه د دې کار دپاره خاص کړې شوې وی نو بيا گنجائش شته.
هم دا امام احمد رحمه الله يو روايت دې، د امام مالك رحمه الله قول هم دا دې، تردې چه که په يو لوښی کښې وی هم د هغوی په نزد مکروه دې.
د شوافع او حنابله په نزد په مسجد کښې اودس جائز دې په دې شرط چه چاته تکليف نه وی.(٤) والله اعلم
**د سيدنا ابوهريره رضی الله عنه د عمل توجيه** : کوم حضرات چه په مسجد کښې اودس ته جائز وائی هغوی ته خو د هيڅ توجيه هم ضرورت نشته، خو د احنافو په نزد د هغوی دا عمل په دې

---

۱) الدر المختار مع رد المحتار ج ۱ ص ۹۸
۲) کما صرح به الشامی فی رد المحتار ج ۱ ص ۹۸
۳) حاشية الطحطاوی علی الدر المختار ج ۱ ص ۷۶
٤) د تفصيل دپاره اوگورئ: الموسوعة الفقهية الکويتية : ۳۸٤/٤۳

باندې محمول کيدې شي چه هغوی یا خو په یو لوښي وغیره کښ اودس کړې وی، یا ئې په داسې ځائې کښې اودس کړې وی د چرته نه چه اوبه د مسجد نه بغیر د تلوث نه خارجیږی.

والله سبحانه وتعالیٰ اعلم

**قوله: فَقَالَ إِنِّي سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ:** فرمائی چه ما د رسول الله ﷺ نه واوریدل؛

﴿إِنَّ أُمَّتِي يُدْعَوْنَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ غُرًّا مُحَجَّلِينَ﴾ بیشکه زما امت به د قیامت په ورځ داسې حال کښ راشي چه د هغوی تندی او لاسونه په پړقیږی.

د امت معنی د جماعت راځی. (۱) دلته د امت نه مراد د حضور ﷺ منونکی دی.

مشهوره خو دا ده چه د امت دوه قسمونه دی. یو امت دعوت او بل امت اجابت. (۲)

امت دعوت خو عام دې، مسلمانان هم په دې کښ داخل دي او کافر هم، او امت اجابت د دې په مقابله کښ خاص دې، د دې اطلاق صرف په مسلمانانو باندې کیږی چا چه د رسول الله ﷺ دعوت قبول کړې دې. خو کلاباذی رحمه الله فرمائی چه د رسول الله ﷺ د امت درې قسمونه دی؛ یو امت اتباع دې، دویم امت اجابت دې او دریم قسم امت دعوت دې، په دې کښ هر اولنې قسم د دویم په مقابله کښ اخص دې.

امت اتباع، د عمل صالح والا حضرات دی، امت اجابت عام مسلمانان دی او په امت دعوت کښ هغه ټول شامل دی د چا طرف ته چه رسول الله ﷺ مبعوث کړې شوې وو. (۳)

**دلته امت اجابت مراد دې یا امت دعوت؟:** ظاهره دا ده چه دلته امت اجابت مراد دې، نه امت دعوت، وړاندې نور تفصیل راځی.

**قوله: غُرًّا مُحَجَّلِينَ:** دا دواړه الفاظ د ﴿يدعون﴾ د ضمیر نه دحال واقع کیدو د وجې نه منصوب دی یا دا دواړه الفاظ د مفعول ثانی کیدو د وجې نه منصوب دی. (٤)

**د لفظ ﴿غر﴾ تحقیق:** لفظ ﴿غر﴾ د ﴿اغر﴾ جمع ده، دا د ﴿غرة﴾ نه وتلې دې او ﴿غرة﴾ په اصل کښ هغه سپین والی ته وئیلې شي کوم چه د اس په تندی باندې وی، روستو د دې اطلاق په ښکلا او حسن او جمال، نیك نامئ او شهرت باندې شروع شو. (۵)

دلته ترې مراد هغه نور دې کوم چه به د امت محمد ﷺ په تندو باندې پړقیږی. (۶)

---

۱) الأُمَّة: (جَماعَةٌ أُرْسِلَ إِلَيْهِم رَسولٌ) سواء آمَنُوا أو كَفَرُوا. وقال الليث: كلُّ قَوْمٍ نُسبوا إلى نَبِيٍّ فَأُضيفُوا إلَيْه فهم * ! أُمَّتُه. قال: وكُلّ جِيلٍ من الناس هم * ! أُمَّةٌ على حدَة. (و) قال غيرُه: * ! الأُمَّة (الجيلُ من كُلِّ حَيٍّ، و) قيل: (الجنسُ) من كُلِّ حَيَوان غير بَني آدَمَ أُمَّةٌ على حدَة. تاج العروس: ۲۲۹/۳۱، مادة (أم م).

۲) فتح الباري ج ۱۰ ص ۲۳۱، كتاب الطب، باب السحر، وعمدة القاري ج ۲ ص ۲٤۸

۳) فتح الباري ج ۱۱ ص ٤۱۱، كتاب الرقاق، باب يدخل الجنة سبعون الفا بغير حساب

٤) عمدة القاري ج ۲ ص ۲٤۸

۵) فتح الباري ج ۱ ص ۲۳۶

٦) پورته حواله

**﴿ محجلين ﴾** : دا د باب تفعيل نه د اسم مفعول صيغه ده، كومه چه د محجل جمع ده، دا د حجل نه ماخوذ دې، چه د هغې معنى د خلخال يعنى پازيب ده.
محجل هغه اس ته وئيلې شى چه د هغه په لاسونو او خپو كښې كم از كم درې د كونډو نه لاندې او د پنجې نه پورته سپين والې وى.
ابن سيده خو فرمائى چه د اس په څلورو وارو خپو كښې موجود سپين والى ته تحجيل وئيلې شى، او بعض نور حضرات فرمائى چه په درې خپو كښې سپين والې وى نو هغې ته تحجيل وئيلې شى. (۱)
دا د اس د ښكلا علامت دې، په دې وجه دلته د اودس د اندامونو خپو لاسونو د اودس د وجې نه د قيامت په ورځ باندې ښكلې، چمك دار او منور كيدل مراد دى. (۲)
**قوله: مِنْ آثَارِ الْوُضُوءِ:** د اودس د اثار د وجې نه، يعنى د اودس د وجې نه به ﴿غر محجل﴾ وى، د هغوى مخ او لاسونه به پرقيږى.
**ايا اودس د دې امت د خصوصيات نه دې؟**: د دې حديث نه امام حليمى رحمه الله په دې خبره باندې استدلال كړې دې چه اودس د دې امت د خصوصيات نه دې. (۳) خو په دې باندې اشكال دا دې چه په حديث كښې راغلې دى چه ﴿ هذا وضوئى ووضوء الانبياء قبلى ﴾ (٤).
د دې جواب دا وركړې شوې دې چه دا حديث ضعيف دې، (۵) لهٰذا د دې نه استدلال نه شې كيدلې او كه صحيح وى نو هم په دې كښې دا احتمال دې چه اودس د مخكښې پيغمبرانو عليهم السلام دپاره خو مشروع وى او د هغوى د امتونو دپاره مشروع نه وى. (۶)
د دې نه علاوه وړاندې په بخارى شريف كښې د سيدنا ابراهيم عليه السلام قصه راروانه ده چه هغه د خپلې كور والا سيده ساره رضى الله عنها سره په يو ظالم بادشاه باندې تير شو، هغه په زبردستئ باندې سيده ساره رضى الله عنها طلب كړه، هغې اودس اوكړو او د مانځه دپاره اودريدله. (۷)

---

۱) عمدة القارى ج ۲ ص ۲٤۷
۲) فتح البارى ج ۱ ص ۲۳۶
۳) فتح البارى ج ۱ ص ۲۳۶
٤) مسند الطيالسى ج ۱ ص ۲۶۰، مسند عبد الله بن عمر، رقم ۱۹۲٤، واخرج ابن ماجة عن ابى بن كعب بلفظ، هذا وضوئى، ووضوء المرسلين من قبلى، كتاب الطهارة، باب ما جاء فى الوضوء مرة ومرتين وثلاثا، رقم ٤۲۰. وايضا اخرج ابن ماجة عن ابن عمر هذا : هذا وضوئى ووضوء خليل الله ابراهيم عليه السلام. كتاب الطهارة، باب ما جاء فى الوضوء مرة ومرتين وثلاثا، رقم (٤۱۹)
۵) فتح البارى ج ۱ ص ۲۳۶، وقال ابن تيمية فى الفتاوى الكبرى وحديث ابن ماجة : ووضوء الانبياء قبلى ضعيف عند اهل العلم بالحديث، لا يجوز الاحتجاج بمثله ج ٤ ص ۳۸۸، باب صفة الوضوء.
۶) فتح البارى ج ۱ ص ۲۳۶
۷) قال الحافظ رحمه الله فى فتح البارى ج ۶ ص ۳۹۳، فى كتاب احاديث الانبياء، باب قول الله تعالى ﴿ واتخذ الله ابراهيم خليلا ﴾ وفى رواية ابى الزناد عن الاعرج من الزيادة : ﴿ فقام اليها فقامت توضاء وتصلى ﴾

هم دغه شان د جريج راهب په قصه كښې وړاندې راروان دى چه په هغه باندې چه كله تهمت اولګولې شو نو هغه اودس اوكړو او د هغه ماشوم په سر باندې ئې لاس راښكلو سره تپوس اوكړو ﴿من ابوك؟﴾ نو هغه ماشوم جواب وركړو چه فلانې شپونكې دې. (۱)

لهذا دا به وئيلې شى چه اودس د دې امت د خصوصيات نه نه دې خو د اودس اثر ﴿غرة وتحجيل﴾ د دې امت د خصوصيات نه دې. (۲)

**يو اشكال او د هغې جواب**: سوال دا دې چه هر كله اودس په امم سابقه كښې هم وو نو غرة او تحجيل د دې امت سره خاص ولې كړې شو؟

د دې يو جواب خو دا دې چه ﴿ذلك فضل الله يوتيه من يشاء﴾(۳) دا الله پاك اختيار دې هغه چه چا له غواړى خپل فضل وركوى.

دويم جواب دا دې چه په دې امت كښې چه د اودس كوم عموم او شيوع دې هغه په تيرو امتونو كښې نه وو، پس د روايت نه هم دغه شان معلوميږى!

امام دارمى رحمه الله د كعب احبار رحمه الله نه نقل كړى دى! ﴿نجده مكتوبا محمد رسول الله صلى الله عليه وسلم لا فظ ولا غليظ ولا صخاب بالأسواق ولا يجزئ بالسيئة السيئة ولكن يعفو ويغفر وأمته الحمادون يكبرون الله عزوجل على كل نجد ويحمدونه فى كل منزلة ويتأزرون على أنصافهم ويتوضئون على أطرافهم﴾ (٤)

**يعنى**: مونږ د رسول الله ﷺ ذكر په تورات كښې داسې بيا مومو چه رسول الله ﷺ څو نه تند خويه دې او نه د سخت طبيعت والا، نه په بازارونو كښې شور كونكې دې او نه د بدئ بدله په بدئ سره وركوى، بلكه معافى كوى او بخښنه كوى، د رسول الله ﷺ امت ﴿حمادون﴾ تعريف كونكى دى، هغوى الله پاك لره په هر لوړ ځائې باندې لوئى بيانوى او په هر ښكته ځائې باندې ئې پاكى بيانوى، په نيمه پنډئ باندې لنګ تړى او خپلو اندامونو لره وينځلو سره اودس كوى...

**د غره او تحجيل صفت به هر مومن ته حاصليږى او كه په دې كښې څه تخصيص شته؟**: دا د غره او تحجيل صفت به هر ايمان والا ته حاصليږى يا مخصوص حضراتو ته؟

علامه زناتى مالكى شارح د "الرسالة" د بعض علماء كرامو رائې نقل كړې ده چه دا صفت به هر امتى ته حاصل وى، ځكه چه دا د اسلام علامت خاصه ده، په دې علامت سره به د

---

۱) صحيح البخارى ج ۱ ص ۳۳۷، كتاب المظالم والغصب، باب اذا هدم حائطا فليبن مثله، رقم (۲٤۸۲) و ج ۱ ص ٤۸۹، كتاب احاديث الانبياء ﷺ، باب ﴿ واذكر فى الكتاب مريم اذا انتبذت من اهلها ﴾ رقم (۳٤۳۶)

۲) فتح البارى ج ۱ ص ۲۳۶

۳ ) المائدة : ٥٤، الحديد : ۲۱، الجمعة : ٤

٤) سنن الدارمى ج ۱ ص ۱۶، المقدمة، باب صفة النبى ﷺ فى الكتب قبله مبعثه، رقم ٥، وانظر ايضا رقم ۷ و ۸

قيامت په ورځ باندې د مسلمانانو يعنى امت محمديه او د هغوى د غير ترمينځه فرق كيږي. (١)

خو د علامه ابن تيميه رحمه الله او د علامه عينى رحمه الله رائې دا ده چه دا صفت به هر چاته نه وى حاصل بلكه صرف هغه ته به ملاويږي چه اودس كوى (٢) ځكه چه په روايت كښې دى چه ﴿غُرًّا مُحَجَّلِينَ مِنْ آثَارِ الْوُضُوْءِ﴾ (٣) يعنى د اودس د اثراتو د وجې نه به د هغوى مخونه او د اودس اندامونه پرقيږي.

په مسلم شريف كښې چه كوم الفاظ راغلې دى هغه دا دى ﴿أَنْتُمُ الْغُرُّ الْمُحَجَّلُونَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ مِنْ إِسْبَاغِ الْوُضُوْءِ﴾ (٤) هم دغه شان په مسلم شريف كښې دا الفاظ هم دى: ﴿لَكُمْ سِيمَا لَيْسَتْ لِأَحَدٍ غَيْرِكُمْ تَرِدُونَ عَلَيَّ غُرًّا مُحَجَّلِينَ مِنْ آثَارِ الْوُضُوْءِ﴾ (٥)

د صحيح ابن حبان د روايت الفاظ دى: ﴿يَا رَسُولَ اللهِ كَيْفَ تَعْرِفُ مَنْ لَمْ تَرَ مِنْ أُمَّتِكَ؟، قَالَ: غُرٌّ مُحَجَّلُونَ بُلْقٌ مِنْ آثَارِ الطُّهُورِ﴾ (٦)

يا رسول الله ﷺ! تاسو به قيامت كښې خپل امت څنګه پيژنئ كوم چه تاسو نه دى ليدلى؟ وې فرمائيل د اودس د اثر نه به سپين، پرقيدونكى، ابلق وى.

**ايا په تندى باندې نخښه د سجدې د وجې نه نهٔ ده؟** : د دې حديث نه خو معلومه شوه چه غره او تحجيل دواړه د اودس اثر دې، او حال دا چه په ترمذى شريف كښې يو حديث دې ﴿امتى

---

١) اوګورئ. عمدة القارى ج ٢ ص ٢٥٠

٢) قال ابن تيمية رحمه الله : وَقَدْ ثَبَتَ فِى الصَّحِيحَيْنِ عَنْ النَّبِىِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ " { أَنَّه يَعْرِف أُمَّتَه بِأَنَّهمْ غُرٌّ مُحَجَّلُونَ مِنْ آثَارِ الْوُضُوءِ } وَإِنَّمَا تَكُونُ الْغُرَّةُ وَالتَّحْجِيلُ لِمَنْ تَوَضَّأَ وَصَلَّى فَأَبْيَضَّ وَجْهه بِالْوُضُوءِ وَابْيَضَّتْ يَدَاه وَرِجْلَاه بِالْوُضُوءِ فَصَلَّى أَغَرَّ مُحَجَّلًا . فَمَنْ لَمْ يَتَوَضَّأْ وَلَمْ يُصَلِّ لَمْ يَكُنْ أَغَرَّ وَلَا مُحَجَّلًا فَلَا يَكُونُ عَلَيْه سِيمَا الْمُسْلِمِينَ الَّتِى هِىَ الرنك لِلنَّبِىِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِثْلَ الرنك الَّذِى يَعْرِفُ بِهِ الْمُقَدَّمُ أَصْحَابَه. (مجموع الفتاوى شيخ الاسلام ابن تيمية ج ٣٥ ص ١٠٧)

الرنك : شعار للملوك والامراء والاتراك والمماليك بمصر (فارسية) المعجم الوسيط ج ١ ص ٣٧٦

وقال العينى : وهذا نقل غريب، وظاهر الاحاديث يقتضى خصوصية ذلك لمن توضا منهم، عمدة القارى ج ٢ ص ٢٥٠. يعنى د غره او تحجيل دا صفت چه د اودس او مانځه دواړو سره مقيد كړې شوې دې نو دا غريب دې. ګينې د ظاهر احاديثو تقاضه خو صرف دومره ده چه دا د اودس د آثار نه دې.

٣) كما فى رواية الباب.

٤) صحيح مسلم، كتاب الطهارة، باب استحباب اطالة الغرة والتحجيل فى الوضوء، رقم ٥٧٩

٥) پورته حواله رقم ٥٨١

٦) صحيح ابن حبان ج ٣ ص ٣٢٣، ذكر وصف هذه الامة فى القيامة باثار وضوئهم كان فى الدنيا، رقم ١٠٤٧، و ج ١٦ ص ٢٢٦، ذكر وصف هذه الامة فى القيامة باثار وضوئهم كان فى الدنيا، رقم ٧٢٤٢، موارد الظمآن ص ٦٥، كتاب الطهارة، باب فضل الوضوء رقم ١٤٦.

يوم القيامة غرّ من السجود، محجلون من الوضوّ ﴾(۱) يعنى زما د امت تندې به د سجدې د وجې نه او د هغوى د اودس د اندامونو د وجې نه پرقيږي. چه د هغې نه معلوميږى چه د تندى د پرقيدو سبب سجده ده، دغه شان په دواړو احاديثو كښې په ظاهره تعارض شان معلوميږى.
د دې جواب دا دې چه دا هيڅ د تعارض خبره نه ده، حقيقت دا دې چه په تندى باندې به ئې نور د اودس د وجې نه هم ظاهريږى او د سجدې د وجې نه هم. والله اعلم

**قوله:** فمن استطاع منكم ان يطيل غرته فليفعل: پس كوم سړې چه په تاسو كښې غره اوږدولې شى هغه دې اوږده كړى.

دلته د ﴿غرة﴾ ذكر راغلې دې، چه د هغې ظاهرى مفهوم دا دې چه د مخ په وينځلو كښې زائد مقامات وينځلې شى، خو مقصود غرة او تحجيل دواړه دى، يعنى مخ او د اودس نور اندامونه او خپو وينځلو كښې (د خپل حد نه) زيادت اوكړې شى، ګويا مقصود اګر چه دواړه دى خو تغليبا صرف د ﴿غرة﴾ ذكر راغلې دې. (۲)
غرة او تحجيل دواړه مقصود دى، په دې وجه بعض حضراتو دلته اشكال كړې دې چه غرة مونث دې او تحجيل مذكر، تغليب مذكر ته حاصليدل پكار دى مونث ته نه؟

پس د دې جواب دا دې چه د ﴿غرة﴾ تعلق چونكه د تندى او مخ سره دې او هغه د اودس په اندامونو كښې د ټولو نه اشرف اندام دې، د ملاقات په وخت د ټولو نه اول په هغې باندې نظر پريوځى. په دې وجه دلته غرة لره غالب كولو سره تحجيل د هغې په ضمن كښې داخل كړې شو. (۳) د دواړو په مقصود كيدو باندې دليل د صحيح مسلم روايت دې، چه په هغې كښې ﴿فليطل غرته وتحجيله﴾ راغلې دې. (٤)

**د اطاله غرة وتحجيل حكم:** د شوافعو او د صحيح مذهب مطابق د حنابله په نزد اطاله غرة وتجيل مسنون دې. (۵) د احنافو په نزد د اودس د آدابو نه دې. (۶)
او د مالكيانو او د حنابله يو روايت دا دې چه اطاله غرة مندوب او مستحب نه دې، بلكه د مالكيانو په نزد دا فعل مكروه دې. (۷)

---

۱) جامع الترمذي، ابواب الصلاة، باب ما ذكر من سيما هذه الامة من اثار السجود والطهور يوم القيامة، رقم (۶۰۷)
۲) عمدة القاري ج ۲ ص ۲۴۸
۳) پورته حواله
٤) صحيح مسلم، كتاب الطهارة، باب استحباب اطالة الغرة والتحجيل فى الوضوء رقم ۵۸۹
۵) اوګورئ: المجموع شرح المهذب ج ۱ ص ٤۲۷، ٤۲۸، كتاب الطهارة، حكم الغرة .... والانصاف للمرداوى ج ۱ ص ۱۶۸
۶) اوګورئ: الدر المختار مع رد المحتار ج ۱ ص ۹۶
۷) اوګورئ: الانصاف ج ۱ ص ۱۶۸، والشرح الكبير للدردير ج ۱ ص ۱۰۳، فصل يذكر فيه حكم ازالة النجاسة، وحاشية الدسوقى على الشرح الكبير ج ۱ ص ۱۰۳، فصل يذكر فيه احكام الوضوء.

د مالکیانو دلیل هغه روایت دې کوم چه امام احمد او امام ابوداؤد رحمهما الله په طریق د ﴿عمرو بن شعیب عن ابیه عن جده﴾ نقل کړې دې چه رسول الله ﷺ درې درې کرته د اودس د اندامونو وینځلو نه پس اوفرمائیل: ﴿فمن زاد علی هذا او نقص فقد اساء وتعدی وظلم﴾(۱) یعنی څوک چه په دې باندې زیادت اوکړی نو هغه بد اوکړل او ظلم ئې اوکړو. چه هرکله زیادت د بدئ او ظلم موجب دې او هغه مذموم دې نو اطاله غرة وتحجیل څنګه مستحب کیدې شی؟(۲)

هر چه د حدیث الباب تعلق دې نو دې حضراتو د دې جواب دا ورکړې دې چه!

① د دې حصې په رفع کښې کلام دې، په ظاهره دا د سیدنا ابوهریره رضی الله عنه د طرف نه ادراج دې، د دې وجه دا ده چه امام احمد رحمه الله دا روایت د ﴿فلیح عن نعیم﴾ په طریق سره نقل کړې دې او د دې په اخر کښې دی:

﴿فَقَالَ نُعَيْمٌ: لَا أَدْرِي قَوْلُهُ: مَنِ اسْتَطَاعَ أَنْ يُطِيلَ غُرَّتَهُ فَلْيَفْعَلْ مِنْ قَوْلِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، أَوْ مِنْ قَوْلِ أَبِي هُرَيْرَةَ﴾(۳)

**یعنی**: نعیم رحمه الله فرمائی چه ﴿من استطاع ان یطیل غرته فلیفعل﴾ والا جمله د رسول الله ﷺ فرمائیلې شوې ده یا د ابوهریره رضی الله عنه قول دې، دا خبره ماته نه ده معلومه.

حافظ ابن حجر رحمه الله او علامه عینی رحمه الله فرمائې چه دا روایت د لسو صحابه کرامو نه روایت شوې دې، په هغوی کښې د سیدنا ابوهریره رضی الله عنه نه علاوه د چا په روایت کښې هم دا جمله نشته، بیا د ابوهریره رضی الله عنه نه دا جمله صرف نعیم روایت کوېو د هغوی نه علاوه ئې بل راوی نه روایت کوی. دا ټول د مدرج کیدو علامت دې. (٤)

حافظ ابن حجر رحمه الله او علامه عینی رحمه الله چه دا خبره فرمائیلې ده چه دا جمله د نعیم مجمر د روایت نه سوا په بل یو طریق کښې هم نه ده راغلې نو دا خبره محل نظر ده، ځکه چه په مسند احمد کښې هم دا روایت د ﴿کعب المدنی عن ابی هریرة﴾ په طریق سره روایت شوې ده او په هغې کښې بعینه هم دا جمله ﴿مَنِ اسْتَطَاعَ أَنْ يُطِيلَ غُرَّتَهُ فَلْيَفْعَلْ﴾ راغلې ده. (٥) خو دا طریق ضعیف دې، ځکه چه په دې کښې لیث بن ابی سلیم راوی دې، کوم چه مختلط شوې وو، د هغوی د قبل الاختلاط او بعد الاختلاط والا احادیثو کښې د فرق نه کیدو د وجې نه محدثینو د هغه احادیث پریخودل، خو په سنن اربعه کښې د هغه روایتونه اخستلې شوې دی او امام

---

۱) مسند احمد ج ۲ ص ۱۸۰، رقم ۶۶۸٤، والسنن لابی داؤد بزیادة او نقص، کتاب الطهارة، باب الوضوء ثلاثا ثلاثا، رقم ۱۳۵، وسنن ابن ماجة، کتاب الطهارة، باب ما جاء فی القصد، وکراهة التعدی فیه، رقم ٤۲۲.

۲) اوګورئ: شرح صحیح البخاری لابن بطال: ۱۱/۲۲۲

۳) مسند احمد ج ۲ ص ۳۳٤، مسند ابی هریرة رضی الله عنه رقم ۸۳۹٤

٤) فتح الباری ج ۱ص ۲۳۶، وعمدة القاری ج ۲ ص ۲٤۹

۵) اوګورئ: مسند احمد ج ۲ ص ۳۶۲، رقم ۸۷۲۶

مسلم رحمہ اللہ مقرونا د هغه نه روایتونه اخستلې دی، او امام بخاری رحمہ اللہ د هغه نه تعلیقا روایت کړې دې.
د هغه نه علاوه په دې روایت کښې کعب مدنی دې، چه د هغه کنیت ابو عامر دې، دا مجهول راوی دې، د هغه نه د لیث بن ابی سلیم نه علاوه چا هم روایت نه دې اخستلې. (۱)
④ د دې جملې د معلول کیدو او مدرج کیدو یو دلیل دا هم دې چه کله سیدنا ابوهریره رضی اللہ عنہ اودس کولو او هغوی لاسونه د ترخونو پورې وینځل نو د هغوی نه تپوس اوکړې شو چه دا څه دی؟ په دې باندې هغوی جواب ورکړو'

﴿ سمعت خلیلی ﷺ یقول: تبلغ الحلیة من المؤمن حیث یبلغ الوضوء ﴾ (۲)

**یعنی** ما د خپل حبیب ﷺ نه اوریدلې دی چه ارشاد ئې اوفرمائیلو : چه کومو ځایونو ته د اودس اوبه رسیږی د مومن هغه اندامونه به پرقیږی.
که د سیدنا ابوهریره رضی اللہ عنہ سره هغه نص وې نو په دې موقع باندې به ئې هغه ذکر کړې وې، د دې نه ذکر کول د دې خبرې دلیل دې چه هغه د رسول الله ﷺ نه ثابت نه دې.
③ علامه ابن تیمیه رحمہ اللہ فرمائی چه دا ده د رسول الله ﷺ قول کیدې هم نه شی، ځکه چه د غرة تعلق د مخ سره دې او په مخ کښې اطالة ناممکن دې، ځکه چه د ټول مخ وینځل فرض دی د هغې نه وړاندې به کوم ځائې وینځی؟ (۳)
د جمهورو د طرف نه دا وئیلې کیدې شی چه د حضرات شیخین دې جملې لره د حدیث مرفوع په طور نقل کول او د څه قسم شك او شبهې اظهار نه کول په دې خبره دلیل دې چه دا د رسول الله ﷺ قول دې. بیا په مسند احمد کښې د ﴿ فلیح عن نعیم ﴾ په صرف یو طریق کښې د شك اظهار کړې شوې دې (٤) او د سعید بن ابی هلال عن نعیم په طریق کښې بغیر د څه شك او شبهې نه دا روایت نقل شوې دې. (۵)
د دې نه علاوه د کعب المدنی روایت (٦) د ضعف باوجود د متابعت دپاره صالح دې، په دې کښې هم بعینه هم دا جمله موجود ده.

---

۱) اوګورئ: تعلیقات الشیخ شعیب الارنؤوط علی مسند احمد ج ۱۳ ص ۳۵٤، رقم ۸۷٤۱، قال الحافظ فی التقریب تحت ترجمة اللیث بن ابی سلیم صدوق اختلط جدا، ولم یتمیز حدیثه فترک، ص ٤۹۵، رقم ۵٦۸۵، وقال الترمذی فی جامعه عقب اخراج حدیث کعب ابی عامر (فی المناقب، باب رسول الله ﷺ خاتم النبیین، رقم ۳٦۱٦) وکعب لیس بمعروف ولا نعلم احدا روی عنه غیر لیث بن ابی سلیم.
۲) صحیح مسلم، کتاب الطهارة، باب تبلغ الحلیة حیث یبلغ الوضوء، رقم ۵۸٦، وسنن النسائی، کتاب الطهارة، باب حلیة الوضوء، رقم ۱٤۹، وسنن النسائی الکبری، کتاب الطهارة، باب حلیة الوضوء رقم ۱٤۲
۳) اوګورئ: مجموع الفتاوی شیخ الاسلام ابن تیمیة ج ۱ ص ۲۷۹
٤) اوګورئ: مسند احمد ج ۲ ص ۳۳٤، رقم ۸۳۹٤، و ج ۲ ص ۵۲۳، رقم ۱۰۷۸۸،
۵) مسند احمد ج ۲ ص ٤۰۰، رقم ۹۱۸٤
٦) اوګورئ: مسند احمد ج ۲ ص ۳٦۲، رقم ۸۷۲٦

د اطاله غره او تحجيل استحباب ﴿ فَمَنْ اسْتَطَاعَ مِنْكُمْ أَنْ يُطِيلَ غُرَّتَهُ فَلْيَفْعَلْ ﴾ د جملې په اثبات باندې موقوف نه دې، بلکه هر کله چه دا د سيدنا ابوهريره رضي الله عنه د عمل نه او بيا په طور د روايت ثابت دې نو دومره خبره کافى ده.

پس مونږ شاته ذکر کړې دى چه په صحيح مسلم کښې ﴿ عمارة بن غزية عن نعيم المجمر عن ابى هريرة ﴾ په طريق سره نقل شوى روايت کښې دى:

﴿ رَأَيْتُ أَبَا هُرَيْرَةَ يَتَوَضَّأُ فَغَسَلَ وَجْهَهُ فَأَسْبَغَ الْوُضُوءَ ثُمَّ غَسَلَ يَدَهُ الْيُمْنَى حَتَّى أَشْرَعَ فِي الْعَضُدِ ثُمَّ يَدَهُ الْيُسْرَى حَتَّى أَشْرَعَ فِي الْعَضُدِ ثُمَّ مَسَحَ رَأْسَهُ ثُمَّ غَسَلَ رِجْلَهُ الْيُمْنَى حَتَّى أَشْرَعَ فِي السَّاقِ ثُمَّ غَسَلَ رِجْلَهُ الْيُسْرَى حَتَّى أَشْرَعَ فِي السَّاقِ ثُمَّ قَالَ هَكَذَا رَأَيْتُ رَسُولَ اللهِ ـ صلى الله عليه وسلم ـ يَتَوَضَّأُ ﴾ (١)

**يعنى**: سيدنا ابوهريره رضي الله عنه لاسونه وينځل د څنګلو نه پورته د مټو پورې او خپې ئې د ګيټو نه باره پنډو (سپينو) پورې وينځلې او وې فرمائيل چه ما رسول الله صلى الله عليه وسلم هم دغه شان په اودس کولو باندې ليدلې دې.

د دې نه معلومه شوه چه د اطاله دپاره د دې مخصوص جملې د ثبوت ضرورت نشته.

د دې نه علاوه حديث مرفوع ﴿ تبلغ الحلية من المؤمن حيث يبلغ الوضوء ﴾ (٢) هم د دې اطالة په استحباب باندې دال دې.

دا حديث د ﴿ فمن استطاع منكم ﴾ والا جملې د معلول کيدو د دليل په طور پيش کول واضح نه دى، ځکه چه دا ځنګه لازميدلې شى چه بعينه هم هغه جمله دوباره وئيلو سره دې جواب ورکړې شى، او حال دا چه د ﴿ تبلغ الحلية .... ﴾ نه هم دا خبره فهميږى، سيدنا ابوهريره رضي الله عنه په دې موقع باندې ﴿ تبلغ الحلية ﴾ وئيلو سره جواب ورکړو او ﴿ فمن استطاع ﴾ والا حديث ئې بيان نه کړو. ځکه چه د دواړو مفهوم يو دې.

هر چه د علامه ابن تيميه رحمه الله د انکار تعلق دې، نو وئيلې کيدې شى چه د ظاهر حديث نه خو هم دا معلوميږى چه اطاله تحجيل خو ممکن دې، خو اطاله غره ممکن نه ده، خو علامه کرمانى رحمه الله وغيره شارحينو په دې مقام باندې فرمائيلې دى چه په مخ کښې هم اطاله ممکنه ده، هغه داسې چه د تندى دپاسه د سر څه حصې ته هم اوبو اورسولې شى، هم دغه شان د مخ طرفونه او د زنې د لاندې د مرئ او سټ پورې لوند کړې شى. (٣)

مالکيانو چه د ﴿ فَمَنْ زَادَ عَلَى هَذَا أَوْ نَقَصَ فَقَدْ أَسَاءَ وَظَلَمَ ﴾ (٤) نه کوم استدلال کړې دې هغه هم فاسد دې، ځکه چه شاته مونږ د دې تاويلات ذکر کړې دى، دا حديث په عدد المرات کښې

---

١) صحيح مسلم، كتاب الطهارة، باب استحباب اطالة الغرة والتحجيل فى الوضوء، رقم ٥٧٩
٢) صحيح مسلم، كتاب الطهارة، باب تبلغ الحلية حيث يبلغ الوضوء، رقم ٥٨٦
٣) اوګورئ: شرح الكرمانى ج ٢ ص ١٧٢
٤) مسند احمد ج ٢ ص ١٨٠، رقم ٦٦٨٤

په زیادت او نقص باندې محمول دې، نه په تطویل غره او تحجیل باندې. (۱)
ابن بطال رحمه الله د اطالة غرة یو بل تاویل کړې دې، هغه فرمائی چه دلته د اطاله نه مراد مواظبت او دوام دې، یعنی په اودس دې مواظبت او دوام اختیار کړې شی، دا د اندامونو د نور او د هغې د تقویت باعث دې. (۲)
خو دا تاویل هم ظاهر البطلان دې، ځکه چه د دې راوی سیدنا ابوهریره رضی الله عنه دې او هغه د اطالة معنی د مداومت او مواظبت په ځائې د اودس په اندامونو کښې اضافه ګڼړی،

﴿والراوی ادری بمعنی ما روی﴾ (راوی ته د خپل روایت مطلب زیات معلوم وی) بیا هغوی نه صرف په دې باندې عمل اوکړو بلکه دا عمل ئې مرفوعا نقل هم کړو، په دې وجه دا تاویل بالکل صحیح نه دې. (۳)
بیا ابن بطال، قاضی عیاض او ابن التین رحمه الله د علماء کرامو په دې اتفاق نقل کړې دې چه د مرفق او کعب نه پورته وینځل مستحب نه دی.
خو دا د اتفاق نقل کولو هم صحیح نه دی، ځکه چه د رسول الله ﷺ نه نقل کړې شوې دی چه هغوی به د اودس اندامونه د فرض مقدار نه زیات وینځل، د سیدنا ابوهریره رضی الله عنه عمل هم مخکښې ذکر شوې دې، هم دغه شان سیدنا عبدالله بن عمر رضی الله عنهما نه ابن ابی شیبه او ابو عبید په حسن سندسره نقل کړې دی چه هغوی به هم داودس اندامونه وینځلو کښې اطالة فرمائیله.(٤)
بیا مخکښې د علماء حنفیه، شافعیه او حنابله فتاوی هم ذکر کړې شوې دی چه دا اطاله غرة وتحجیل مستحب دې او د اودس د آدابو نه دې، لهذا دا د اتفاق نقل کول صحیح نه دی.
حاصل دا چه اطاله غره او تحجیل د اکثر علماء او جمهورو په نزد مستحب دې، خو ابن تیمیه او د هغه ملګری صرف د یدین او رجلین د اطاله قائل دی، او په مخ کښې د اطاله هغوی قائل نه دی، او د امام مالک رحمه الله په نزد اطاله نه صرف دا چه مستحب نه ده بلکه مکروه ده. والله اعلم

**څومره مقدار اطاله مستحب ده؟** : بیا چه کوم حضرات د استحباب قائل دی د هغوی اقوال دې باره کښې مختلف دی چه څومره مقدار پورې اطاله اوکړې شی؟
د احنافو. حنابله او شافعیه کښې د یو جماعت په نزد د اطاله تحجیل څه حد نه دې مقرر.(٥)
پس علامه شامی رحمه الله د ابن امیر الحاج رحمه الله نه نقل کړې دی:

﴿وهل له حد؟ لم اقف فیه علی شئ لاصحابنا﴾ (٦)

---

١) عمدة القاری ج٢ ص ٢٤٩
٢) شرح صحیح البخاری لإبن بطال ج ١ ص ٢٢٢
٣) فتح الباری ج ١ ص ٢٣٧
٤) المصنف لابن ابی شیبة ج ١ ص ٤٢٤، کتاب الطهارة، باب فی الرجل یتبلغ بالوضوء ابطه، رقم ٦٠٩، وفتح الباری ج ١ ص ٢٣٦، وعمدة القاری ج ٢ ص ٢٤٩
٥) اوګورئ: الموسوعة الفقهیة الکویتیة ج ٣٩ ص ١١٨، مادة منکب
٦) رد المحتار ج ١ ص ٩٦

**يعني**: د دې حد څه دې؟ په دې سلسله کښې ماته د خپلو اصحابو په کتابونو کښې هيڅ نه دی ملاؤ شوی.
هم دغه شان امام نووی رحمه الله ليکلي دی:

﴿ ثم ان جماعة منهم اطلقوا استحباب ذلك ولم يحدوا غاية الاستحباب بحد كما أطلقه المصنف رحمه الله، وقال جماعة يستحب الى نصف الساق والعضد وقال القاضى حسين وآخرون يبلغ به الابط والركبة، وقال البغوى نصف العضد فما فوقه ونصف الساق فما فوقه والله أعلم ﴾(١)

يعنى شوافع د مافوق المرفقين والكعبين وينځلو ته مستحب وئيلي دی، بيا په هغوی کښې يو جماعت دا استحباب د يو حد سره نه دې محدود کړې بلکه مطلق ئې ساتلې دې، او يو جماعت دنصف ساق او نصف عضد قول اختيار کړې دې، قاضی حسين او نورو حضراتو د اوګو پورې، هم دغه شان د خپو د کونډو پورې مستحب کړې دی، امام بغوی رحمه الله فرمائی چه د مټ د نيمې نه پورته پورې، هم دغه شان د پنډۍ د نيمې نه پورته پورې وينځل مستحب دی.

**د ترجمة الباب سره مطابقت**: ترجمة الباب دې: ﴿باب فضل الوضوء﴾ او په حديث شريف کښې د اودس فضيلت ذکر شوې دې په داسې طريقه چه د ﴿ إطالة الغرة والتحجيل ﴾ په نتيجه کښې چه کوم فضيلت حاصليږی هغه د زيادة على الواجب د اثراتو نه دې، چه هر کله د زيادت دا فضيلت دې نو د اصل واجب به څومره فضيلت وی. (٢) والله اعلم

★★★★★★★

## ④ باب لَا يَتَوَضَّأُ مِنَ الشَّكِّ حَتَّى يَسْتَيْقِنَ

دا باب د دې خبرې په بيان کښې دې چه د شك د وجې نه دې اودس نه کوی، تردې چه يقين ئې پيدا شی.

**د مخکښې باب سره مناسبت**: مخکښې باب د اودس د احکاماتو نه د يو حکم يعنی د اودس د فضيلت په باره کښې وو او دا باب هم د اودس د احکاماتو نه د يو حکم په باره کښې دې چه د يقينی اودس نه پس که د اودس د ماتيدو شك وی نو اودس ضروری دې يا نه دې؟ امام بخاری رحمه الله د قاعدې فقهيه مطابق اوفرمائيل چه صرف د شك په بنياد يقينی اودس نه ماتيږی. (٣)

**مقصد د ترجمة الباب**: د ترجمة الباب نه د امام بخاری رحمه الله مقصد واضح دې، هغوی دا بيانول غواړی چه صرف په شك سره اودس نه ماتيږی، مثلا چا که اودس اوکړو او روستو

١) المجموع ج ١ ص ٤٢٨
٢) فتح البارى ج ١ ص ٢٣٧
٣) اوګورئ: عمدة القارى ج ٢ ص ٢٥٠

ئې شك پيدا شو چه هواترې خارج شوې ده يا نه نوصرف د شك په بنيادبه اودس نه ماتيږي.(۱)
علامه سندهي رحمه الله فرمائي چه په داسې انسان باندې اودس لازم نه دې، دا مطلب نه دې چه هغه لره اودس نه دی کول پکار، بلکه مناسب دا ده چه اودس اوکړي، خو که د مانځه په حالت کښې داسې شك پيدا شي نو مونځ نه دی ماتول پکار، هم دا د حديث مقتضى ده. (۲)
بله دا هم ممکنه ده چه د امام بخاري رحمه الله مقصد د ذکر شوې فائدې سره سره د وضوء من اجل الشك د مسئلې طرف ته هم اشاره وي، چه په کومه کښې د امام مالك رحمه الله د جمهورو سره اختلاف دې او امام بخاري رحمه الله د هغې د ترديد دپاره دا باب قائم کړې وي. (۳)
**د شك د وجې نه د اودس حکم** : که چاته د بې اودسئ يقين وي خو په دې کښې ئې شك وي چه آيا د بې اودسئ نه پس مې اودس کړې وو يا نه؟ په داسې انسان باندې بالاجماع اودس لازم دې. او که يقيني طهارت ورته حاصل وو، د هغې نه روستو ئې په دې خبره کښې شك پيدا شو چه بې اودسه شوې دې يا نه؟نو په دې کښې اختلاف دې.
د ائمه ثلاثه، امام ابوحنيفه، امام شافعي، امام احمد او جمهور فقهاء او علماء کرامو رحمهم الله په نزد په داسې انسان باندې اودس واجب نه دې، که دا شك په مانځه کښې دننه پيښ شوې وي يا د مانځه نه بهر.
د امام حسن بصري رحمه الله په نزد تفصيل دا دې چه که شك په مانځه کښې دننه پيدا شي نو اودس لازم نه دې او که د مانځه نه بهر وي نو اودس لازم دې.
د امام مالك رحمه الله په دې مسئله کښې څو اقوال دی، يو قول خو ئې د جمهورو مطابق دې، دويم قول ئې دا دې چه که دا شك اکثر راځي نو بيا اودس لازم نه دې او که شك ئې اکثر نه پيدا کيږي نو بيا دې د شك سره مونځ نه کوي بلکه اودس دې اوکړي.
يو قول ئې دا دې چه شك مطلقا ناقض وضوء دې.
يو قول ئې دا دې چه په خارج الصلاة کښې ناقض دې، په داخل الصلاة کښې نه دې.
حاصل دا دې چه د جمهورو په نزد د يقيني طهارت نه پس شك فى الحدث ناقض وضوء نه دې او نه ترې اودس لازم دې.
او د امام مالك رحمه الله په نزد د هغوی د مشهور قول مطابق شك ناقض وضوء دې او د شك راتلو په صورت کښې اودس لازم دې. (٤) والله اعلم

۱) اوګورئ : الکنز المتواري ج ۳ ص ۱۱
۲) حاشية السندي على صحيح البخاري ج ۱ ص ۷۲
۳) اوګورئ : الکنز المتواري ج ۳ ص ۱۱
٤) د مذاهبو د تفصيل دپاره اوګورئ : الدر المختار مع رد المحتار ج ۱ ص ۱۱۱، والمجموع شرح المهذب ج ۲ ص ۶۳، ٦٤ والانصاف للمرداوي ج ۱ ص ۲۲۱، والمغني لابن قدامة ج ۱ ص ۱۲۶، وعارضة الاحوذي ج ۱ ص ۱۰۰، ومختصر اختلاف العلماء ج ۱ ص ۱۵۳، ۱٥٤، رقم ۶۳ في الشك في الحدث والوضوء.

۱۳۷: ﴿حَدَّثَنَا عَلِيٌّ قَالَ: حَدَّثَنَا سُفْيَانُ قَالَ: حَدَّثَنَا الزُّهْرِيُّ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ وَعَنْ عَبَّادِ بْنِ تَمِيمٍ عَنْ عَمِّهِ(۱) أَنَّهُ شَكَا إِلَى رَسُولِ اللهِ صلى الله عليه وسلم الرَّجُلُ الَّذِي يُخَيَّلُ إِلَيْهِ أَنَّهُ يَجِدُ الشَّيْءَ فِي الصَّلاَةِ فَقَالَ: لاَ يَنْفَتِلْ، أَوْلاَ يَنْصَرِفْ - حَتَّى يَسْمَعَ صَوْتًا، أَوْ يَجِدَ رِيحًا﴾ [۱۷۵، ۱۹۵۱]

## رجال الحديث

① **علی**: دا امیر المومنین فی الحدیث امام علی بن عبدالله بن جعفر بن نجیح سعدی بصری المعروف بابن المدینی رحمه الله دی. د هغوی حالات په کتاب العلم (باب الفهم فی العلم) د لاندې تیر شوی دی. (۲)

② **سفیان**: دا امیر المومنین فی الحدیث امام سفیان بن عیینه رحمه الله دی. د هغوی حالات په (بدء الوحی) کښې د اولنی حدیث په ضمن کښې مختصرا (۳) او په کتاب العلم (باب قول المحدث حدثنا او اخبرنا وانبانا) د لاندې تفصیلا ذکر شوی دی. (٤)

③ **الزهری**: دا امام محمد بن مسلم بن عبیدالله بن عبدالله بن شهاب زهری مدنی رحمه الله دی، د هغوی حالات په (بدء الوحی) کښې د دریم حدیث د لاندې تیر شوی دی. (۵)

④ **سعید بن المسیب**: د امام التابعین، سید الفقهاء سعید بن المسیب قرشی مخزومی رحمه الله دی، د هغوی حالات په کتاب الایمان (باب من قال ان الایمان هو العمل) د لاندې تیر شوی دی. (۶)

⑤ **عباد بن تمیم**: دا عباد بن تمیم بن غزیه انصاری مازنی مدنی رحمه الله دی. (۷)
دی د خپل والد تمیم بن غزیه، د خپل تره عبدالله بن زید بن عاصم، عویمر بن اشقر،

---

۱) قوله (عن عمه). وهو عبدالله بن زید بن عاصم المازنی رضی الله تعالی عنه. والحدیث: اخرجه البخاری ایضا فی صحیحه، فی کتاب الوضوء، باب من لم یر الوضوء الا من المخرجین رقم ۱۷۷. وفی کتاب البیوع باب من لم یر الوساوس ونحوها من الشبهات، رقم ۲۰۵۶. ومسلم فی صحیحه فی کتاب الحیض، باب الدلیل علی ان من تیقن الطهارة ثم شک فی الحدث فله ان یصلی بطهارته تلک، رقم ۸۰٤. والنسائی فی سننه، فی کتاب الطهارة، باب الوضوء من الریح رقم ۱۶۰. وابوداؤد فی سننه، فی کتاب الطهارة، باب اذا شک فی الحدث، رقم ۱۷۶. وابن ماجة فی سننه، فی کتاب الطهارة، باب لا وضوء الا من حدث، رقم ۵۱۳. واحمد فی مسنده ج ٤ ص ۳۹ و ٤۰، رقم ۱۶۵۵۶، ۱۶۵۶٤.

۲) کشف الباری ج ۳ ص ۲۹۷ تا ۳۰۲

۳) کشف الباری ج ۱ ص ۲۳۸

٤) کشف الباری ج ۳ ص ۱۰۲ تا ۱۰۶

۵) کشف الباری ج ۱ ص ۳۲۶

۶) کشف الباری ج ۲ ص ۱۵۹ تا ۱۶۱

۷) تهذیب الکمال ج ۱٤ ص ۱۰۷، ۱۰۸

ابو بشیر انصاری، ابو سعید خدری، ابو قتاده انصاری او خپلې نیا ام عماره انصاریه رضی الله عنهم نه روایت کوی.
د هغوی نه په روایت کونکو کښې ابوبکر بن حزم، عبدالله بن ابی بکر بن حزم، عمارة بن عزیة، عمرو بن یحیی بن عماره، محمد بن ابی بکر بن حزم، امام زهری او یحیی بن سعید انصاری رحمهم الله وغیره شامل دی. (۱)
د عباد والد محترم تیم او عبدالله دواړه رونړه دی، د یو قول مطابق په مور کښې شریك او د بل قول مطابق په پلار کښې شریك رونړه دی. (۲)
د هغوی نیا ام عماره نسیبه بنت کعب رضی الله عنها ده. (۳)
عباد رحمه الله بعض حضراتو په صحابه کرامو کښې شمار کړې دې ځکه چه ابن سعد رحمه الله د موسی بن عقبه رحمه الله نه نقل کړی دی:

﴿ قال عباد بن تميم انا يوم الخندق ابن خمس سنين، فاذكر اشياء واعيها، وكنا مع النساء في الاطام، وما كان اهل الاطام ينامون الاعقب، خوفا من بني قريظة ان يغيروا عليهم ﴾ (۴)

يعنی : زه د غزوه خندق په موقع باندې د پنځو کالو اوم، ډیر څیزونه به ما یادول او محفوظ کول به مې، مونږ د زنانو سره په قلعه ګانو کښې وو او د قلعه خلق به د شپې په نمبر نمبر اوده کیدل، ځکه چه د بنی قریظه د طرف نه د حملې کولو ویره وه.
د دې روایت په رڼا کښې دې صحابی دې، پس حافظ ذهبی رحمه الله دې په صحابه کرامو رضی الله عنهم کښې شمار کړې دې.(۵)
کوم حضرات چه هغه صحابی نه ګنړی هغوی ئې تابعی ګنړی، پس ابن عبد البر رحمه الله فرمائی:

﴿ وعباد بن تميم احد ثقات التابعين بالمدينة ﴾(۶) يعنی عباد بن تمیم رحمه الله د مدینې منورې په ثقه تابعینو کښې یو دې.

امام عجلی رحمه الله فرمائی : ﴿ مدنی، تابعی، ثقة ﴾(۷)

ابن خلفون رحمه الله هغه په کتاب الثقات کښې ذکر کولو سره نقل کړی دی : ﴿ وثقه ابن عبد الرحيم يعني التبان ﴾(۸)

---

۱) پورته حواله
۲) پورته حواله
۳) معانی الاخبار ج ۳ ص ۴۸
۴ ) الطبقات لابن سعد: ۸۱\۵
۵ ) اوګورئ: تجرید أسماء الصحابة: ۲۹۱\۱، رقم (۳۰۷۴)
٦) التمهید لابن عبدالبر ج ۹ ص ۲۰۳
۷) معرفة الثقات ج ۲ ص ۱۶، رقم ۸۳۴، واکمال تهذیب الکمال لمغلطائی ج ۷ ص ۱۶۴، رقم ۲۶۸۲، وتهذیب التهذیب ج ۵ ص ۹۱
۸) اکمال تهذیب الکمال ج ۷ ص ۱۶۴، رقم ۲۶۸۲

امام محمد بن اسحاق او امام نسائي رحمهما الله فرمائي: ﴿ثقة﴾(۱)

حافظ ذهبي رحمه الله فرمائي: ﴿ثقة﴾(۲)

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي ﴿ثقة من الثالثة وقد قيل ان له رؤية﴾(۳)

امام ابن حبان رحمه الله په كتاب الثقات كښ ذكر كړې دې. (٤) رحمه الله رحمة واسعة

تنبيه: د هغوی د وفات كال د هغوی په تذكره كونكو كښ چا هم نه دې ليكلې، خو ابن سعد رحمه الله نقل كړې دې ﴿وكان له اخوان لابيه وامه: معمر وثابت ابنا تميم، قتلا يوم الحرة في ذي الحجة، سنة ثلاث وستين﴾(۵) يعني د هغه دوه حقيقي رونړه معمر او ثابت وو، دا دواړه د حره په واقعه كښ په ذوالحجة ۶۳ هـ كښ شهيد شوې وو.

د تهذيب الكمال محقق ډاكټر بشار عواد معروف حفظه الله دلته خطاء شوې دې چه د ابن سعد په حوالې سره ئې دا ليكلې دی چه: ﴿وقال ابن سعد: قتل يوم الحرة في ذي الحجة سنة ثلاث وستين﴾(۶) والله اعلم

⑨ عمه: دا سيدنا عبدالله بن زيد بن عاصم بن كعب بن عمرو انصاری مازنی مدنی رضي الله عنه دې.(۷)

د واقدي رحمه الله د قول مطابق عبدالله بن زيد رضي الله عنه مسيلمه كذاب لره قتل كړې وو پس د هغوی د مور ام عماره رضي الله عنها نه روايت دې چه ما مسيلمه لټولو، چه او مې كتل نو زما ځوئی عبدالله مسيلمه لره قتل كولو سره خپله توره صفا كوله. (۸)

سيدنا وحشي بن حرب رضي الله عنه فرمائي چه ما خپله نيزه ويشتله او د انصارو يو سړی پرې په تورې سره حمله اوكړه نو اوس الله پاك ښه پوهيږی چه په مونږ كښ چا قتل كړو، خو په قلعه كښ يوې جينۍ چغې وهلې چه حبشي غلام مسيلمه قتل كړو. (۹)

سيدنا عبدالله بن زيد بن عاصم رضي الله عنه په غزوه بدر كښ شريك شوې وو يا نه؟ په دې كښ

۱) تهذيب الكمال ج ١٤ ص ١٠٩
۲) الكاشف ج ١ ص ٥٢٩، رقم ٢٥٥٨
۳) تقريب التهذيب ص ٢٨٩، رقم ٣١٢٣
٤) الثقات لابن حبان ج ٥ ص ١٤١
٥) الطبقات لابن سعد ج ٥ ص ٨١
٦) تعليقات تهذيب الكمال ج ١٤ ص ١٠٩
٧) تهذيب الكمال ج ١٤ ص ٥٣٨
٨) تهذيب الكمال ج ١٤ ص ٥٣٩
٩) پورته حواله

اختلاف دي، خو دې او د هغوی مور بيبی ام عماره رضي الله عنها په غزوه احد كښې شريك وو. (۱) پس دې روايت كوی چه رسول الله ﷺ په دغه ورځ فرمائيلي وو ﴿ رحكم الله اهل البيت ﴾(۲)
هغه د رسول الله ﷺ نه حديث روايت كوی، د هغوی نه په روايت كونكو كښې امام سعيد بن المسيب، عباد بن تميم واسع بن حبان بن منقذ، يحيی بن عمارة بن ابی حسن «دا ئې زوم دې» او ابوسفيان مولی ابی احمد رحمهم الله دی. (۳)

د واقعه حره په موقع باندې په ۶۳ هجری كښې شهيد شوې دې. رضی الله عنه وارضاه

تنبيه : دلته په سند كښې دی ﴿ حَدَّثَنَا الزُّهْرِيُّ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ وَعَنْ عَبَّادِ بْنِ تَمِيمٍ عَنْ عَمِّهِ ﴾ يعنی امام زهری رحمه الله د سعيد بن المسيب رحمه الله او عباد بن تميم رحمه الله دواړو نه روايت كوی او هغوی دواړه د عباد رحمه الله د ترهٔ سيدنا عبدالله بن زيد بن عاصم رضي الله عنه نه روايت كوی. گويا د ﴿ عن عباد ﴾ عطف په ﴿ عن سعيد ﴾ باندې دې. او حال دا چه ډ كريمه په روايت كښې واؤ عطف ساقط كيدو سره عبارت داسې شوې دې. ﴿ عن سعيد بن المسيب عن عباد بن تميم ﴾ او د دې مطلب دا شو چه سعيد بن المسيب د عباد بن تميم نه روايت كوی، او حال دا چه د سعيد بن المسيب د عباد بن تميم نه اصلا روايت بالكل ثابت نه دې..(٤)
بيا دلته د سعيد بن المسيب رحمه الله شيخ هم سيدنا عبدالله بن زيد رضي الله عنه دې، چه د هغې تعبير په ﴿ عن عمه ﴾ سره كړې شوې دې او مطلب دا دې ﴿ عن عم الثانی ﴾ يعنی دا روايت د دويم راوی عباد د ترهٔ نه نقل دې، گويا دواړه موصولا روايت كوی. (۵)
خو دلته يو احتمال دا هم دې چه د عباد روايت خو د عبدالله بن زيد بن عاصم رضي الله عنه نه وی او موصول وی او د سعيد بن مسيب رحمه الله روايت مرسل وی. (۶)
د امام مزی رحمه الله رجحان د سعيد بن المسيب رحمه الله د طريق هم په دې سند سره د موصول كيدو دې، پس په تحفة الاشراف كښې هغوی د دې تصريح كړې ده، (۷) او د دويم احتمال تائيد د ابن ماجه د روايت نه كيږی كوم چه ﴿ ابو كريب، حدثنا المحاربی، عن معمر بن راشد، عن الزهری، انبانا

---

۱) شهد بدار، قاله ابن مندة، وابو نعيم وقال ابو عمر شهد احدا وغيرها، ولم يشهد بدرا، وهو الصحيح اسد الغابة ج ۳ ص ۲۵۱، رقم ۲۹۵۸، وانظر الاستيعاب بهامش الاصابة ج ۲ ص ۳۱۲، وانظر معرفة الصحابة ج ۳ ص ۱۵۰، رقم الترجمة ۱۶٤۰، وسبل الهدی والرشاد ج ٤ ص ۱۰۸.
۲) الطبقات لابن سعد ج ۸ ص ٤۱۵، ترجمة ام عمارة رضی الله عنها
۳) اوگورئ : تهذيب الكمال ج ۱٤ ص ۵۳۹
٤) اوگورئ : فتح الباری ج ۱ ص ۲۳۷
۵) پورته حواله
۶) پورته حواله
۷) پس هغوی فرمائی : ﴿ عن الزهری عن سعيد بن المسيب وعباد بن تميم كلاهما عن عمه عبد الله بن زيد به ﴾ تحفة الاشراف ج ٤ ص ۳۳۶

سعيد بن المسيب، عن ابى سعيد الخدرى رضی اللہ عنہ ﴾ په طريق سره روايت شوې دې. (١) ګويا دا حديث امام سعيد بن المسيب رحمہ اللہ د ابو سعيد خدرى رضی اللہ عنہ نه نقل كوى او حال دا چه امام بخارى رحمہ اللہ دا مرسلا نقل كړې دې.

حافظ ابن حجر رحمہ اللہ فرمائى د دې روايت ټول راويان اګر چه ثقات دى خو امام احمد رحمہ اللہ دې ته منكر وئيلې دې. (٢) د دې وجه د امام احمد رحمہ اللہ ځوئى عبدالله بن احمد رحمہ اللہ دا بيان كړې ده: ﴿ ولم نعلم ان المحاربى سمع من معمر شيئا، وبلغنا ان المحاربى كان يدلس ﴾ (٣)

يعنى مونږ ته دا علم نشته چه محاربى د معمر نه څه اوريدلې وى او مونږ ته دا خبره معلومه شوې ده چه محاربى به تدليس كولو.

د ﴿ سعيد بن المسيب عن ابى سعيد الخدرى ﴾ په طريق سره هم دا حديث امام احمد رحمہ اللہ په ډيرو ځايونو كښې روايت كړې دې (٤) خو په هغه ټولو كښې ضعف دې. (٥)

لهذا وئيلې كيدې شى چه اګر چه د صحيح بخارى په دې حديث كښې د ارسال احتمال دې خو راجحه دا ده چه دلته دا حديث موصول دې او د عبدالله بن زيد رضی اللہ عنہ په مسانيد كښې دې نه د ابو سعيد خدرى رضی اللہ عنہ په مسانيد كښې. والله اعلم.

**يو بله تنبيه**: عبدالله بن زيد بن عاصم رضی اللہ عنہ د عباد بن تميم رحمہ اللہ تره وو، خو په دې كښې اختلاف دې چه دا ئې د پلار سره په مور كښې شريك رور وو يا پلا كښې؟

په دې باندې ځان داسې پوهه كړئ چه په دې كښې اختلاف دې چه عبدالله بن زيد او تميم رضی اللہ عنہما خپل مينځ كښې مور شريك رونړه وو كه پلار شريك؟

حافظ ابن حجر رحمہ اللہ په پلار كښې شريكې رور ولئ ته ترجيح وركړې ده، پس هغوى د تميم رضی اللہ عنہ د ترجمې د لاندې ليكى:

﴿ تميم بن زيد الانصارى، والد عباد، واخو عبدالله بن زيد بن عاصم المازنى فى قول الاكثر ﴾ (٦)

يعنى دا تميم بن زيد الانصارى د عباد والد دې او د اكثر حضرات د قول مطابق د عبدالله بن زيد بن عاصم رضی اللہ عنہ رور دې.

---

١) پوره حديث داسې دې: ﴿ حَدَّثَنَا أَبُو كُرَيْبٍ . حَدَّثَنَا الْمُحَارِبِيُّ . عَنْ مَعْمَرِ بْنِ رَاشِدٍ . عَنِ الزُّهْرِيِّ . أَخْبَرَنَا سَعِيدُ بْنُ الْمُسَيَّبِ . عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ . قَالَ : سُئِلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ التَّشَبُّهِ فِي الصَّلاَةِ . فَقَالَ : لاَ يَنْصَرِفُ حَتَّى يَسْمَعَ صَوْتًا . أَوْ يَجِدَ رِيحًا ﴾ سنن ابن ماجة، كتاب الطهارة وسننها، باب لا وضوء الا من حدث، رقم ٥١٤

٢) فتح البارى ج ١ ص ٢٣٧)

٣) اوګورئ: علل الامام احمد بن حنبل ج ٣ ص ٣٦٣ رقم ٥٥٩٧

٤ ) اوګورئ: مسند احمد ج ٣ ص ٩٦، رقم ١١٩٣٤، ١١٩٣٥

٥) وهذا اسناد ضعيف لضعف على بن زيد وهو ابن جدعان، وبقية رجاله ثقات، رجال الصحيح، المسند للامام احمد بتحقيق شعيب الارنؤوط واصحابه، رقم ١١٩١٢، ١١٩١٣

٦) الاصابة ج ١ ص ١٨٥

وراندې فرمائی : ﴿ وقيل هو اخوه لامه، واما ابوه فهو غزية بن عمرو بن عطية، وبذلك جزم الدمياطى، تبعا لابن سعد ﴾(۱) يعنى : وئيلې شوې دی چه تميم د عبدالله بن زيد رضی الله عنهما په مور کښې شريك رور وو، او د هغوی پلار غزيه بن عمرو بن عطيه دې، دمياطی د ابن سعد په اتباع کښې هم په دې باندې جزم کړې دې.

حقيقت دا دې چه دا په مور کښې شريك رونړه وو، امام ابن سعد رحمه الله د دې تفصيل داسې بيان کړې دې. ﴿ وتزوج ام عمارة بنت كعب زيد بن عاصم بن عمرو بن عوف .... فولدت له عبدالله وحبيبا، صحبا النبى ﷺ، ثم خلف عليها غزية بن عمرو بن عطية، فولدت له تميما وخولة ﴾(۲)

حاصل د دې دا دې چه : د ام عماره بنت کعب رضی الله عنها سره زيد بن عاصم نکاح اوکړه، هغوی سره د هغوی ځوئی عبدالله بن زيد او حبيب بن زيد پيدا شو، دا دواړه صحابه کرام وو. بيا د زيد بن عاصم نه پس د هغې سره غزيه بن عمرو بن عطيه نکاح اوکړه او د هغې نه د هغوی اولاد تميم او خوله پيدا شو.

لهٰذا عبدالله بن زيد بن عاصم او تميم بن غزيه بن عمرو دواړه په مور کښې شريك شو او عبدالله بن زيد رضی الله عنه د عباد بن تميم رحمه الله تره هم په دې نسبت سره دې يعنی د پلار ئې په مور کښې د شريك رور کيدو د وجې نه دې. والله اعلم

**قوله: أَنَّهُ شَكَا إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الرَّجُلُ الَّذِي يُخَيَّلُ إِلَيْهِ أَنَّهُ يَجِدُ الشَّيْءَ فِي الصَّلَاةِ:** هغوی رسول الله ﷺ ته شکايت اوکړو چه يو سړې دې چه هغه ته په مانځه کښې خيال راځی چه هغه په مانځه کښې څه محسوس کړې دی يعنی ګمان ورته راځی چه بې اودسه شوې دې.

زمونږ په دې روايت کښې ﴿ شكا ﴾ د ماضی معروف صيغه ده.(۳) ګويا ﴿ شاكى ﴾ يعنی سائل خپله راوی يعنی سيدنا عبدالله بن زيد بن عاصم رضی الله عنه دې، پس د ابن خزيمه په روايت کښې تصريح موجود ده: ﴿ عن عمه عبدالله بن زيد قال : سالت رسول الله ﷺ عن الرجل يجد الشئ وهو فى الصلاة ﴾(٤)

د صحيح بخاری په بعض نسخو کښې د ﴿ شُكِىَ ﴾ مجهول صيغه هم راغلې ده، په دې صورت کښې به په ﴿ انه شكى ﴾ کښې ضمير، ضمير شان وی. (فتح البارى ج ۱ ص ۲۳۷)

په صحيح مسلم کښې په مجهول صيغې سره راغلې دې(۵)

---

۱) پورته حواله
۲) الطبقات لابن سعد : ۴۱۲۱۸
۳) فتح البارى ج ۱ ص ۲۳۷
٤) صحيح ابن خزيمة ج ۱ ص ٤٧، كتاب الوضوء باب جماع ابواب الاحداث الموجبة للوضوء رقم ۲۵
۵) صحيح مسلم ج ۱ ص ۱۵۸، كتاب الحيض، باب الدليل على ان من تيقن الطهارة، ثم شک فى الحدث فله ان يصل بطهارته تلك، رقم ۸۰٤)

لکه چه امام نووی رحمه الله د دې تصریح کړې ده. (۱)

**قوله: الرجل:** دا مرفوع دې په دې کښې اعراب اعراب حکائی دې او پوره جمله د ﴿شکا﴾ د مفعول کیدو د وجې نه د نصب په موضع کښې ده. (۲)

**قوله: یخیل:** د باب تفعیل نه د واحد مذکر مضارع مجهول صیغه ده، د دې معنی د گمان کولو راځی. (۳)

**قوله: یجد الشئ:** څه محسوس کوی، یعنی ورته محسوسیږی چه څه څیز ترې خارج شوې دې او حدث ورته لاحق شوې دې، پس د اسماعیلی په روایت کښې د دې صراحت موجود دې ﴿یخیل الیه فی صلاته انه یخرج منه شئ﴾ (٤)

**قوله: فی الصلاة:** په مانځه کښې دننه محسوس کوی چه بې اودسه شوې دې.

د دې نه بعض مالکیانو استدلال کړې دې چه د عدم نقض وضوء حکم کوم چه په حدیث الباب کښې راغلې دې دا د هغه سړی دپاره دې کوم چه په مانځه کښې دننه دې، یعنی د هغه اودس به د شك د وجې نه نۀ ماتیږی، او هر چه د هغه سړی تعلق دې کوم چه د مانځه نه بهر دې، پس د هغه حکم دا دې چه د هغه اودس به د شك د وجې نه مات شی. (۵)

دې حضراتو چه په مانځه کښې د داخل او خارج ترمینځه کوم تفریق کړې دې د هغې بنیاد دا دې چه شریعت مطهره د عباداتو د باطل کولو نه منع فرمائیلې ده ﴿ولا تبطلوا اعمالکم﴾ (۶) که په مانځه کښې دننه د اودس د ماتیدلو حکم اولگوو نو د دې نه به ابطال عبادت لازم شی او د مانځه په خارج کښې د نقض وضوء حکم لگولو سره د ابطال عبادت خرابی نه لازمیږی. (۷)

خو د دې حضراتو دا استدلال صحیح نه دې ځکه چه ﴿نهی عن ابطال العبادة﴾ خو د عبادت په صحت باندې موقوف دې، یعنی که د چا عبادت صحیح طریقې سره کیدو نو هغه دې باطل نه کړې شی، دلته خو تاسو د دې خبرې قائل یئ چه شك ناقض وضوء دې، که دا شك په خارج صلاة کښې ناقض وضوء دې نو په داخل صلاة کښې به هم ناقض وضوء وی، لکه چه د نورو نواقض وضوء هم دا حال دې. (۸)

هر چه په حدیث الباب کښې د ﴿فی الصلاة﴾ د قید تعلق دې نو دا قید احترازی نه دې بلکه په

---

۱) اوگورئ: شرح النووی علی صحیح مسلم ج ۱ ص ۱۵۸
۲) فتح الباری ج ۱ ص ۲۳۷
۳) پورته حواله
٤) پورته حواله
۵) فتح الباری ج ۱ ص ۲۳۷، ۲۳۸
۶) سورة محمد آیت ۳۳
۷) اوگورئ فتح الباری ج ۱ ص ۲۳۸
۸) پورته حواله

مانځه کښ د ننه د پېښيدونکي کيفيت واقعه اظهار دې. والله اعلم

**قوله: فَقَالَ لَا يَنْفَتِلْ أَوْ لَا يَنْصَرِفْ حَتَّى يَسْمَعَ صَوْتًا أَوْ يَجِدَ رِيحًا:** رسول الله ﷺ اوفرمائيل: هغه دې ترهغه وخته پورې د مانځه نه نۀ واپس کيږي ترڅو چه ئې اواز نه وي اوريدلې يا ئې بدبوئي نه وي محسوس کړې.

﴿ لاينفتل ﴾او ﴿ لاينصرف ﴾ يوه معنى لرى، د واپس کيدو او راګرځيدو په معنى کښ دې، بيا دلته ﴿ او ﴾ د شك دپاره دې او دا شك د امام بخارى د استاذ على بن المدينى رحمه الله د طرف نه دې، ځکه چه د سفيان بن عيينه رحمه الله نه نورو راويانو بغير د شك نه ﴿ لاينصرف ﴾ روايت کړې دې. (فتح البارى ج ۱ ص ۲۳۸)

دا لفظ مجزوم هم کيدې شي ځکه چه ﴿ لا ﴾ د نهى دپاره ده او مرفوع هم لوستلې کيدې شي په دې صورت کښ به ﴿ لا ﴾ د نفى دپاره منلې شي. (۱)

**قوله: حَتَّى يَسْمَعَ صَوْتًا أَوْ يَجِدَ رِيحًا:** تردې چه د حدث اواز واورى يا بدبوئي محسوس کړى دلته دا د مثال په طور ذکر کړې شوې دې، اصل مقصود د تيقين حاصليدل دى اوس که يو سړى ته آواز او بدبوئي نه محسوس کيږى خو د هغه د اودس د ماتيدو يقين وى نو د هغه دپاره اودس کول ضرورى دى.

**د حديث الباب نه د جمهورو استدلال او د امام مالك رحمه الله تاويل** حديث الباب د جمهورو د مذهب صريح دليل دې چه که د يقينى طهارت نه پس د حدث شك پيدا شي نو په دې سره اودس نه ماتيږى، برابره خبره ده که په مانځه کښ شك وى، يا ئې بهر شك وى.

او د امام مالك رحمه الله په نزد د مشهور قول مطابق د شك د وجې نه اودس ماتيږى.

امام مالك رحمه الله دا حديث په مستنکح باندې محمول کوى، د استنکاح معنى د غلبې ده، وئيلې شى ﴿ استنكح النوم عينه ، غلبها ﴾(۲) يعنى خوب د هغه په سترګو باندې غالب راغلو. فقهاء مالکيه دا لفظ د کثرت شك په معنى کښ استعمالوى، پس هغوى فرمائى: ﴿استنكحه الشك، اى اعتراه كثيرا ﴾(۳)

يعنى هغه ته شك په کثرت سره لاحق شو، په داسې طريقه چه شك د هغه عادت جوړ شو.

امام مالك رحمه الله فرمائى چه رسول الله ﷺ په حديث الباب کښ چه کوم سړى ته د مانځه د پريخودلو حکم کړې دې دا داسې سړې دې د چا چه د شك کولو عادت وى، ظاهره ده چه د داسې سړى دپاره که د نقض وضوء حکم نو په سخته تنګسيا کښ به پريوځى. (اوګورئ: شرح صحيح البخارى لابن بطال ج ۱ ص ۲۲٤)

---

۱) پورته حواله
۲) تاج العروس ج ۷ ص ۱۹۷. مادة نكح
۳) الموسوعة الفقهية الكويتية ج ٤ ص ۱۲۸. مادة استنكاح

مالکیان فرمائی چه د سیدنا عبدالله بن زید بن عاصم رضی الله عنه په دې حدیث کښې د ﴿ شكا الى رسول الله ﷺ ﴾ الفاظ دا خبره بیانوی چه د دې نه د کثرت شك عادت مراد دې، ځکه چه ﴿شکوى ﴾ عام طور دځه علت اوبیماریٔ دوجې نه وی.هم دغه شان په حدیث الباب کښې د ﴿یخیل﴾لفظ هم دابیان کوی چه ددې حقیقت هیڅ نه دې، ځکه چه دتخیل هیڅ حقیقت نه وی.(۱)

**د امام مالک رحمه الله د تاویل جواب** : خو جمهور علماء کرام فرمائی چه حدیث الباب عام دې په دې کښې د کثرت والا سړې هم داخل دې او هغه سړې هم چاته چه په کثرت سره شك نه پیدا کیږی. (۲)

او هر چه د لفظ ﴿ شكا ﴾تعلق دې پس هغه په علت یا کثرت شك باندې دال نه دې، ځکه چه د مسلم شریف په یو روایت کښې دی، په هغې کښې د سر نه لفظ د ﴿ شكى ﴾یا ﴿ شكى ﴾شته دې نه. (۳) پس د سیدنا ابوهریره رضی الله عنه په مرفوع روایت کښې دی : ﴿ إِذَا وَجَدَ أَحَدُكُمْ فِي بَطْنِهِ شَيْئًا فَأَشْكَلَ عَلَيْهِ أَخَرَجَ مِنْهُ شَيْءٌ أَمْ لَا فَلَا يَخْرُجَنَّ مِنَ الْمَسْجِدِ حَتَّى يَسْمَعَ صَوْتًا أَوْ يَجِدَ رِيحًا ﴾(٤)

**یعنی** که په تاسو کښې یو سړې په خپله خیټه کښې څه محسوس کوی. په دې وجه د هغه شك پیدا شی چه د هغه نه څه وتلې دی یا نه دی وتلی؟ نو د مسجد نه دې تر هغه وخته پورې نه اوځی چه ترڅو ئې آواز نه وی اوریدلې یا ئې بدبوئی نه وی محسوس کړې. والله سبحانه وتعالى اعلم

## ⑤ بَاب: التَّخْفِيفِ فِي الْوُضُوءِ

**د باب سابق سره مناسبت** : د دې باب د مخکښې باب سره مناسبت بالکل واضح دې چه په تیر شوی باب کښې د اودس د احکاماتو نه یو حکم بیان کړې شوې وو او په دې باب کښې هم د اودس د احکاماتو نه د یو حکم بیان دې. (۵)

**د ترجمة الباب مقصد** : حافظ ابن حجر، علامه عینی او علامه قسطلانی رحمهم الله فرمائی چه په دې باب سره د تخفیف فی الوضوء جواز بیانول مقصود دی. (۶)

---

۱) پورته حواله

۲) قال الطحاوی : حدیث عباد بن تمیم رضی الله عنه عن عمه : ان النبی ﷺ سئل عن الرجل یخیل الیه انه یجد الشئ فی الصلاة ؟ قال : لا ینصرف حتی یسمع صوتا او یجد ریحا. ولم یفرق بین اول مرة وبین من یعتاده ذلک ..... مختصر اختلاف العلماء ج ۱ ص ۱۵۴ رقم ۶۳

۳) اوګورئ فتح الباری ج ۱ ص ۲۳۸

٤) صحیح مسلم، کتاب الحیض، باب الدلیل علی ان من تیقن الطهارة، ثم شک فی الحدث، فله ان یصلی بطهارته تلک، رقم ۸۰۵

۵) عمدة القاری ج ۲ ص ۲۵٤

۶) فتح الباری ج ۱ ص ۲۳۹، عمدة القاری ج ۲ ص ۲۵٤، ارشاد الساری ج ۱ ص ۲۳۰

شيخ الحديث رحمه الله فرمائى چه زما په نزد زيات اوجه دا ده چه دلته امام بخارى رحمه الله دا بيانول غواړى چه اسباغ فى الوضوء يا دلك فى الوضوء واجب نه دى.

يا داسې اوئيلې شى چه د اودس دوه مرتبې دى، يوه اقل او بل اكمل، پس د اقل طرف ته په دې باب كښې اشاره كوى او د اكمل طرف ته ئې په وړاندې باب ﴿باب اسباغ الوضوء﴾ سره اشاره كړې ده. (الكنز المتوارى ج ۳ ص ۱۲)

۱۳۸: حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ قَالَ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ عَمْرٍو قَالَ أَخْبَرَنِي كُرَيْبٌ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ[۱] أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَامَ حَتَّى نَفَخَ ثُمَّ صَلَّى وَرُبَّمَا قَالَ اضْطَجَعَ حَتَّى نَفَخَ ثُمَّ قَامَ فَصَلَّى ثُمَّ حَدَّثَنَا بِهِ سُفْيَانُ مَرَّةً بَعْدَ مَرَّةٍ عَنْ عَمْرٍو عَنْ كُرَيْبٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ بِتُّ عِنْدَ خَالَتِي مَيْمُونَةَ لَيْلَةً فَقَامَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنَ اللَّيْلِ فَلَمَّا كَانَ فِي بَعْضِ اللَّيْلِ قَامَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَتَوَضَّأَ مِنْ شَنٍّ مُعَلَّقٍ وُضُوءًا خَفِيفًا يُخَفِّفُهُ عَمْرٌو وَيُقَلِّلُهُ وَقَامَ يُصَلِّي فَتَوَضَّأْتُ نَحْوًا مِمَّا تَوَضَّأَ ثُمَّ جِئْتُ فَقُمْتُ عَنْ يَسَارِهِ وَرُبَّمَا قَالَ سُفْيَانُ عَنْ شِمَالِهِ فَحَوَّلَنِي فَجَعَلَنِي عَنْ يَمِينِهِ ثُمَّ صَلَّى مَا شَاءَ اللَّهُ ثُمَّ اضْطَجَعَ فَنَامَ حَتَّى نَفَخَ ثُمَّ أَتَاهُ الْمُنَادِي فَآذَنَهُ بِالصَّلَاةِ فَقَامَ مَعَهُ إِلَى الصَّلَاةِ فَصَلَّى وَلَمْ يَتَوَضَّأْ قُلْنَا لِعَمْرٍو إِنَّ نَاسًا يَقُولُونَ إِنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَنَامُ عَيْنُهُ وَلَا يَنَامُ قَلْبُهُ قَالَ عَمْرٌو سَمِعْتُ عُبَيْدَ بْنَ عُمَيْرٍ يَقُولُ رُؤْيَا الْأَنْبِيَاءِ وَحْيٌ ثُمَّ قَرَأَ: ﴿إِنِّي أَرَى فِي الْمَنَامِ أَنِّي أَذْبَحُكَ﴾ [ر: ۱۱۷]

## رجال الحديث

① **على بن عبدالله**: دا امير المومنين فى الحديث على بن عبد الله بن جعفر المعروف بابن المدينى رحمه الله دې د هغوى حالات په كتاب العلم باب الفهم فى العلم د لاندې تير شوې دى. (۲)

② **سفيان**: دا امام سفيان بن عيينه رحمه الله دې د هغوى حالات د بدء الوحى په اولنى حديث او كتاب العلم باب قول المحدث: حدثنا او اخبرنا او انبانا د لاندې تير شوې دى. (۳)

③ **عمرو**: دا مشهور فقيه امام عمرو بن دينار مكى جمحى رحمه الله دې، د هغوى حالات په كتاب العلم باب كتابة العلم د لاندې تير شوې دى. (٤)

④ **كريب**: دا ابورشدين كريب بن ابى قاسم قرشى هاشمى مولى عبد الله بن عباس رضى الله عنهما دې. (۵)

---

۱) قوله: عن ابن عباس رضى الله عنهما: هذا حديث مبيت ابن عباس فى بيت خالته ميمونة رضى الله عنها، وقد سبق تخريجه ببسط فى (٤١٣/١)، كتاب العلم، باب السمر فى العلم.

۲) كشف البارى ج ۳ ص ۲۹۷ تا ۳۰۲

۳) كشف البارى ج ۱ ص ۲۳۸، او ج ۳ ص ۱۰۲ تا ۱۰۶

٤) كشف البارى ج ٤ ص ۳۰۹ تا ۳۱۳

۵) تهذيب الكمال ج ۲٤ ص ۱۷۲

هغوی د سیدنا عثمان رضي الله عنه زمانه موندلی ده (۱) د خپل مولی سیدنا عبدالله بن عباس رضي الله عنهما، د هغوی د مور بیبی سیده ام الفضل رضي الله عنها، ام المومنین میمونه، سیده عائشه، سیده ام سلمه، سیده ام هانی رضي الله عنهن نه روایت حدیث کوی.

د هغوی نه په روایت کونکو کښې د هغوی دواړه ځامن رشدین او محمد، سلیمان بن یسار، ابو سلمه بن عبدالرحمن بن عوف (دا دواړه ئې همزولی دی) شریك بن ابی نمر، محمد بن عقبه، موسی بن عقبه، ابراهیم بن عقبه، عمرو بن دینار او منصور بن المعتمر رحمهم الله وغیره حضرات دی. (۲)

امام ابن سعد رحمه الله فرمائی ﴿كان ثقة حسن الحديث﴾ (۳)

امام یحیی بن معین او امام نسائی رحمهما الله فرمائی ﴿ثقة﴾ (٤)

امام نووی رحمه الله فرمائی ﴿اتفقوا على توثيقه﴾ (۵)

حافظ ذهبی رحمه الله د هغوی د تذکرې په شروع کښې لیکی: ﴿الامام الحجة﴾ (۶) هم دغه شان فرمائی: ﴿وثقوه﴾ (۷)

امام ابن حبان رحمه الله په کتاب الثقات کښې ذکر کړې دې. (۸)

موسی بن عقبه رحمه الله فرمائی: ﴿وَضَعَ عِنْدَنَا كُرَيْبٌ حِمْلَ بَعِيرٍ أَوْ عِدْلَ بَعِيرٍ مِنْ كُتُبِ ابْنِ عَبَّاسٍ. قَالَ: فَكَانَ عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَبَّاسٍ إِذَا أَرَادَ الْكِتَابَ كَتَبَ إِلَيْهِ: ابْعَثْ إِلَيَّ بِصَحِيفَةِ كَذَا وَكَذَا. قَالَ: فَيَنْسَخُهَا، فَيَبْعَثُ إِلَيْهِ بِإِحْدَاهُمَا﴾ (۹)

**یعنی** امام کریب رحمه الله د سیدنا ابن عباس رضي الله عنهما د علوم او احادیثو دومره لویه ذخیره مونږ ته پریخودله کومه چه په د یو اوښ د بار برابر وی، پس علی بن عبدالله بن عباس رحمه الله ته چه به کله د څه کتاب ضرورت وو نو هغوی ته به ئې لیکلو چه فلانې فلانې کتاب پکار دې، هغه به مطلوب کتاب لره نقل کولو سره په دوه نسخو کښې یوه نسخه هغوی ته راولیږله.

د سلیمان بن عبدالملك رحمه الله د خلافت په اخره کښې په ۹۸ھ کښې کریب بن ابی مسلم رحمه الله وفات شوې دې. رحمه الله رحمة واسعة [حواله بالا]

---

۱) پورته حواله
۲) د شیوخ او تلامذه د تفصیل دپاره اوګورئ: تهذیب الکمال ج ۲٤ ص ۱۷۲، ۱۷۳
۳) تهذیب الکمال ج ۲٤ ص ۱۷۳
٤) تاریخ الدارمی ص ۱٦۹، رقم ٦٠٤، وتهذیب الکمال ج ۲٤ ص ۱۷٤
۵) تهذیب الاسماء واللغات ج ۲ ص ٦٦
٦) سیر اعلام النبلاء ج ٤ ص ٤۷۹
۷) الکاشف ج ۲ ص ۱٤۷، رقم ٤٦۵۳
۸) الثقات لابن حبان ج ۵ ص ۳۳۹
۹) الطبقات لابن سعد ج ۵ ص ۲۹۳

⑤ **ابن عباس رضي الله عنهما**: د سیدنا عبدالله بن عباس رضي الله عنهما حالات په بدء الوحی کښې د ځلورم حدیث لاندې، او هم دغه شان په کتاب الایمان، باب کفران العشیر و کفر دون کفر د لاندې تیر شوي دي.(۱)

**قوله: أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَامَ حَتَّى نَفَخَ ثُمَّ صَلَّى وَرُبَّمَا قَالَ اضْطَجَعَ حَتَّى نَفَخَ ثُمَّ قَامَ فَصَلَّى**: یعنې رسول الله ﷺ اوده شو، تردې چه په خوب کښې اوخرېدلو. بیا ئې مونځ اوکړو. کله سفیان داسې اووې چه رسول الله ﷺ په ډډه اوده شو. تردې چه په خوب کښې اوخرېدلو، بیا پاسیدو او مونځ ئې اوکړو.

دلته سفیان بن عیینه رحمه الله دوه طریقو سره روایتونه کړې دي، یو ﴿نام﴾ ....او دویم ﴿اضطجع﴾ د دې مطلب دا نه دې چه ﴿نام﴾ او ﴿اضطجع﴾ دواړه مترادف دي، بلکه مطلب دا دې چه سفیان بن عیینه رحمه الله دا روایت مطولا او مختصرا دواړو طریقو سره روایت کولو، او دا روایت چه به ئې کله مطولا روایت کولو نو داسې به ئې وئیل ﴿اضطجع فنام﴾ یا به ئې د دې په شان لفظ استعمالولو او که مختصرا به ئې ذکر کولو نو کله به ئې ﴿نام﴾ وئیلو او کله ﴿اضطجع﴾ چه کله به ئې ﴿نام﴾ وئیلو نو د دې نه مراد به ئې دا وو چه ﴿نام مضطجعا﴾ او چه کله به ئې ﴿اضطجع﴾ وئیلو نو د دې معنی به دا وه چه ﴿اضطجع نائما﴾(۲)

**قوله: ثُمَّ حَدَّثَنَا بِهِ سُفْيَانُ مَرَّةً بَعْدَ مَرَّةٍ عَنْ عَمْرٍو عَنْ كُرَيْبٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ**:
بیا سفیان رحمه الله څو کرته حدیث بیان کړو، هغه د عمرو نه، عمرو د کریب نه، او کریب د ابن عباس رضي الله عنهما نه روایت کوي.

علي بن المديني رحمه الله فرمائي چه سفیان رحمه الله به دا روایت اول مختصرا روایت کولو بیا ئې مطولا روایت کول شروع کړل (۳)

**قوله: قَالَ بِتُّ عِنْدَ خَالَتِي مَيْمُونَةَ لَيْلَةً**: سیدنا ابن عباس رضي الله عنهما فرمائي چه ما یوه شپه د خپلې ترور سیده میمونه رضي الله عنها کره اوکړه.

دا د سیدنا ابن عباس رضي الله عنهما حدیث المبیت دې، شاته مونږ ذکر کړې دی (٤) چه دا د هغوی د ماشوم والي د زمانې واقعه ده، هغه وخت د هغوی عمر تقریبا لس کاله وو، کما ورد مصرحا عند احمد فی مسنده. (۵)

---

۱) اوګورئ: کشف الباري ج ۱ ص ٤٤٥، و ج ۲ ص ۲۰۵
۲) فتح الباري ج ۱ ص ۲۳۹، وخالفه العینی، انظر العمدة ج ۲ ص ۲۵۶
۳) فتح الباري ج ۱ ص ۲۳۹، وعمدة القاري ج ۲ ص ۲۵۶
٤) اوګورئ کشف الباري ج ٤ ص ٤۲۰، کتاب العلم، باب السمر فی العلم.
۵) اوګورئ المسند ج ۱ ص ۳٦٤، رقم ۳٤۳۷

ام المومنين سيده ميمونه بنت الحارث رضي الله عنها د سيدنا عبد الله بن عباس رضي الله عنهما ترور ده، د ابن عباس رضي الله عنهما مور بيبي سيده ام الفضل لبابه بنت الحارث او ميمونه بنت الحارث رضي الله عنهما دواړه خويندې دی. (۱)

**قوله**: فَقَامَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنَ اللَّيْلِ: پس رسول الله ﷺ دشپې پاسيدو.

په اکثر نسخو کښې ﴿ قام﴾ په قاف سره دې، او د ابن السكن په روايت کښې ﴿ فنام﴾ نون سره دې. (۲) قاضي عياض رحمه الله د ابن السكن والا روايت ته صواب او صحيح وئيلې دې، د دې وجه دا ده چه وړاندې جمله ده : ﴿ فلما كان في بعض الليل قام النبي ﷺ﴾ لهذا كله چه وړاندې د ﴿ قام﴾ ذکر راروان دې نو په شروع کښې به ﴿ نام﴾ په نون سره وی. (۳)

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه د ذکر شوې جملې په بنياد باندې د ﴿ فقام﴾ والا روايت لره جزما خطاء منل مناسب نه دی. ځکه چه د دې توجيه کيدې شی هغه دا چه په شروع کښې ﴿فقام النبي ﷺ من الليل ﴾ يوه مجمله جمله ده، د هغې نه روستو د هغې تفصيل بيان کړې شوې دې، ﴿ فلما كان في بعض الليل قام النبي ﷺ﴾ وئيلو سره د هغې تفصيل بيان کړې شوې دې. دواړه جملې اګر چه په ظاهره کښې يو شان او مکرر ښکاری خو د اجمال او تفصيل په اعتبار سره په دواړو کښې مغايرت دې. (٤)

علامه عيني رحمه الله په ډير شدومد سره د حافظ رحمه الله د کلام ترديد کړې دې، د هغوی وينا ده چه قاضي عياض رحمه الله چه د کوم روايت تصويب کړې دې هغه صحيح دې، دويم روايت يقينا غلط دې. دلته هيڅ قسم اجمال او تفصيل نشته. (۵) والله اعلم

**قوله**: فَلَمَّا كَانَ فِي بَعْضِ اللَّيْلِ قَامَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: بيا چه د شپې څه حصه تيره شوه نو رسول الله ﷺ پاسيدو

علامه کرمانی رحمه الله فرمائی چه د ﴿ کان ﴾ په ضمير کښې يو احتمال دا دې چه دا د رسول الله ﷺ طرف ته راجع وی. (۶) حافظ ابن حجر رحمه الله هم د هغوی اتباع کړې ده. (۷)

خو علامه عيني رحمه الله فرمائی چه غوره دا ده چه دلته تقدير داسې وی ﴿ فلما كان بعض الليل قام النبي ﷺ﴾ ګويا ﴿ كان﴾ تامه دې او ﴿ بعض الليل﴾ د هغې فاعل دې او ﴿ قام النبي ﷺ﴾ د

---

۱) اوګورئ: الاصابة ج ۸ ص ۲۶۶، ترجمه ام الفضل امراة العباس
۲) فتح الباري ج ۱ ص ۲۳۹، عمدة القاري ج ۲ ص ۲۵۵
۳) پورته حواله جات
٤) فتح الباري ج ۱ ص ۲۳۹
۵) عمدة القاري ج ۲ ص ۲۵۵
۶) شرح الکرمانی ج ۲ ص ۱۷۶
۷) فتح الباري ج ۱ ص ۲۳۹

﴿لما﴾ جواب دې. (۱)
په دې صورت كښې به ﴿لی﴾ زائده منل وی، علامه عینی رحمه الله فرمائی چه په دې كښې هیڅ باك نشته، پس بعض حضراتو د الله پاك ارشاد ﴿وقال اركبوا فيها﴾ (۲) لره د ﴿اركبوها﴾ په معنی باندې اخستلې دې. (۳)
هم دغه شان هغوی فرمائی چه زمونږ د توجیه تائید د كشمهینی د روایت نه هم كیږی، چه په هغې كښې دی: ﴿فلما كان من بعض الليل﴾ او په دې كښې هیڅ شك نشته چه په دې روایت كښې ﴿من﴾ زائده دې او یو د بل په ځائې استعمالولې شی. (٤) والله سبحانه وتعالى اعلم
**قوله: فَتَوَضَّأَ مِنْ شَنٍّ مُعَلَّقٍ وُضُوءًا خَفِيفًا:** پس رسول الله ﷺ د یو زوړ زوړند شوی مشك نه مختصر اودس اوكړو.
**شَنّ: بفتح الشين المعجمة وتشديد النون... زوړ مشك ته وئیلې شی. (۵)**
دا هم د سقاء او وعاء په معنی كښې اخستلو سره مذكر استعمالولې شی او كله د ﴿قربة﴾ په معنی كښې منلو سره مؤنث استعمالولې شی. (۶) او د دې جمع شنان راځی. (۷)
**قوله: يُخَفِّفُهُ عَمْرٌو وَيُقَلِّلُهُ:** امام عمرو بن دینار رحمه الله به دا اودس د خفت او قلت سره موسوم كولو یعنی فرمائیل به ئې چه دا اودس خفیف او قلیل وو. (۸)
د تخفیف مقابل تثقیل دې، كوم چه د باب ﴿كیف﴾ نه دې او د تقلیل مقابل تكثیر دې كوم چه د باب ﴿كم﴾ نه دې. (۹)
ابن المنیر رحمه الله فرمائی چه د تخفیف مطلب دا دې چه زیات دلك ئې نه كولو او د تقلیل مطلب دا دې چه د یو یو كرت نه زیات ئې او نه وینځلو. د دې نه پس هغوی فرمائی چه د دې نه د دلك وجوب ثابتیږی، ځكه چه كه دلك لره ختمولو سره اختصار كیدلې شوې نو

---

۱) عمدة القاری ج ۲ ص ۲۵۵
۲) هود : ٤١
۳) عمدة القاری ج ۲ ص ۲۵۵
٤) پورته حواله
۵) مختار الصحاح ص ۳٤۸
٦) پس په حدیث الباب كښې دی : فتوضاء من شن معلق ... وړاندې په كتاب الوضوء باب قراءة القران بعد الحدث وغیره رقم ۱۸۳ د لاندې دی : ثم قام الی شن معلقة ...
۷) اخرج ابو داؤد فی سننه فی كتاب الاشربة باب فی صفة النبیذ، رقم ۳۷۱۰، عن عبدالله بن الدیلمی عن ابیه وفیه : وانبذوه فی الشنان ... وانظر النهایة لابن الاثیر ج ۱ ص ۸۹٤، مادة : شنن
۸) فتح الباری ج ۱ ص ۲۳۹
۹) عمدة القاری ج ۲ ص ۲۵٦

رسول الله ﷺ به هغه هم كولو، خو رسول الله ﷺ داسې اونكړل. (۱)
خو حقيقت دا دې چه په دې كښې د دلك د وجوب هيڅ دليل نشته، ځكه چه د تخفيف معنى داسې هم حاصليدې شى چه د اودس په اندامونو باندې صرف اسالة الماء يعنى اوبه بهيولې شوې وى، دلك بالكل نه وى كړې شوې. (۲) او د تقليل مطلب دا دې چه اوبه كمې اچولې شوې وى، زياتې اوبه ئې نه دى استعمال كړې.
اوس حاصل دا شو چه د تقليل تعلق د اوبو سره دې او د تخفيف تعلق د كثرت دلك سره نه دې، بلكه د نفس اسالة الماء سره دې. والله اعلم

قوله: وَقَامَ يُصَلِّي : رسول الله ﷺ پاسيدو او مونځ ئې شروع كړو.
قوله: فَتَوَضَّأْتُ نَحْوًا مِمَّا تَوَضَّأَ: ما د رسول الله ﷺ د اودس په شان اودس اوكړو.
علامه كرمانى رحمه الله فرمائى چه دلته سيدنا ابن عباس رضى الله عنهما ﴿ نحوا مما توضاء ﴾ اوفرمائيل او ﴿مثل ما توضاء ﴾ ئې او نه فرمائيل، وجه دا ده چه لفظ د ﴿ مثل ﴾ د مماثلت فى الاوصاف د بيانولو دپاره راځى، يعنى چه په ټولو اوصاف او كيفيات كښې ئې مشابهت وى، چونكه د رسول الله ﷺ د اودس كامل مشابهت د چا په وس كښې نه دې، په دې وجه ئې ﴿ نحوا مما توضاء ﴾ اوفرمائيل. (۳)
په دې باندې دا اعتراض راځى چه هم دا روايت وړاندې راروان دې په هغې كښې دى ﴿ فقمت فصنعت مثل ما صنع ﴾ الفاظ راغلي دى. (٤)
صحيح خبره دا ده چه لفظ ﴿ مثل ﴾ د ﴿ شبيه ﴾ او ﴿ ذات ﴾ په معنى كښې هم راځى، او د مطلقا مشابهت د بيانولو دپاره هم استعماليږى. (۵)

قوله: ثُمَّ جِئْتُ فَقُمْتُ عَنْ يَسَارِهِ: بيا زه د رسول الله ﷺ كس طرف ته اودريدم.
سيدنا ابن عباس رضى الله عنهما ته دا علم نه وو چه د امام ښى طرف ته اودريدل پكار دى، ځكه چه ماشوم وو. دا هم ممكنه ده چه ابن عباس رضى الله عنهما دا خيال كړې وى چه د رسول الله ﷺ نه ښى طرف ته اودريدل به د ادب خلاف وى. (۶) والله اعلم

---

۱) فتح البارى ج ۱ ص ۲۳۹، وعمدة القارى ج ۲ ص ۲۵۶
۲) پورته حوالاجات اوګورئ
۳) اوګورئ: شرح الكرمانى ج ۲ ص ۱۷۶
٤) صحيح البخارى ج ۱ ص ۳۰، كتاب الوضوء، باب قراء القران بعد الحدث وغيره
۵) اوګورئ: عمدة القارى ج ۲ ص ۲۵۶
۶) فتح الملهم ج ٤ ص ۱۸۰، كتاب صلاة المسافرين، باب صلاة النبى ﷺ ودعائه بالليل

**قوله:** وَرُبَّمَا قَالَ سُفْيَانُ عَنْ شِمَالِهِ: كله به سفيان رحمه الله «دعن يسارة په خائې» عن شماله فرمائيلو.

دا جمله د امام ابن المديني رحمه الله د طرف نه مدرج ده. (۱)

شِمال بكسر الشين المعجمة ... گس لاس ته او د شمال جهت ته وئيلې شي، او شَمال بفتح الشين المعجمة ... شمالي هوا ته وئيلې شي. (۲)

**قوله:** فَحَوَّلَنِي فَجَعَلَنِي عَنْ يَمِينِهِ: پس رسول الله ﷺ زه خپل ښی طرف ته راواړولم.

د سلمه بن كهيل رحمه الله په روايت كښې دي: ﴿ فاخذ باذني، فادارني عن يمينه ﴾ (۳)

حاصل دا دې چه رسول الله ﷺ زه د ښي طرف نه گس طرف ته راواړولم، ځکه چه د مقتدی د يو كيدو په صورت كښې هغه د امام ښي طرف ته اودريدل پكار دی، وړاندې به انشاء الله په دې سلسله كښې اختلاف راشي.

**قوله:** ثُمَّ صَلَّى مَا شَاءَ اللَّهُ: بيا چه الله پاك ته څومره مونځ منظور وو هغه ئې اوكړو.

**قوله:** اضْطَجَعَ فَنَامَ حَتَّى نَفَخَ: بيا رسول الله ﷺ سملاستو او اوده شو تردې چه خرړارې ئې اوكړو.

نفخ : نه مراد په خوب كښې خرړيدل دی، د خوب په حالت كښې انسان په زور زور سره ساه اخلي. د هغه د خولې نه.د ساه اخستلو او خرړيدو آواز راځي دې ته ﴿ غطيط ﴾ او ﴿ خطيط ﴾ وئيلې شي. (٤)

حافظ ابن حجر رحمه الله دې ته صوت الانف وئيلې دې، د لغت په كتابونو كښې د دې هيڅ وجود نه ملاويږي. (۵) والله اعلم

**قوله:** ثُمَّ أَتَاهُ الْمُنَادِي فَآذَنَهُ بِالصَّلَاةِ: بيا مؤذن راغلو او د مانځه دپاره ئې رسول الله ﷺ ته خبر وركړو.

**قوله:** فَقَامَ مَعَهُ إِلَى الصَّلَاةِ فَصَلَّى وَلَمْ يَتَوَضَّأْ: رسول الله ﷺ هغه سره د مانځه دپاره پاسيدو. رسول الله ﷺ مونځ اوكړو او اودس ئې اونكړو.

د دې نه معلومه شوه چه نوم بذات خود ناقض وضوء نه دې، گينې رسول الله ﷺ به چه كله د خوب نه پاسيدو نو اودس به ئې كولو. بلكه نوم د مظنه حدث كيدو د وجې نه ناقض

---

۱) عمدة القاری ج ۲ ص ۲۵۶
۲) المصباح المنير ج ۱ ص ۳۲۳، مادة : ش م ل
۳) صحيح البخاری ج ۲ ص ۹۳۵، كتاب الدعوات، باب الدعاء اذا تنبه بالليل، رقم ۶۳۱۶
٤) اوګورئ : النهاية لابن الاثير ج ۱ ص ۵۰۶، مادة خطط، و ج ۲ ص ۳۱۱ مادة غطط
۵) قاله علی القاری رحمه الله فی مرقاة المفاتيح ج ۳ ص ۲٤۰، و ۲٤۱، كتاب الصلاة، باب صلاة الليل

وضوء دي. (۱)

**قوله: قُلْنَا لِعَمْرٍو إِنَّ نَاسًا يَقُولُونَ إِنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَنَامُ عَيْنُهُ وَلَا يَنَامُ قَلْبُهُ:** مونږ عمرو بن دینار رحمه الله ته اووې چه خلق داسې وائي چه د رسول الله ﷺ سترګې به اوده وې او زړه مبارك به ئې بيدار وو.

دا د سفيان قول دې او دا حديث صحيح دې. (۲) پس سيده عائشه رضي الله عنها چه كله تپوس اوكړو **﴿ يا رسول الله اتنام قبل ان توتر؟ ﴾** ايا تاسو د وترو نه مخكښې اوده كيږئ؟ نو رسول الله ﷺ اوفرمائيل: **﴿ ياعائشة! ان عيني تنامان ولا ينام قلبي ﴾** (۳) يعنې اې عائشه! زما دواړه سترګې خو اوده كيږي خو زما زړه نه اوده كيږي.

علامه خطابي رحمه الله فرمائي چه: **﴿ انما منع النوم قلبه ليعي الوحى اذا اوحى اليه في منامه ﴾** (٤)

يعنې: رسول الله ﷺ ته د خوب په حالت كښې دا خبره وركړې شوې ده چه د هغه زړه بيدار وي، چه كه د خوب په حالت كښې د الله پاك د طرف نه وحى راشي نو هغې لره محفوظه كړي.

**ايا د خوب په حالت كښې د زړه بيدارى د رسول الله ﷺ خصوصيت دې او كه د ټولو انبياء كرام عليهم السلام دا حالت دې؟** دلته په حديث شريف كښې **﴿ ان عيني تنامان، ولا ينام قلبي ﴾** (۵) نه دې دا خيال اونكړې شي چه دا صرف د رسول الله ﷺ خصوصيت دې، بلكه رسول الله ﷺ په بل روايت كښې دا واضح كړې دى چه دا خصوصيت ټولو انبياء كرام عليهم السلام ته حاصل دې.

په حديث اسراء كښې د سيدنا انس رضي الله عنه نه روايت دې چه: **﴿ وكذلك الانبياء، تنام اعينهم ولا تنام قلوبهم ﴾** (۶)

رسول الله ﷺ فرمائي: **﴿ انا معشر الانبياء تنام اعيننا ولا تنام قلوبنا ﴾** (۷)

يعنې زمونږ د انبياء عليهم السلام خصوصيت دا دې چه زمونږ سترګې اوده كيږي خو زمونږ زړونه نه اوده كيږي بلكه هغه بيدار وي.

---

۱) اوګورئ: فتح البارى ج ۱ ص ۲۳۹، ورد المحتار ج ۱ ص ۱۰٤، نواقض الوضوء، والمغنى ج ۱ ص ۱۱۳، ومعالم السنن ج ۱ ص ۱٤۳، كتاب الطهارة، باب الوضوء من النوم.

۲) فتح البارى ج ۱ ص ۲۳۹، عمدة القارى ج ۲ ص ۲۵۶

۳) صحيح البخارى ج ۱ ص ۱۵٤، كتاب التهجد (الصلاة) باب قيام النبى ﷺ بالليل فى رمضان وغيره، رقم ۱۱٤۷ و ج ۱ ص ۲۶۹، كتاب صلاة التراويح (الصوم) باب فضل من قام رمضان، رقم ۲۰۱۳، و ج ۱ ص ۵۰٤، كتاب المناقب، باب كان النبى تنام عينه ولا ينام قلبه رقم ۳۵۶۹.

٤) اعلام الحديث ج ۱ ص ۲۳۳

۵) سبق تخريجه فى التعليقة السابقة.

۶) صحيح البخارى ج ۱ ص ۵۰٤، كتاب المناقب باب كان النبى ﷺ تنام عينه ولا ينام قلبه رقم ۳۵۷۰، و ج ۲ ص ۱۱۲۰، كتاب التوحيد، باب قوله تعالى ﴿ وكلم الله موسى تكليما ﴾ رقم ۷۵۱۷

۷) اخرجه ابن سعد فى طبقاته ج ۱ ص ۱۷۱، ذكر علامات النبوة بعد نزول الوحى على رسول الله ﷺ

پس امام ابن عبد البر رحمه الله او امام نووى رحمه الله تصريح كړى ده چه دا د ټولو انبياء عليهم السلام مشترك خصوصيت دې. (١)

**په ليلة التعريس كښې د مونځ د قضاء كيدو وجه :** اوس دلته دا سوال دې چه كه د انبياء عليهم السلام صرف سترګې اودۀ كيږى او زړه ئې بيدار وى نو د رسول الله ﷺ په ليلة التعريس كښې د سحر مونځ ولې قضاء شو چه هغوى ته د سحر د راختلو پته او نه لګيده، تردې چه نمر راوختلو؟

د دې ډير جوابات وركړې شوې دى؛

① مشهور جواب دا دې چه د رؤيت تعلق د سترګو سره دې، د زړه سره نه دې په دې وجه رسول الله ﷺ ته معلومات اونشو (٢)

② دويم جواب دا دې چه د رسول الله ﷺ به دوه حالتونه وو يو حال خو دا وو چه د هغوى زړه به نه اودۀ كيدو، هم دا ئې اغلب حال وو، او دويم حال ئې دا وو چه كله به ئې زړه هم اودۀ كيدلو او دا به كله كله وو، په ليلة التعريس كښې دا دويم صورت راپيښ شو. (٣)

③ دريم جواب دا دې چه ﴿ولاينام قلبى﴾ مطلب دا دې چه د انتقاض وضوء حال پټ نه پاتې كيږى، هسې خو مطلق خوب په زړه باندې هم راځى. (٤)

④ هم دې ته نزدې څلورم جواب دا وركړې شوې دې چه د رسول الله ﷺ خوب به د دومره استغراق والا نه وو چه حدث ورته لاحق شوې وى. (٥)

⑤ بعض علماء كرام فرمائى چه د قلب د بيداريدو مطلب دا دې چه حضرات انبياء عليهم السلام چه كوم خوبونه وينى هغه ﴿اضغاث احلام﴾ نه وى، څنګه چه انسان د بيدارئ په حالت كښې د واقعى څيزونو مشاهده كوى، هم دغه شان انبياء عليهم السلام ته چه كوم څيز په خوبونو كښې په نظر راځى هغه واقعات وى.

---

١) قال ابن عبدالبر فى الاستذكار ج ٢ ص ٩٧، ٩٨ : فى كتاب صلاة الليل، باب صلاة النبى ﷺ فى الوتر : أما قوله صلى الله عليه و سلم جوابا لها إن عينى تنامان ولا ينام قلبى فتلك من علياء مراتب الأنبياء صلوات الله عليهم. وقال فى التمهيد ج ٥ ص ٢٠٨ : وهذا على العموم لأنه جاء عنه صلى الله عليه وسلم: "إنا معشر الأنبياء تنام أعيننا ولا تنام قلوبنا". ولا يجوز أن يكون مخصوصا بذلك لأنها خصلة لم يعدها فى الست التى أوتيها ولم يؤتها أحد قبله من الأنبياء.

وقال النووى رحمه الله فى شرح صحيح مسلم ج ۶ ص ٢۶٣، فى كتاب صلاة المسافرين، باب صلاة الليل وعدد ركعات النبى ﷺ فى الليل : قوله صلى الله عليه وسلم : ( إن عينى تنامان ولا ينام قلبى ) هذا من خصائص الأنبياء صلوات الله وسلامه عليهم.

٢) اوګورئ: شرح النووى على صحيح مسلم ج ۶ ص ٢۶٣، كتاب صلاة المسافرين. باب صلاة الليل وعدد ركعات النبى ﷺ فى الليل، وسبل الهدى والرشاد ج ١١ ص ٢٩٥

٣) پورته حواله جات

٤) سبل الهدى والرشاد ج ١١ ص ٢٩٥، ٢٩۶

٥) پورته حواله

⑨ بعض علماء کرامو دا جواب کړې دې چه اصل کښې په رسول الله ﷺ باندې قصداً د الله پاك د طرف نه دا خوب اچولې شوې وو، چه مونږ لره د قضاء راګرځولو طريقه معلومه شي.

⑩ بعض حضراتو وئيلې دي چه اصل کښې چه د رسول الله ﷺ نه منقول دي چه ﴿تنام عيني ولا ينام قلبي﴾ دا عام او مطلق نه دې، بلکه رسول الله ﷺ چه به کله د يو څيز خيال په زړه کښې ساتلو سره اوده کيدو نو زړه به ئې بيدار وو او که په اطمينان سره به فارغ القلب کيدو سره اوده شو نو بيا به پوره اوده کيدو.

**قوله:** قَالَ عَمْرٌو سَمِعْتُ عُبَيْدَ بْنَ عُمَيْرٍ يَقُولُ : عمرو رحمه الله فرمائي چه ما د عبيد بن عمير رحمه الله نه داسې واوريدل!

عمرو بن دينار رحمه الله په تائيد کښې د عبيد بن عمير رحمه الله قول پيش کوي.

**عبيد بن عمير** : دا عبيد بن عمير بن قتاده بن سعد ليثي جندعي مکي رحمه الله دې، ابو عاصم د هغوی کنيت دې، د مکې مکرمې واعظ به بللې شو.(۱)

امام مسلم رحمه الله فرمائي چه دې د رسول الله ﷺ په زمانه کښې پيدا شوې وو. (۲)

بعض نورحضرات فرمائي چه هغوی ته درسول الله ﷺ درؤيت شرف هم حاصل شوې دې.(۳)

هغه د سيدنا ابی بن کعب، عبدالله بن حبشي، عبدالله بن عباس، عبدالله بن عمر، عبدالله بن عمرو بن العاص، علي بن ابی طالب، عمر بن الخطاب، ابو ذر غفاری، ابو سعيد خدری، ابو موسی اشعری، ابوهريره، عائشه، ام سلمه او خپل والد محترم عمير بن قتاده رضي الله عنهم نه روايت کوي.

د هغه نه په روايت کونکو کښې عبدالله بن عبيد، عطاء بن ابی رباح، ابن ابی مليکة، عمرو بن دينار، عبدالعزيز بن رفيع او ابو الزبير محمد بن مسلم رحمهم الله وغيره ډير حضرات دی. (٤)

سيدنا عبدالله بن عمر رضي الله عنهما فرمائي : ﴿لله در ابن قتادة، ماذا يأتي به﴾(۵)

امام يحيی بن معين او امام ابو زرعه رحمهما الله فرمائي : ﴿ثقة﴾ (۶)

ابن سعد رحمه الله فرمائي ﴿وکان ثقة کثير الحديث﴾(۷)

---

۱) تهذيب الكمال ج ۱۹ ص ۲۲۳

۲) پورته حواله

۳) د امام بخاری رحمه الله طرف ته دا قول منسوب دې، اوګورئ : الاستيعاب لابن عبدالبر بهامش الاصابة ج ۲ ص ٤٤١. هم دغه شان اوګورئ اسد الغابة ج ۳ ص ٥٤٠. رقم (۳۵۱۲)

او امام مغلطاني رحمه الله فرمائي ينظر فيما نقله عن البخاري. فاني لم اره. وما ذكرنا عن البخاری يرده يقينا. اكمال تهذيب الكمال ج ۹ ص ۹۷. رقم ۳۵۳۱

٤) د شيوخ او تلامذه د تفصيل دپاره اوګورئ : تهذيب الكمال ج ۱۹ ص ۲۲٤

۵) اكمال تهذيب الكمال ج ۹ ص ۹۷. رقم ۳۵۳۱

۶) الجرح والتعديل ج ۵ ص ٤۷۹، رقم ۹۲۳۰، ۱۸۹۶

۷) الطبقات الكبری لابن سعد ج ۵ ص ٤۶۳

امام عجلى رحمه الله فرمائى: ﴿ مكى تابعى ثقة ... وهو من كبار التابعين ﴾(۱)
امام ابن حبان رحمه الله هغه په كتاب الثقات كښې ذكر كړې دې او ليكلې ئې دى ﴿ من افاضل اهل مكة ﴾(۲) حافظ ذهبى رحمه الله فرمائى: ﴿ وكان من ثقات التابعين وائمتهم بمكة ﴾(۳)
هم دغه شان هغه فرمائى ﴿ وكان ثقة اماما ﴾(٤)
حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى: ﴿ مجمع على ثقته ﴾(۵)
عبيد بن عمير رحمه الله به په مكه مكرمه كښې وعظ او تذكير كولو د هغوى مجلس كښې په دومره اثر وو چه د عبدالله بن عمر رضى الله عنهما په شان بزرگ صحابى به د هغوى په مجلس كښې حاضريدلو. (۶)
امام عجلى رحمه الله ليكلې دى چه د هغوى په گاونډ كښې يوه زنانه وه، چه هغې غير معمولى حسن لرلو، يو كرت هغې په شيشه كښې ځان ته كتلو سره خپل خاوند ته اووې چه ايا داسې هم څوك كيدې شى چه دا مخ وينى او هغه پرې مئين نه شى؟ خاوند ورته اووې! او عبيد بن عمير داسې دې چه په هغه باندې ستا دا حسن نه شى اثر انداز كيدې، هغه زنانه په هغوى باندې د ازميښت كولو دپاره د خپل خاوند نه اجازت طلب كړو او عبيد بن عمير رحمه الله ته تلو سره ئې خپل ځان د هغه د خدمت دپاره پيش كړو او دا اظهار ئې ورته اوكړو چه هغه د هغوى سره عشق كوى او ډيره ترې متاثره ده. امام عبيد بن عمير رحمه الله د دې په نتيجه كښې هغې ته ډير په اثرناك انداز كښې نصيحت اوكړو، د دې واقعې نه روستو هغه زنانه كلى طور عبادت ته متوجه شوه. د هغې خاوند به وئيل چه ما سره عبيد بن عمير دا څه اوكړل؟ دا زما ښځه به هره شپه زما دپاره ناوې كيدله او اوس ترې نه عبيد راهبه جوړه كړه. (۷)
د عبيد بن عمير رحمه الله احاديث په اصول سته كښې موجود دى. (۸)
هغه كله وفات شوې دې د يو قول مطابق د هغوى وفات د عبدالله بن عمر رضى الله عنهما نه لږ مخكښې شوې دې. (۹) او د سيدنا عبدالله بن عمر رضى الله عنهما وفات د ۷۳ هجرى په اخره يا د ۷۴ هجرى په اولنئ زمانه كښې شوې وو. (۱۰)

---

۱) معرفة الثقات ج ۲ ص ۱۱۸، رقم ۱۱۸۵، واكمال تهذيب الكمال ج ۹ ص ۹۷
۲) الثقات لابن حبان ج ۵ ص ۱۳۲
۳) سير اعلام النبلاء ج ٤ ص ۱۵۷
٤) تاريخ الاسلام للذهبى ج ۲ ص ۵۶٤، رقم ۶۶۵
۵) تقريب التهذيب ص ۳۷۷، رقم ٤۳۸۵
۶) تهذيب الكمال ج ۱۹ ص ۲۲٤، ۲۲۵
۷) معرفة الثقات ج ۲ ص ۱۱۹، ۱۲۰، واكمال تهذيب الكمال ج ۹ ص ۹۷
۸) تهذيب الكمال ج ۱۹ ص ۲۲۵
۹) پورته حواله
۱۰) تقريب التهذيب ص ۳۱۵، رقم ۳٤۹۰

او د يو بل قول مطابق د هغوی وفات په ۷۴ هجری کښې شوې وو. (۱)
امام ابن حبان رحمه الله د ۶۸ هجری قول نقل کړې دې. (۲) کوم چه د عبدالله بن عباس رضي الله عنهما د وفات کال دې. (۳) رحمه الله تعالى رحمة واسعة، ورضي عنه وارضاه.

**قوله: رُؤْيَا الْأَنْبِيَاءِ وَحْيٌ**: د انبياء عليهم السلام خوب وحی وی.
يعنی د حضرات انبياء عليهم السلام قلب په دې وجه نه اودهٔ کیږی چه په خوب کښې په هغوی باندې وحی نازلیږی او د وحی دپاره د هغه تلقی او وعی یعنی یادول ضروری وی، لهذا د هغوی زړونه بیدار ساتلې شی.

**د ذکر شوی حدیث تخریج**: ﴿ رؤيا الانبياء وحى ﴾ دا حدیث د ابن عباس رضي الله عنهما نه مرفوعا نقل دې. امام طبرانی په المعجم الکبیر کښې او امام حاکم رحمه الله په مستدرک کښې د دې تخریج کړې دې. (٤)
﴿ثُمَّ قَرَأَ: إِنِّي أَرَىٰ فِي الْمَنَامِ أَنِّي أَذْبَحُكَ﴾(۵)
بیا عبید بن عمیر رحمه الله دا آیت کریمه تلاوت کړو چه: زه په خوب کښې وینم چه زه تا ذبح کوم.
وجه د استدلال دا ده چه که خوب وحی نه وې نو د ابراهیم عليه السلام دپاره به د سیدنا اسماعیل عليه السلام د ذبح کولو اقدام جائز نه وې او که په عالم رؤيا کښې د وحی په ذریعه اباحت نه وې نو سیدنا ابراهیم عليه السلام به د داسې اقدام دپاره تیاریدو نه، کوم چه په ظاهره کښې حرام فعل دې. په کوم کښې چه د قتل نفس سره سره قطع رحمی هم ده. (۶)
**تنبيه**: داؤدی رحمه الله دلته دا وئیلې دی چه د عبید بن عمیر رحمه الله د قول سره د ترجمة الباب هیڅ تعلق نشته. (۷)
حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه د ترجمة الباب د لاندې د راوړلی شوی حدیث د هر هر جزء سره د ترجمة الباب انطباق چا هم نه دې لازم کړې. د عبید بن عمیر رحمه الله د دې قول د حدیث الباب سره تعلق بالکل واضح دې او هم دا کافی ده. (۸)

---

۱) الكاشف ج ۱ ص ۶۹۱، رقم ۳۶۲۶
۲) مات قبل ابن عمر سنة ثمان وستين يقارب موته موت ابن عباس. الثقات ج ۵ ص ۱۳۲
۳) تقريب التهذيب ص ۳۰۹، رقم ۳٤۰۹
٤) المعجم الكبير ج ۱۲ ص ۵، رقم ۱۲۳۰۲، من احاديث سعيد بن جبير عن ابن عباس. قال الهيثمی فی مجمع الزوائد ج ۷ ص ۱۷۶، كتاب التعبير، باب فيما راه النبی صلى الله عليه وسلم فی المنام ... رواه الطبرانی عن شيخه عبد الله بن محمد بن ابی مريم وهو ضعيف. وباقی رجاله رجال الصحيح.
واخرجه الحاكم فی المستدرک ج ۲ ص ٤۶۸، كتاب التفسير، سورة الصافات رقم ۷۵۰/۳۶۱۳، و ج ٤ ص ٤۳۸، كتاب تعبير الرؤيا رقم ۸۱۹۷ ۲٤
۵) الصافات : ۱۰۲
۶) اوګورئ: فتح البارى ج ۱ ص ۲۳۹، وعمدة القارى ج ۲ ص ۲۵۷، وفضل البارى ج ۲ ص ۲۱۹
۷) فتح البارى ج ۱ ص ۲۳۹، وعمدة القارى ج ۲ ص ۲۵۷
۸) پورته حواله جات

خو حدیث الباب ته کتل پکار دی چه د هغې انطباق د ترجمة الباب سره څنګه دې، نو د حدیث د جملې «فتوضاء من شن معلق وضوًا خفیفا» نه مطابقت بالکل واضح دې. والله اعلم

## ⑥ بَاب: إِسْبَاغِ الْوُضُوءِ

**د سابقه باب سره مناسبت**: په مخکښې باب کښې د اودس د تخفیف ذکر وو په دې باب کښې په ظاهره د هغې مقابل صورت ذکر دې، دغه شان په دواړو کښې مناسبت واضح کیږی. (۱)

**د ترجمة الباب مقصد**: بعض علماء کرام فرمائی چه یو سړې د مخکښې ترجمه الباب باب التخفیف فی الوضوء نه دا وهم کولې شی چه په اودس کښې تخفیف اولی دې، نو امام بخاری رحمه الله په ذکر شوې ترجمة الباب سره دا خبره بیان کړه چه د اودس دوه قسمونه دی، یو ادنی او یو اعلی، په دې کښې ادنی خو د تخفیف صورت دې او اعلی د اسباغ صورت دې. ګویا مصنف رحمه الله د دې دواړو بابونو په ذریعه د اودس په دوه صورتونو باندې تنبیه کړې ده، په دې کښې د تخفیف والا صورت ادنی دې او د اسباغ والا صورت اعلی دې. (۲) والله اعلم

**د اسباغ معنی او قسمونه**: د اسباغ معنی په لغت کښې د اتمام راځی، وئیلې شی «شيء سابغ، ای کامل ووافٍ» هم دغه شان وئیلې شی: «اسبغ الله علیه النعمة اتمها» (۳)

امام شاه ولی الله دهلوی رحمه الله فرمائی چه د اسباغ څلور صورتونه دی.

① یو صورت فرض دې، هغه دا چه انسان د اودس د اندامونو استیعاب اوکړی، یعنی کوم اندامونه چه په اوبو سره وینځلې شی هغه دې پوره طریقې سره په اوبو باندې وینځی، چه هیڅ ځائې ئې باقی پاتې نه شی.

② دویم صورت مسنون دې، هغه دې تثلیث.

③ دریم صورت ئې مستحب دې هغه دې اطالة الغرة والتحجیل.

④ څلورم صورت ئې دآدابونه دې اوهغه دې انقاء یعنی مړلو سره خیرې وغیره صفا کول. (٤)

**د ذکر شوې تعلیق تخریج**: حافظ ابن حجر رحمه الله او علامه عینی رحمه الله نقل کړی دی چه دا تعلیق امام عبدالرزاق صنعانی رحمه الله په صحیح سند سره متصلا نقل کړې دې. (۵)

حافظ رحمه الله په تغلیق التعلیق کښې عبد الرزاق عن ابن جریج اخبرنی نافع مولی ابن عمر په سند سره دا الفاظ نقل کړی دی: «وکان یری الوضوء السابغ الانقاء» (۶)

---

۱) عمدة القاری ج ۲ ص ۲۵۸

۲) اوګورئ لامع الدراری مع الکنز المتواری ج ۳ ص ۱٤

۳) اوګورئ مختار الصحاح ص ۲۸٤، س ب غ

٤) اوګورئ: رسالة شرح تراجم ابواب البخاری ص ۱۶

۵) فتح الباری ج ۱ ص ۲٤۰، وعمدة القاری ج ۲ ص ۲۵۸

٦) تغلیق التعلیق ج ۲ ص ۹۹

مصنف عبدالرزاق كښې مونږ ته دا الفاظ ملاؤ نه شو او نه د امام بخاري رحمه الله نقل کړې شوې الفاظ: ﴿اسباغ الوضوء الانقاء﴾
خو په مصنف عبدالرزاق کښې يو بل روايت د دې مفهوم ملاؤ شو کوم چه هم په دې سند سره روايت شوې دې.

﴿ان ابن عمر كان فى توضئه ينقى رجليه، وينظف اصابع يديه مع اصابع رجليه، ويتبع ذلك حتى ينقيه﴾(١)
يعنې سيدنا ابن عمر رضي الله عنهما به په اودس کښې خپلې خپې صفا کولې، هم دغه شان به ئې د خپلو خپو د ګوتو سره سره د خپلو لاسونو ګوتې هم صفا کولې، دا کار به ئې مسلسل کولو، تردې چه ښه طريقې سره صفا شې.

**د ذکر شوې تعليق د ذکر کولو مقصد**: امام بخاري رحمه الله د سيدنا ابن عمر رضي الله عنهما د اثر نقل کولو نه پس د ﴿اسباغ﴾ تفسير کړې دې او دا ئې وئيلې دی چه د ﴿اسباغ﴾ نه مراد انقاء ده، دا معنې د ﴿تفسير الشئ بلازمه﴾ د قبيل نه ده، ځکه چه کله انسان بار بار د اودس اندامونه وينځی نو انقاء به خپله حاصله شی. (٢)

علامه سندهی رحمه الله فرمائی ﴿اسباغ الوضوء الانقاء اى: لا الاكثار من الماء﴾(٣) يعنې د مصنف رحمه الله مقصد دا دې چه اصل اسباغ انقاء او تنظيف دې، صرف په کثرت سره اوبه بهيول نه دی.
والله اعلم

امام ابن المنذر رحمه الله په صحيح سند سره نقل کړی دی چه سيدنا ابن عمر رضي الله عنهما به خپلې خپې اووۀ کرته وينځلې. (٤)

غالبا د سيدنا ابن عمر رضي الله عنهما د دې عمل وجه دا وه چه د هغه حضراتو عمومی عادت د خپې ابله تلو وو، بيا به ئې په خپو کښې خيرې زيات جمع کيدلو، په دې وجه به ئې په خپو وينځلو کښې مبالغه کوله. (٥)

خو په دې باندې اشکال دا دې چه د ﴿عمرو بن شعيب عن ابيه عن جده﴾ په طريق سره نقل شوی روايت کښې دی چه ﴿فمن زاد على هذا ... فقد اساء وظلم﴾(٦) لهذا سيدنا ابن عمر رضي الله عنهما به د درې کرتو نه زيات څنګه وينځلو؟

---

١) مصنف عبد الرزاق ج ١ ص ٢٤، كتاب الطهارة، باب غسل الرجلين، رقم ٧٣
٢) اوګورئ: فتح البارى ج ١ ص ٢٤٠
٣) حاشية السندى على البخارى ج ١ ص ٧٣
٤) فتح البارى ج ١ ص ٢٤٠
٥) پورته حواله
٦) سنن النسائى، كتاب الطهارة، باب الاعتداء فى الوضوء، رقم (١٤٠) وسنن ابن ماجة، كتاب الطهارة، باب ما جاء فى القصد وكراهة التعدى فيه، رقم (٤٢٢) و مسند احمد ج ٢ ص ١٨٠، مسند عبدالله بن عمرو بن العاص رضى الله عنه، رقم ٦٦٤٤

د دې جواب دا کيدې شي چه هغوی ته به دا روايت نه وی رسيدلې.
دا هم ممکن ده چه د سيدنا عبدالله بن عمر رضی الله عنهما رائې دا وی چه انسان تثليث لره سنت او نه ګڼړی او په هغې باندې اضافه کوی نو دا محل د وعيد دې او که څوک تثليث لره د سنت ګڼړلو نه پس د اتقاء دپاره په کثرت سره اوبه اچوی نو د وعيد هغې سره هيڅ تعلق نشته. (۱)

۱۳۹: (حَدَّثَنَا عَبْدُاللّٰهِ بْنُ مَسْلَمَةَ عَنْ مَالِكٍ عَنْ مُوسَى بْنِ عُقْبَةَ عَنْ كُرَيْبٍ مَوْلَى ابْنِ عَبَّاسٍ عَنْ أُسَامَةَ بْنِ زَيْدٍ(۲) أَنَّهُ سَمِعَهُ يَقُولُ دَفَعَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ عَرَفَةَ حَتَّى إِذَا كَانَ بِالشِّعْبِ نَزَلَ فَبَالَ ثُمَّ تَوَضَّأَ وَلَمْ يُسْبِغْ الْوُضُوءَ فَقُلْتُ الصَّلَاةَ يَا رَسُولَ اللّٰهِ فَقَالَ الصَّلَاةُ أَمَامَكَ فَرَكِبَ فَلَمَّا جَاءَ الْمُزْدَلِفَةَ نَزَلَ فَتَوَضَّأَ فَأَسْبَغَ الْوُضُوءَ ثُمَّ أُقِيمَتْ الصَّلَاةُ فَصَلَّى الْمَغْرِبَ ثُمَّ أَنَاخَ كُلُّ إِنْسَانٍ بَعِيرَهُ فِي مَنْزِلِهِ ثُمَّ أُقِيمَتْ الْعِشَاءُ فَصَلَّى وَلَمْ يُصَلِّ بَيْنَهُمَا)[۱۷۹، ۱۵۸۴، ۱۵۸۶، ۱۵۸۸]

## رجال الحديث

① **عبدالله بن مسلمه**: دا مشهور محدث عبدالله بن مسلمه بن قعنب قعنبی حارثی بصری رحمه الله دې د هغوی حالات په کتاب الايمان، باب من الدين الفرار من الفتن ... د لاندې تير شوې دی. (۳)

② **مالك**: دا امام دار الهجرة مالك بن انس اصبحی مدنی رحمه الله دې، د هغوی حالات په کتاب الايمان، باب من الدين الفرار من الفتن د لاندې تير شوې دی. (٤)

---

۱) عمدة القاری ج ۲ ص ۲۵۸

۲) قوله (عن اسامة بن زيد) الحديث اخرجه البخاری ايضا فی ج ۱ ص ۳۰، کتاب الوضوء باب الرجل يوضئ صاحبه، رقم ۱۸۱، وفی ج ۱ ص ۲۲۶، کتاب الحج، باب النزول بين عرفة وجمع، رقم ۱۶۶۷، ۱۶۶۹، و ج ۱ ص ۲۲۷و کتاب الحج، باب الجمع بين الصلاتين بالمزدلفة، رقم ۱۶۷۲، ومسلم فی صحيحه، فی کتاب الحج، باب استحباب ادامة الحاج التلبية حتی يشرع فی رمی جمرة العقبة يوم النحر، رقم ۳۰۸۷، وباب الافاضة من عرفات الی المزدلفة ... رقم ۳۰۹۹- ۳۱۰۷، والنسائی فی سننه، فی کتاب المواقيت، باب کيف الجمع، رقم ۶۱۰، وفی کتاب مناسک الحج، باب رفع اليدين فی الدعاء بعرفة، رقم ۳۰۱٤، وباب فرض الوقوف بعرفة، رقم ۳۰۲۱، وباب کيف المسير من عرفة؟ رقم ۳۰۲۶، وباب النزول بعد الدفع من عرفة، رقم ۳۰۲۷، و ۳۰۲۸، وباب الجمع بين الصلاتين بالمزدلفة، رقم ۳۰۳٤، وباب الرخصة للضعفة ان يصلوا يوم النحر الصبح بمنی، رقم ۳۰۵٤، وابوداؤد فی سننه فی کتاب المناسک باب الدفعة من عرفة، رقم ۱۹۲۱، ۱۹۲۵، وابن ماجة فی سننه فی کتاب المناسک باب الدفع من عرفة رقم ۳۰۱۷، وباب النزول بين عرفات وجمع لمن کانت له حاجة رقم ۳۰۱۹، والدارمی فی سننه، فی کتاب مناسک الحج، باب الجمع بين الصلاتين بجمع رقم ۱۸۸۸ – ۱۸۸۹)

۳) کشف الباری ج ۲ ص ۸۰

٤) پورته حواله

③ **موسی بن عقبه**: دا امام المغازی موسی بن عقبه بن ابی عیاش قرشی اسدی مدنی رحمه الله دي. (۱)

هغوی سیدنا ابن عمر، سیدنا جابر، سیدنا انس، سیدنا سهل به سعد رضی الله عنهم لیدلي دی. (۲)

دې دام خالد رضی الله عنها نه علاوه دعقلمه بن وقاص، ابوسلمه کریب، سالم بن عبدالله، عبدالرحمن بن هرمز الاعرج، نافع بن جبیر بن مطعم، نافع مولي ابن عمر، صالح مولی التؤامه، عروه بن الزبیر، عکرمه، ابن المنکدر، امام زهری او عبدالله بن دینار رحمهم الله وغیره نه روایت کوی.

د هغوی نه بکیر بن عبدالله بن الاشج، شعبه بن الحجاج، یحیی بن سعید الانصاری، ابن جریج، امام مالك، ابراهیم بن طهمان، ابن ابی الزناد، سفیان ثوری، سفیان بن عیینه، زهیر او ابو اسحاق فرزاری رحمهم الله وغیره ډیر حضرات روایت کوی. (۳)

امام ابن سعد رحمه الله یو ځائې کښې فرمائیلې دی ﴿ **كان ثقة، قليل الحديث** ﴾ په بل ځائې کښې فرمائی: ﴿ **كان ثقة، ثبتا، كثير الحديث** ﴾(٤)

د امام مالك رحمه الله نه چه به کله تپوس اوشو چه د مغازی روایات د چا معتبر دی نو هغوی به فرمائیل چه ﴿ **عليكم بمغازی موسی بن عقبة فانه ثقة** ﴾(۵)

هم دغه شان د هغوی نه منقول دی چه ﴿ **من كان فی كتاب موسی بن عقبة قد شهد بدرا، فقد شهدها، ومن لم يكن فی كتاب موسی، فلم يشهد بدرا** ﴾(۶)

امام احمد، امام یحیی بن معین، ابو حاتم، عجلی او نسائی رحمهم الله فرمائی: ﴿ **ثقة** ﴾(۷)

ابراهیم بن طهمان رحمه الله فرمائی: ﴿ **ثقة** ﴾(۸)

خو امام یحیی بن معین رحمه الله نه منقول دی چه ﴿ **روايته عن نافع فيها شئ** ﴾(۹)

هم دغه شان مفضل بن غسان د امام یحیی بن معین رحمه الله نه نقل کوی:

﴿ **سمعت ابن معين يضعف موسی بعض الضعف** ﴾(۱۰)

---

۱) تهذیب الکمال ج ۲۹ ص ۱۱۵، ۱۱۶

۲) پورته حواله

۳) د شیوخ او تلامذه د تفصیل دپاره اوګورئ: تهذیب الکمال ج ۲۹ ص ۱۱۶ تا ۱۱۸

٤) تهذیب الکمال ج ۲۹ ص ۱۱۸

۵) پورته حواله

٦) تهذیب الکمال ج ۲۹ ص ۱۱۹

۷) تهذیب الکمال ج ۲۹ ص ۱۲۰، والعلل ومعرفة الرجال ج ۲ ص ۳۱، وتاریخ الدارمی ص ۲۰٤، رقم ۷۵۱، والجرح والتعدیل ج۸ ص۱۷۸، رقم ۱٤۰۰۱/۶۹٤، ومعرفة الثقات للعجلی ج۲ ص۳۰۵، رقم (۱۸۲۰)

۸) تهذیب التهذیب ج ۱۰ ص ۳۶۲

۹) تهذیب الکمال ج ۲۹ ص ۱۲۱

۱۰) پورته حواله

هم دغه شان ابن عبد البر رحمه الله فرمائی ﴿ولیس موسی بن عقبة فی ابن شهاب حجة اذا خالفه غیره﴾(۱)
خو حقیقت دا دې چه امام یحیی بن معین رحمه الله د هغوی توثیق کړې دې او د هغوی توثیق مونږ شاته نقل کړې هم دې.
حافظ ذهبی رحمه الله او حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه د هغوی کوم تضعیف د یحیی بن معین رحمه الله نه منقول دې هغه مطلق نه دې، بلکه د امام مالك او عبید الله بن عمر رحمهما الله په مقابله کښې دې، پس د ابن الجنید په روایت کښې د امام یحیی بن معین رحمه الله قول نقل کړې شوې دې: ﴿لیس موسی بن عقبة فی نافع شئ مثل عبید الله بن عمرو مالك﴾(۲)
هم دا حال د ابن عبد البر رحمه الله د قول هم اوګنړئ، یعنی چه کله یو طرف ته موسی بن عقبه وی او بل طرف ته د امام مالك او عبیدالله بن عمر په شان حضرات وی او د موسی بن عقبه د طرف نه د هغوی د روایت مخالفت بیا موندلې شی نو د موسی بن عقبه روایت به مرجوح وی، مطلقا غیر محتج به ګنړل ئې صحیح نه دی.
هم دا وجه ده چه د امام بخاری رحمه الله سره ټول اصحاب ستة د هغوی روایات قبول کړې دی.(۳)
بلکه په صحیح بخاری کښې د ﴿موسی بن عقبة عن نافع﴾ په طریق سره روایات موجود دی. (٤)
د دې نه علاوه هم ډیر روایتونه د موسی بن عقبة عن نافع په طریق سره موجود دی. د موسی بن عقبه رحمه الله وفات په ۱٤۱ هجری کښې شوې دې. (۵)
④ **کریب مولی ابن عباس** : دا ابو رشدین کریب بن ابی مسلم قرشی هاشمی رحمه الله دې. د هغوی حالت په مخکښې باب، باب التخفیف فی الوضوء لاندې تیر شوې دی.
⑤ **اسامة بن زید رضی الله عنهما** : دا د رسول الله صلی الله علیه وسلم محبوب، محبوب متبنی زید بن حارثه او د رسول الله صلی الله علیه وسلم د پالنه کونکې سیده ام ایمن رضی الله عنها خوئې سیدنا اسامه بن زید بن حارثه بن شراحیل کلبی رضی الله عنه دې. (تهذیب الکمال ج ۲ ص ۳۳۸)
د هغه په کنیتونو کښې ډیر اقوال دی، ابو محمد، ابو زید، ابو یزید، ابو حارثه. (۶)

---

۱) الاستیعاب بهامش الاصابة ج ٤ ص ۳۰۲، تحت ترجمة رقیة رضی الله عنها بنت رسول الله صلی الله علیه وسلم.
۲) سؤالات ابن الجنید ص ۳۰۹، رقم ۱۵۱، هم دغه شان اوګورئ سیر اعلام النبلاء ج ۶ ص ۱۱۷، وهدی الساری ص ۶۲۹
۳) اوګورئ: هدی الساری ص ۶۲۹
٤) اوګورئ: صحیح البخاری ج ۱ ص ۷۰، کتاب الصلاة، باب المساجد التی علی طرق المدینة رقم ٤۸٤، و ج ۱ ص ۷۲، کتاب الصلاة، باب بدون ترجمة، بعد الصلاة بین السواری فی غیر جماعة، رقم ۵۰۶، و ج ۱ ص ۹۱، ۹۲، کتاب الاذان، باب اذا حضر الطعام واقیمت الصلاة رقم ٦۷٤، و ج ۱ ص ۱۲۹، کتاب الصلاة، باب صلاة الخوف رجالا ورکبانا رقم ۹٤۳، و ج ۱ ص ۱٤۸، کتاب تقصیر الصلاة، باب صلاة التطوع علی الدواب رقم ۱۰۹۵، و ج ۱ ص ۱۷۷ کتاب الجنائز، باب الصلاة علی الجنائز بالمصلی والمسجد. رقم ۱۳۲۹
۵) اوګورئ: الکاشف ج ۲ ص ۳۰۶، رقم ۵۷۱۷، وسیر اعلام النبلاء ج ۶ ص ۱۱۷
۶) پورته حواله

دې د رسول الله ﷺ نه علاوه د خپل والد محترم سیدنا زید بن حارثه، سیدنا بلال او سیده ام سلمه رضی الله عنها نه روایت حدیث کوی.
د هغوی نه په صحابه کرام رضی الله عنهم کښې سیدنا ابوهریره او سیدنا عبدالله بن عباس رضی الله عنهما روایت کوی، د هغوی نه علاوه ترې په تابعینو کښې ابو وائل، ابو عثمان النهدی، عروة بن الزبیر، ابو سلمة، ابو سعید مقبری، عامر بن سعد، عطاء بن ابی رباح رحمهم الله وغیره حضرات روایت حدیث کوی. (۱)

د سیدنا اسامه بن زید رضی الله عنهما فضائل او مناقب ډیر دی! پس د هغه نه خپله روایت دې چه ﴿أَنَّهُ كَانَ يَأْخُذُهُ وَالْحَسَنَ وَيَقُولُ اللَّهُمَّ إِنِّي أُحِبُّهُمَا فَأَحِبَّهُمَا﴾(۲)
**یعنی** رسول الله ﷺ به اسامه او حسن رضی الله عنهما په خپل غیږ مبارك کښې کینول او فرمائیل به ئې چه اې الله! زما دوی سره مینه ده ته هم دوی سره مینه اوکړه.
رسول الله ﷺ چه کله سیدنا اسامه بن زید رضی الله عنهما د یوې سریه امیر جوړ کړو نو خلقو کښې کنګوسی شروع شو، رسول الله ﷺ اوفرمائیل:
﴿أَنْ تَطْعُنُوا فِي إِمَارَتِهِ فَقَدْ كُنْتُمْ تَطْعُنُونَ فِي إِمَارَةِ أَبِيهِ مِنْ قَبْلُ وَايْمُ اللَّهِ إِنْ كَانَ لَخَلِيقًا لِلْإِمَارَةِ وَإِنْ كَانَ لَمِنْ أَحَبِّ النَّاسِ إِلَيَّ وَإِنَّ هَذَا لَمِنْ أَحَبِّ النَّاسِ إِلَيَّ بَعْدَهُ﴾(۳).
**یعنی**: که ستاسو د اسامه رضی الله عنه په امارت کښې اشکال وی نو دا څه نوې خبره نه ده، د دې نه مخکښې د هغه د پلار د امارت په باره کښې هم ستاسو اشکال وو، او حال دا دې چه قسم په الله! هغه د امارت اهل وو او هغه زما په نزد د ټولو خلقو نه زیات محبوب وو، او اوس دې (اسامه رضی الله عنه) د هغه نه پس ماته د ټولو خلقو نه زیات محبوب دې.
د صحیح مسلم په روایت کښې په دې باندې اضافه ده: ﴿فَأُوصِيكُمْ بِهِ فَإِنَّهُ مِنْ صَالِحِيكُمْ﴾(٤)
یعنی زه تاسو ته هغه سره د نیك سلوك کولو وصیت کوم، ځکه چه هغه ستاسو د نیکانو خلقو نه دې.
د رسول الله ﷺ په نزد د هغه د محبوبیت دا حال وو چه د قریش په مخزومی خاندان باندې د حد د اجراء په سلسله کښې تشویش راغلو، د چا هم همت نه کیدو چه د رسول الله ﷺ سره خبره اوکړی. ټولو سوچ اوکړو چه رسول الله ﷺ سره صرف اسامه بن زید رضی الله عنهما خبرې کولې شی، پس هغه د رسول الله ﷺ سره خبره اوکړه، رسول الله ﷺ د حدود الله په سلسله کښې د

۱) د شیوخ او تلامذه د تفصیل دپاره اوګورئ، تهذیب الکمال ج ۲ ص ۳۳۸، ۳٤۰
۲) صحیح البخاری ج ۱ ص ۵۳۰. کتاب فضائل اصحاب النبی ﷺ، باب مناقب الحسن والحسین رضی الله عنهما، رقم ۳۷٤۷
۳) صحیح البخاری ج ۱ ص ۵۲۸. کتاب فضائل اصحاب النبی ﷺ، باب مناقب زید بن حارثة، مولی النبی ﷺ رقم ۳۷۳۰.
٤) صحیح مسلم، کتاب فضائل الصحابة، باب من فضائل زیدبن حارثة وابنه اسامة رضی الله عنهما، رقم ۶۲۶۵

چا د خبرې منلو نه صفا انكار اوكړو. (١)

د سيدنا ابن عمر رضي الله عنهما نه مرفوعا نقل دى چه ﴿ اسامة احب الناس الى ﴾(٢) يعنى زما د ټولو نه زياته مينه د اسامه رضي الله عنه سره ده.

سيده عائشه رضي الله عنها فرمائى : ﴿ لَا يَنْبَغِي لِأَحَدٍ أَنْ يَبْغُضَ أُسَامَةَ بَعْدَمَا سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ : مَنْ كَانَ يُحِبُّ اللّٰهَ عَزَّ وَجَلَّ وَرَسُولَهُ ، فَلْيُحِبَّ أُسَامَةَ ﴾ (٣) يعنى د رسول الله ﷺ د دې ارشاد چه څوك د الله پاك او د رسول الله ﷺ سره محبت لرى هغه لره پكار دى چه د اسامه رضي الله عنه سره محبت كوى، اوريدلو نه پس د چا دپاره هيڅ ګنجائش نشته چه هغه اسامه ناخوښه اوګڼړى.

د رسول الله ﷺ په اسامه بن زيد رضي الله عنهما او د هغه په صلاحيتونو باندې څومره اعتماد وو د دې اندازه د دې خبرې نه اولګوئ چه په غزوه موته كښې چه كله سيدنا جعفر بن ابى طالب، سيدنا زيد بن حارثه او سيدنا عبدالله بن رواحه رضي الله عنهم پرله پسې شهيدان شو، د هغوى نه روستو سيدنا خالد بن وليد رضي الله عنه جهنډه اوچته كړه نو په دې موقع باندې رسول الله ﷺ اوفرمائيل: ﴿ فهلا الى رجل قتل ابوه ﴾(٤)

يعنى عَلَم به هغه كس اخستلو دچا پلار چه به شهيد شو.

دغه شان دې بالكل ځوان وو، صرف د اتلسو كالو وو چه رسول الله ﷺ هغه د لښكر امير جوړ كړو (٥). لا روان شوې هم نه وو چه رسول الله ﷺ وفات شو، په دې لښكر كښې سيدنا عمر رضي الله عنه هم د هغوى ماتحت وو. (٦)

سيدنا ابوبكر صديق رضي الله عنه د خلافت واګې سنبهالولو سره د سيدنا اسامه رضي الله عنه لښكر د خپل منزل طرف ته اوليږلو، خو سيدنا عمر رضي الله عنه ئې د سيدنا اسامة په اجازت سره ځان ته پاتې كړو. (٧)

سيدنا عمر رضي الله عنه به چه كله هم د سيدنا اسامة رضي الله عنه سره ملاويدو نو ﴿ السلام عليك يا ايها الامير

---

١) اوګورئ: صحيح البخارى ج ١ ص ٥٢٨، كتاب فضائل اصحاب النبى ﷺ باب ذكر اسامة بن زيد رضى الله عنهما رقم ٣٧٣٢، ٣٧٢٢

٢) المستدرک للحاكم ج ٣ ص ٦٨٩، كتاب معرفة الصحابة، باب ذكر اسامة بن زيد، حب رسول الله صلى الله عليه وسلم رقم ٦٥٣٠، وقال صحيح على شرط مسلم، ووافقه الذهبى. والمعجم الكبير للطبرانى، ج ١ ص ١٥٩، رقم ٣٧٢

٣) مسند احمد ج ٦ ص ١٥٦، ١٥٧، رقم (٢٥٧٤٨) قال الهيثمى رواه احمد ورجاله رجال الصحيح، مجمع الزوائد ج ٩ ص ٢٨٦، كتاب المناقب، باب فى اسامة بن زيد حب رسو ل الله ﷺ

٤) سير اعلام النبلاء ج ٢ ص ٥٠٢)

٥) سير اعلام النبلاء ج ٢ ص ٥٠٠

٦) تهذيب الاسماء واللغات ج ١ ص ١١٥

٧) سير اعلام النبلاء ج ٢ ص ٥٠٣

ورحمة الله ﴾ به ئې فرمائيل او فرمائيل به ئې چه كله رسول الله ﷺ وفات شوې وو هغه وخت ته زما امير وې. (١)
په يوه غزوه كښې سيدنا اسامه بن زيد رضي الله عنهما يو كافر اوليدو چه كافى مسلمانانو لره قتل كولو سره په منډه وو، سيدنا اسامه رضي الله عنه هغه گير كړو، هغه د تورې ليدو سره ﴿ لا اله الا الله ﴾ وئيلو سره د ځان د بچ كولو كوشش اوكړو، خو سيدنا اسامه رضي الله عنه هغه قتل كړو، رسول الله ﷺ په دې موقع باندې اوفرمائيل : اې اسامه! كه هغه سړې د قيامت په ورځ باندې د ﴿ لا اله الا الله ﴾ سره راشي نو څه به كيږى؟ سيدنا اسامه رضي الله عنه سخت پښيمانه شو، استغفار ئې اوكړو او د رسول الله ﷺ نه ئې هم د دعا او استغفار درخواست اوكړو او د بيا دپاره ئې كلكه اراده اوكړه چه كله به هم په يو مسلمان باندې لاس نه اوچتوى. (٢)
د دې نه روستو په هيڅ قسم فتنه كښې شريك نه شو، تردې چه په يوه موقع باندې سيدنا على رضي الله عنه هغوى ته اوفرمائيل او تپوس ئې ترې اوكړو چه مونږ خو تا د خپل كور د خلقو نه گڼړو خو تا زمونږ ملگرتيا اونكړه؟ سيدنا اسامه رضي الله عنه جواب وركړو چه اې ابو الحسن! كه تاسو د زمرى يوه ژامه اونيسئ نو زه به ئې بله اونيسم، او په مرگ او ژوند كښې به ستاسو ملگرتيا كوم. خو په كومه معامله كښې چه تاسو اخته شوى يئ قسم په الله! زه هغې كښې نه شم داخليدې، پس هغه هم د سيدنا سعد بن ابى وقاص، ابن عمر، محمد بن مسلمه رضي الله عنهم په شان د مشاجرات نه جدا شوې وو. (٣)
د سيدنا اسامه بن زيد رضي الله عنهما نه تقريبا يو سل اتويشت (١٢٨) احاديث روايت شوې دى، د هغې نه متفق عليه احاديث پنځلس دى، او په شيخين كښې هر يو په دوه دوه احاديثو كښې متفرد دى. (٤)
اسامه رضي الله عنه په ٥٤ هجرى كښې وفات شوې دې.(٥) رضى الله عنه وارضاه

**قوله: أَنَّهُ سَمِعَهُ يَقُولُ :** كريب مولى ابن عباس رضي الله عنهما سيدنا اسامه بن زيد رضي الله عنهما نه واوريدل.
**قوله: دَفَعَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ عَرَفَةَ حَتَّى إِذَا كَانَ بِالشِّعْبِ نَزَلَ فَبَالَ ثُمَّ تَوَضَّأَ وَلَمْ يُسْبِغْ الْوُضُوءَ :** رسول الله ﷺ د عرفات نه روان شو، تردې چه

١) سير اعلام النبلاء ج ٢ ص ٥٠١
٢) اوگورئ : صحيح البخارى ج ٢ ص ٦١٢، كتاب المغازى، باب بعث النبى ﷺ اسامة بن زيد الى الحرقات من جهينة رقم ٤٢٦٩، وصحيح مسلم، كتاب الايمان، باب تحريم قتل الكافر بعد قوله : لا اله الا الله ...... رقم ٢٧٧ – ٢٧٩.
٣) اوگورئ : سير اعلام النبلاء ج ٢ ص ٥٠٠، ٥٠٤
٤) اوگورئ : تهذيب الاسماء واللغات ج ١ ص ١١٤، خو په دې كښې دى : اتفق البخارى ومسلم منها على خمسة ... غالبا دا خمسة عشر دې، په غلطئ سره د عشر لفظ پاتې شوې دې.
٥) اوگورئ : الكاشف: ١١ ٢٣٢، رقم (٢٦٤).

يوې درې ته اورسيدو نو راكوز شو او بول ئې اوكړل، بيا ئې اودس اوكړو او په اودس كښې ئې اسباغ اونكړو.

**د توضاء ولم يسبغ الوضوء مطلب ؟** : رسول الله ﷺ اودس اوكړو او د اودس اسباغ ئې اونكړو، د اودس نه مراد څه دې؟ او د عدم اسباغ څه مطلب دې؟

په دې كښې د علماء كرامو ډېر اقوال دى:

عيسى بن دينار او حافظ ابن عبدالبر رحمه الله خو فرمائى چه دلته د اودس نه مراد استنجاء ده.(۱) په دې صورت كښې به د ﴿ لم يسبغ الوضوء ﴾ مطلب دا وى چه رسول الله ﷺ د اودس اندامونه تر نه كړل.

خو په دې باندې اشكال دا دې چه چه لفظ ﴿ وضوء ﴾ د شريعت په اصطلاح كښې د مخصوص معنى دپاره استعماليږى بغير د يو صارف او قرينې نه د هغې د پريخودلو څه وجه نشته.

په دې وجه بعض علماء كرام فرمائى چه دلته د اودس نه مراد شرعى اودس دې، استنجاء نه ده، بس اسباغ نه ده كړې شوې، وړاندې ﴿ ولم يسبغ الوضوء ﴾ راغلې دې. د دې دواړو د يو ځائې كولو نه دا نتيجه راوځى چه رسول الله ﷺ ناقصه اودس اوكړو يعنى په ظاهره كښې ئې لاس خپې وينځل، حقيقة ئې بعض اندامونه وينځل او بعض نه، يا د اودس په اندامونو كښې چه د كوم استعياب ضرورت وو د هغه استعياب نه ئې كار وانخستلو. (۲)

په دې باندې دا اشكال دې چه هم دا حديث وړاندې په كتاب الحج كښې راروان دې په هغې كښې دى چه : ﴿ فتوضاء وضوءا خفيفا ﴾(۳) يعنى رسول الله ﷺ مختصر اودس اوكړو، د دې نه معلوميږى چه اودس پوره وو، خو مختصر وو.

هم په دې وجه ابن بطال رحمه الله فرمائى چه د ﴿ توضاء ولم يسبغ الوضوء ﴾ مطلب دا دې چه رسول الله ﷺ اصطلاحى اودس كړې وو، خو اسباغ وضوء يعنى درې درې كرته وينځلو په ځائې ئې يو يو كرت په وينځلو باندې اكتفاء اوفرمائيله. (٤)

بعض حضراتو د ابن بطال رحمه الله د رائې په تائيد كښې د ﴿ الصلاة يا رسول الله ﴾ نه استدلال كړې دې چه رسول الله ﷺ چه كله اودس اوكړو نو عرض اوكړې شو چه مونځ اوكړئ، رسول الله ﷺ اوفرمائيل ﴿ الصلاة امامك ﴾ يعنى مونځ به وړاندې كيږى. (۵)

خو علامه كرمانى رحمه الله فرمائى چه كيدې شى چه د دې معنى دا وى چه يا رسول الله ﷺ!

---

۱) اوګورئ : التمهيد ج ۱۳ ص ۱۵۸، حديث اول لموسى بن عقبة والاستذكار ج ۳ ص ۶۳۳، كتاب الحج، باب صلاة المزدلفة، وفتح البارى ج ۳ ص ۵۲۰، ۵۲۱، كتاب الحج باب النزول بين عرفة وجمع.

۲) اوګورئ : التمهيد ج ۱۳ ص ۱۵۸، ۱۵۹

۳) صحيح البخارى ج ۱ ص ۲۲۶، كتاب الحج، باب النزول بين عرفة وجمع، رقم ۱۶۶۹

٤) اوګورئ : شرح صحيح البخارى لابن بطال ج ۱ ص ۲۲۷، ۲۲۸

۵) شرح الكرمانى ج ۲ ص ۱۷۹

د مانخه وخت خو شوې دې لهذا تاسو پوره اودس ولې نه کوئ؟ (۱)
خو دا خبره بعیده ده، ځکه چه د روایت مطلب د هغې د نورو الفاظو نه په فهم کښې راځی، ځکه چه دلته خو ﴿توضاء ولم یسبغ الوضوء﴾ دې او بل ځائې کښې ﴿توضاء وضوءا خفیفا﴾ دې. (۲) دا دویم الفاظ د ړومبو الفاظ تشریح ده.

**قوله:** فَقُلْتُ الصَّلَاةَ يَا رَسُولَ اللّٰهِ: ما عرض اوکړو یا رسول الله ﷺ مونځ اوکړئ.

﴿الصلاة﴾ مرفوع هم لوستلې کیدې شی، تقدیر د عبارت به داسې وی ﴿حانت الصلاة﴾ یا ﴿حضرت الصلاة﴾ (۳)
دا منصوب هم لوستلې کیدې شی، یا د اغراء د وجې نه به نصب وی.(٤) تقدیر د عبارت به داسې وی : ﴿الزم الصلاة﴾ یا ﴿اقم الصلاة﴾ یا عامل د نصب به محذوف وی ﴿اترید الصلاة﴾ د دې تائید د هغه طریق نه کیږی چه چه په هغې کښې دی ﴿یا رسول الله اتصلی؟﴾(۵)

**قوله:** فَقَالَ الصَّلَاةُ أَمَامَكَ: رسول الله ﷺ اوفرمائیل مونځ به وړاندې کیږی.

﴿الصلاة﴾ مبتدا دې او ﴿امامك﴾ د دې خبر دې. (۶)
مطلب دا دې چه مونځ به وړاندې په مزدلفه کښې کیږی، د دې مونځ محل مزدلفه دې.

**د عرفات نه مزدلفې ته په راتلو کښې د مانځه حکم** : د عرفات نه مزدلفې ته په راتلو کښې اصل حکم کوم چه متفق علیه دې هغه دا دې چه د ماښام او ماسخوتن مونځونه جمعا مزدلفې ته راتلو سره اوکړې شی، د ماښام مونځ دې نه په عرفات کښې ادا کړې شی او نه په لاره کښې.(۷)
خو که څوك د ماښام مونځ په لاره یا په عرفات کښې ادا کړی نو د هغه مونځ به صحیح وی که فاسد؟

امام ابوحنیفه او امام احمد رحمهما الله فرمائی چه د هغه مونځ فاسد دې او د هغه په ذمه باندې اعاده واجب ده، ترڅو پورې چه سحر نه وی راختلې، د طلوع فجر نه پس به ترې اعاده ساقط شی، ګویا دا فساد موقوف دې. (۸)
امام مالك رحمه الله فرمائی چه بغیر د عذر نه په لاره کښې د ماښام د مونځ ادا کول صحیح نه

---

۱) پورته حواله
۲) پورته حواله ذکر شوې ده.
۳) اوګورئ : عمدة القاری ج ۲ ص ۲۵۹
٤) پورته حواله
۵) صحیح البخاری ج ۱ ص ۳۰، کتاب الوضوء، باب الرجل یوضی صاحبه، رقم ۱۸۱
۶) فتح الباری ج ۱ ص ۲٤۰
۷) اوګورئ : المغنی لابن قدامة ج ۳ ص ۲۱۳، رقم ۲۵۲۰
۸) اوګورئ : المبسوط للسرخسی ج ٤ ص ۷۱، باب الخروج الی المنی، والدر المختار مع شرحه رد المحتار ج ۲ ص ۱۹۲.

دی، که بغیر د عذر نه ئې اوکړی نو مزدلفې ته تلو سره دې د هغې اعاده اوکړی او که د چا څه عذر وی یا ئې سورلئ نه څه عذر وی نو د شفق د غائب والی نه پس هر چرته مونځ ادا کولې شی. (۱)

امام ابویوسف، امام شافعیؒ او امام محمد رحمهم الله فرمائی چه اولی او افضل دا ده چه د ماښام مونځ دې په مزدلفه کښې ادا کړې شی، خو که څوک ئې په لاره کښې ادا کړی نو د هغه په ذمه به اعاده واجب نه وی. (۲) والله اعلم

**قوله:** فَرَكِبَ فَلَمَّا جَاءَ الْمُزْدَلِفَةَ نَزَلَ فَتَوَضَّأَ فَأَسْبَغَ الْوُضُوءَ ثُمَّ أُقِيمَتِ الصَّلَاةُ: بیا په سورلئ باندې سور شو، چه کله مزدلفې ته راغلو نو راکوز شو او دوباره ئې اودس اوکړو او په اودس کښې ئې اسباغ اوکړه.

امام خطابی رحمه الله فرمائی چه د دې نه معلومیږی چه نفس اودس قربت او عبادت دې، برابره خبره ده که په مخکښې اودس سره څه مونځ کړې شوې وی یا نه وی کړې شوې. (۳)

**د تجدید وضوء حکم**: تجدید وضوء بالاتفاق مستحب یا مسنون دې، خو دا استحباب مطلقا نه دې بلکه په یو قید پورې مقید دې. بیا په دې کښې اختلاف دې چه هغه قید څه دې؟ په احنافو کښې د صاحب مراقی الفلاح رائې دا ده چه مجلس بدل شی. (٤)

صاحب د در مختار دا اختیار کړې دې چه د دې دارومدار په نیت باندې دې، که څوک د تجدید وضوء په نیت او قصد سره اودس کوی نو نه صرف دا چه څه کراهت پکښې نشته بلکه مندوب دې، او که بغیر د څه نیت نه اودس کوی نو کراهت دې. (۵)

ابن العماد رحمه الله د شرح مصابیح نه نقل کوی چه تجدید وضوء په هغه صورت کښې مستحب دې چه کله ئې په اودس سره یو مونځ کړې وی. (۶)

ددې تقاضه دا ده چه تبدل مجلس هم ناکافی دې بلکه په یو مونځ سره فصل ضروری دې. (۷)

خو علامه عبدالغنی نابلسی رحمه الله فرمائی چه «من توضاء علی طهر کتب له عشر حسنات» یعنی څوک چه د طهارت باوجود اودس کوی د هغه دپاره لس نیکئ لیکلې شی. دا حدیث مطلق

---

۱) انظر المدونة ج ۱ ص ٤۱۶، کتاب الحج الاول، رسم فیمن ادخل حجا علی حج، او عمرة علی عمرة، ومن صلی المغرب والعشاء قبل ان یاتی المزدلفة، والشرح الکبیر مع حاشیته الدسوقی علیه ج ۲ ص ۲۲۵، ۲۲۶.

۲) اوګورئ: المجموع شرح المهذب ج ۸ ص ۱٤۸، والمغنی لابن قدامة ج ۳ ص ۲۱٤، رقم ۲۵۲۳

۳) اوګورئ: اعلام الحدیث للخطابی ج ۱ ص ۲۳۶، وفتح الباری ج ۱ ص ۲٤۰.

٤) مراقی الفلاح مع حاشیة الطحطاوی ص ۸۲، فصل فی اوصاف الوضوء

۵) انظر: الدر المختار ج ۱ ص ۸۸ مطلب فی الوضوء علی الوضوء. قال ابن عابدین: لا باس به، وفیه اشارة الی ان ذلک مندوب، فکلمة لا باس وان کان الغالب استعمالها فیما ترکه اولی، لکنها قد تستعمل فی المندوب، کما صرح به فی البحر من الجنائز والجهاد، فافهم ... رد المحتار ج ۱ ص ۸۸

۶) رد المحتار ج ۱ ص ۸۸

۷) پورته حواله

دي. مفهوم ئي دا دي چه د مجلس يا صلاة وغيره په ذريعه باندي د فصل ...
نشته، چونکه وضوء على وضوء مشروع ده، په دې وجه به دې ته اسراف نه وايو ...
دريم يا څلورم کرت باندې د مجلس يا صلاة د فصل نه بغير اودس کوی نو دا به اسراف
مالکيان فرمائی چه که اول اودس ئې مرة مرة يا مرتين مرتين کړې وی، نو بيا خو بغير
تخلل عبادت نه دويم اودس کولې شي او که پوره يعنی د تثليث سره ئې اودس کړې وی نو
د دوباره اودس دپاره شرط دا دې چه يو داسې اودس اوکړی کوم چه په اودس باندې
موقوف وی، لکه مونځ فرض يا نفل، يا طواف، يا مس مصحف وغيره. (۲)
د شوافعو په دې سلسله کښې پنځه اقوال دی:

① که په اول اودس باندې فرض يا نفل څه مونځ ادا کړی نو دوباره اودس مستحب دې، گينې نه دې، دا د ټولو نه اصح قول دې.

② که د فرض مونځ فصل وی نو دوباره اودس مستحب دې، گينې نه دې.

③ که په اول اودس سره ئې څه عبادت مقصوده ادا کړې وی نو اودس مستحب دې، گينې نه دې. ④ که په اول اودس سره ئې مونځ ادا کړې وی، يا ئې سجده تلاوت يا سجده شکر ادا کړې وی، يا ئې قران کريم راخستلو سره د هغې تلاوت کړې وی نو دوباره اودس مستحب دې گينې نه دې.

⑤ د اودس تجديد بغير د څه عمل د فصل نه مستحب دې، خو امام نووی رحمه الله فرمائی چه دا په هغه صورت کښې ممکن دي چه کله د دوارو اودسونو ترمينځه دومره زمانه تيره شی کومه چه فاصل منلې کيدې شی، گينې دا به د اودس د اندامونو په څلورم کرت باندې د وينځلو په حکم کښې شی او دا قول انتهائی غريب دې. (۳)

د حنابله په نزد دوه اقوال دی، يو قول چه کوم اصح دې هغه دا دې چه تجديد وضوء مستحب دې، دويم قول دا دې چه په دې کښې هيڅ فضيلت نشته. (٤)

تنبيه: حافظ ابن حجر رحمه الله ليکلې دی چه رسول الله ﷺ چه د مزدلفې په شپه باندې په کومو اوبو سره اودس کړې وو هغه د زمزم وې، هم دغه شان ئې دا هم ليکلې دی چه امام عبدالله بن احمد بن حنبل رحمه الله په زيادات المسند کښې په حسن سند سره د سيدنا علی رضی الله عنه حديث نقل کړې دې. په دې سره د هغه حضراتو ترديد راځی کوم چه وائی چه د زمزم اوبه سوا د څکلو نه د نورو مقصدونو دپاره نه شی استعمالولې. (۵)

حافظ رحمه الله چه د کوم روايت حواله ورکړې ده په هغې کښې د عرفات نه مزدلفې ته تلو سره په لاره کښې د زمزم په اوبو سره د اودس کولو ذکر نشته، بلکه روستو ئې د رمی جمرات او

---

۱) پورته حواله
۲) اوګورئ: الشرح الكبير مع حاشية الدسوقي ج ۱ ص ۲۰۵، فصل في نواقض الوضوء
۳) اوګورئ: المجموع شرح المهذب ج ۱ ص ٤٦٩، ٤٧٠
٤) اوګورئ: المغنى لابن قدامة ج ۱ ص ۹۶
۵) فتح البارى ج ۱ ص ۲٤٠

نحر نه فارغ كيدو سره چه كله د طواف زيارت دپاره راغلل او د طواف نه پس د زمزم كوهي ته ورغلل. د هغه وخت ذكر دي چه په دې موقع باندې رسول الله ﷺ زمزم هم اوڅكلې او په هغې سره ئې اودس هم اوكړو. (۱)

**د زمزم په اوبو سره د اودس او د غسل كولو حكم :** جمهور علماء كرام د زمزم په اوبو سره اودس او غسل جائز ګڼړي، د امام احمد رحمه الله نه اصح روايت دې چه جائز دې، د دويم روايت مطابق كراهت دې.

ملا على قارى رحمه الله فرمائى : ﴿ ويجوز الاغتسال والتوضؤ بماء زمزم، ولا يكره عند الثلاثة، خلافا لاحمد، على وجه التبرك، اى لا باس بما ذكر، الا انه ينبغى ان يستعمله على قصد التبرك بالمسح او الغسل، او التجديد فى الوضوء، ولا يستعمل الا على شئ طاهر، فلا ينبغى ان يغسل به ثوب نجس، ولا ان يغسل به جنب، ولا محدث، ولا فى مكان نجس، ويكره الاستنجاء به، وكذا ازالة النجاسة الحقيقية من ثوبه او بدنه، حتى ذكر بعض العلماء تحريم ذلك ﴾ (۲)

يعنى د زمزم په اوبو باندې د تبرك په طور د ائمه ثلاثه په نزد اودس او غسل كول جائز دى، په خلاف د امام احمد رحمه الله (د يو روايت مطابق) د هغوى په نزد كراهت دې. خو د زمزم اوبه د تبرك په قصد، د مسح، غسل او تجديد وضوء دپاره استعمالول پكار دى. هم دغه شان دې دا په پاكو څيزونو باندې استعمال كړې شى، لهذا په دې باندې نه خو ناپاك كپړې وينځل پكار دى او نه دې پرې يو جنبى يا محدث غسل كوى. هم دغه شان دې په ناپاك ځائې كښې هم استعمال نه كړې شى.

په تنوير الابصار او الدر المختار كښې دى : ﴿ ويرفع الحدث بماء مطلق .... وماء زمزم بلا كراهة ﴾ (۳)
يعنى د رفع حديث دپاره د ماء مطلق او ماء زمزم استعمالول جائز دى.

هم دغه شان ابن عابدين رحمه الله فرمائى : ﴿ قوله : يكره الاستنجاء بماء زمزم، وكذا ازالة النجاسة الحقيقية من ثوبه او بدنه، حتى ذكر العلماء تحريم ذلك ﴾ (٤)

يعنى د زمزم په اوبو سره استنجاء كول مكروه دى، هم دغه شان د كپړې يا د بدن نه د نجاست حقيقيه د وينځلو دپاره ئې هم استعمال مكروه دې، تردې چه بعض علماء كرامو دې ته حرام وئيلې دى.

امام نووى رحمه الله فرمائى : ﴿ واما زمزم، فمذهب الجمهور كمذهبنا، انه لا يكره الوضوء والغسل به، وعن

---

۱) اوګورئ مسند احمد ج ۱ ص ۷۶، رقم ٥٢٤
۲) مناسك ملا على القارى، المسمى : المسلك المتقسط فى المنسك المتوسط ص ٤٩٥، باب المتفرقات، فصل ويستحب الاكثار من شرب ماء زمزم.
۳) تنوير الابصار مع شرحه الدر المختار بهامش رد المحتار ج ۱ ص ۱۳۲، باب المياه
٤) رد المحتار ج ۲ ص ۲۷۸، كتاب الحج

احمد رواية بكراهته ﴾(۱)
يعنى د زمزم د اوبو په باره كښ د جمهورو مذهب زمونږ د مذهب په شان دې چه د دې نه په اودس او غسل كولو كښ هيڅ كراهت نشته، خو د امام احمدﷺ نه يو روايت د كراهت دې.
ابن قدامهﷺ فرمائي: ﴿ ولايكره الوضوء والغسل بماء زمزم.... وعنه يكره ﴾(۲)
يعنى د زمزم په اوبو سره اودس او غسل مكروه نه دې. د امام احمدﷺ نه يو روايت د كراهت دې. د فقه مالكى كتاب مواهب الجليل كښ دى:
﴿ أن ماء زمزم يتوضأ به وتزال به النجاسة ولا خلاف فيه إلا ما روى عن ابن شعبان من أنه قال لا تزال به النجاسة تشريفاله انتهى. ونحوه للشيخ يوسف بن عمر قلت: (القائل صاحب المواهب): أما الوضوء به لمن كان طاهر الأعضاء فلا أعلم في جوازه خلافا بل صرح باستحبابه غير واحد نقلا عن ابن حبيب وكذلك لا أعلم في جواز الغسل به لمن كان طاهر الأعضاء خلافا بل صرح ابن حبيب أيضا باستحباب الغسل به ﴾(۳)
**يعنى**: د زمزم په اوبو سره اودس هم كيدلې شى او نجاستونه هم وينځلې كيدې شى، په دې كښ هيڅ اختلاف نشته، خو د ابن شعبانﷺ نه روايت دې، هغه فرمائي چه د زمزم په اوبو سره نجاست نه دى زائل كول پكار، دا د زمزم د اوبو اكرام دې، هم دا خبره شيخ يوسف بن عمرﷺ هم كړې ده. زه وائم چه د چا اودس وى، د هغه دپاره د زمزم د اوبو نه د اودس په جواز كښ د چا هم اختلاف نشته، بلكه ډير حضرات د ابن حبيبﷺ نه استحباب نقل كړې دې، هم دغه شان چه كوم انسان طاهر الاعضاء وى، د هغه دپاره د غسل په جواز كښ هم څه اختلاف نشته، بلكه ابن حبيبﷺ د داسې انسان دپاره د غسل د مستحب كيدو تصريح كړې ده.
حاصل دا چه كوم انسان طاهر الاعضاء وى، د داسې انسان دپاره د زمزم په اوبو د اودس او د غسل په جائز كيدو كښ هيڅ اختلاف نشته، بعض حضراتو د داسې سرى دپاره د استحباب تصريح كړې ده.
خو د مالكيانوﷺ په نزد اصل دا ده چه د ازاله حدث وخبث هر يو دپاره د استعمال گنجائش شته. (٤)
شيخ الاسلام ابن تيميهﷺ فرمائي چه د زمزم په اوبو سره اودس خو كيدلې شى خو غسل كول ترې جائز نه دى. (٥)

۱) المجموع ج ۱ ص ۹۱
۲) المغنى لابن قدامة ج ۱ ص ۲۸
۳) مواهب الجليل شرح مختصر الخليل ج ۱ ص ٦٤، باب يرفع الحدث وحكم الخبث
٤) اوگورئ: الموسوعة الفقهية الكويتية ج ۱ ص ۹۱، مادة ابار
٥) اوگورئ: الفتاوى الكبرى ج ٥ ص ۷٥، مسالة فى المصحف العتيق اذا تمزق ما يصنع به، رقم (۱۰/۱۰۳٦) هم دغه شان اوگورئ: مجموع فتاوى شيخ الاسلام ابن تيمية ج ۱۲ ص ۲٦.

ابن تيميه رحمه الله د سيدنا عباس رضي الله عنه د اثر نه استدلال کوی، پس د هغوی نه د زمزم د اوبو په باره کښې منقول دی چه : ﴿لا احله لمغتسل، ولكن لشارب حل وبل﴾(۱)
يعنی زه دا د يو غسل کونکی دپاره جائز نه ګنړم، خو د څکلو دپاره حلال، مباح او شفاء ده.
جمهور د رسول الله ﷺ د واقعاتو نه استدلال کوی، پس د سيدنا علی رضي الله عنه حديث تير شوې دې. هم دغه شان په مسند حميدی کښې د سيدنا وائل بن حجر رضي الله عنه روايت دې:
﴿اتى النبى ﷺ بدلو من زمزم، فشرب، ثم توضاء ومضمض ثم مجه فى الدلو مسكا او اطيب من المسك، واستنثر خارجا من الدلو﴾(۲)
**يعنی** : رسول الله ﷺ ته د زمزم د اوبو يوه بوقه راوړلې شوه، رسول الله ﷺ د هغې نه څکل اوکړل، بيا ئې د هغې نه اودس اوکړو، او د خپلې خولې مبارکې اوبه ئې په هغې کښې واچولې، هغه د مشکو په شان يا د هغې نه هم زياتې خوشبوداري شوې، او د بوقې نه بهر ئې په پوزه کښې اوبه واچولې او ګزار ئې کړې.
هم دغه شان فاکهی رحمه الله په اخبار مکة کښې نقل کړې دی چه اهل مکة چه به کله مړی ته غسل ورکولو نو بيا به ئې د زمزم په اوبو سره دوباره غسل ورکولو. (۳)
سيده اسماء بنت ابی بکر رضي الله عنهما خپل ځوئی سيدنا عبد الله بن زبير رضي الله عنهما ته د زمزم په اوبو سره غسل ورکړې وو. (٤)
په مصنف ابن ابی شيبه کښې د سيدنا عبد الله بن عمر رضي الله عنهما نه يو اوږد حديث روايت دې، په هغې کښې دی:
﴿ثُمَّ أَمَرَ بِلَالًا، فَرَقِيَ عَلَى ظَهْرِ الْكَعْبَةِ، فَأَذَّنَ بِالصَّلَاةِ، وَقَامَ الْمُسْلِمُونَ فَتَجَرَّدُوا فِي الْأُزُرِ، وَأَخَذُوا الدِّلَاءَ، وَارْتَجَزُوا عَلَى زَمْزَمَ يَغْسِلُونَ الْكَعْبَةَ، ظَهْرَهَا وَبَطْنَهَا، فَلَمْ يَدَعُوا أَثَرًا مِنَ الْمُشْرِكِينَ إِلَّا مَحَوْهُ، أَوْ غَسَلُوهُ﴾ (۵)
**يعنی** : رسول الله ﷺ سيدنا بلال رضي الله عنه ته حکم ورکړو، هغه د کعبې چهت ته اوختلو او اذان ئې ورکړو. ټول مسلمانان صرف ازار تړلې، په باقی بدن باندې بربنډ حالت کښې په کار اخته شو، بوقه اخستلو سره ئې د زمزم نه اوبه راوړل شروع کړل، د زمزم نه به ئې اوبه راوړلو سره

۱ ) قوله حل وبل ... د حل معنی حلال او مباح ده او د لفظ بل په باره کښې وئيلې شوې دی چه دا لفظ د حل د تابع په طور استعمالولې شی، خو ائمه لغت په دې باندې اعتراض کړې دې چه د تابع په طور باندې استعماليدونکې الفاظ په واو عطف سره نه استعماليږی، لهذا وئيلې شی چه ﴿بل﴾ دقبيله حمير د لغت مطابق د مباح په معنی کښې دې، يا دا ﴿بل من مرضه وابل﴾ نه ماخوذ دې، چه هغې معنی د شفا موندلو ده. ګويا د ﴿بل﴾ معنی دلته شفاء ده. والله اعلم
اوګورئ: البداية والنهاية ج ۲ ص ۲۶۹. ذكر تجديد حفر زمزم. والنهاية ج ۱ ص ۱۵۸. مادة : بلل
۲) مسند الحميدی ج ۲ ص ۱۳۶. رقم ۹۱۰. حديث وائل بن حجر الحضرمی
۳) اخبار مكة للفاكهی ج ۲ ص ٤۸. ذكر غسل اهل مكة الموتی بماء زمزم لبركته وفضله رقم ۱۱۲۲.
٤) پورته حواله
۵) المصنف لابن ابی شيبة ج ۲۰ ص ٤۷۹، ٤۸۰. كتاب المغازی. حديث فتح مكة. رقم ۳۸۰۷٤

رجزيه اشعار وئيل، په هغه اوبو سره ئې كعبه شريفه دننه، بهر نه وينځله، د مشركانو ئې يو نخښه هم پرينښودله چه هغه ئې ختمه كړې يا وينځلې نه وى.
بعض حضرات دا وائى چه رسول الله ﷺ د زمزم اوبه ضرورة استعمال كړې وې او دا ضرورى نه ده چه كومې اوبه د ضرورت په وخت مباح وى هغه دې په غير ضرورت كښې هم مباح وى.
خو په دې خبره كښې څه خاص وزن نشته، ځكه چه دا زيات نه زيات مباركې اوبه دى او د مباركو اوبو په استعمال كښې څه باك نشته، اوګورئ! صحابه كرام رضي الله عنهم هغه اوبه كومې چه د رسول الله ﷺ د ګوتو مباركو نه وتلې هغه ئې هم استعمال كړې دى. (۱) او علماء كرامو تصريح كړې ده چه د ټولو نه افضل اوبه هغه دى كومې چه د رسول الله ﷺ د ګوتو د مينځ نه راوتلې دى تردې چه د زمزم د اوبو نه هم. (۲) د حافظ سيوطى رحمه الله شعر دې!

افضل المياه ماء قد نبع ۔۔۔ من اصابع النبى المتبع

يليه ماء زمزم فالكوثر ۔۔۔ فنيل مصر ثم باقى الانهر (۳)

**يعنى** : د ټولو نه غوره اوبه هغه دى كومې چه د نبى متبع ﷺ (چه د هغه اتباع كولې شى) د ګوتو مباركو نه راوتلې دى، د هغې نه روستو د زمزم، بيا د كوثر او بيا د نيل سيند اوبه دى، د هغې نه روستو د باقى دريابونو.
هر چه د ابن تيميه رحمه الله د استدلال تعلق دې، پس امام نووى رحمه الله خو فرمائى! ﴿ ولم يصح ما ذكروه عن العباس، بل حكى عن ابيه عبد المطلب، ولو ثبت عن العباس لم يجز ترك النصوص به ﴾ (٤)
يعنى فقهاء كرام چه دا د سيدنا عباس رضي الله عنه اثر ﴿ لا احله لمغتسل، وهو لشارب حل وبل ﴾ نقل كوى. دا د هغوى نه ثابت نه دې. بلكه د هغوى د والد محترم قول دې او كه د عباس رضي الله عنه نه ثابت هم شى نو د دې اثر په وجه باندې به د نصوص پريښودل صحيح نه وى.
خو حقيقت دا دې چه دا قول نه صرف د عبدالمطلب دې، بلكه د سيدنا عباس او ابن عباس رضي الله عنهم نه هم ثابت دې، لكه چه حافظ ابن كثير رحمه الله د دې تصريح فرمائيلې ده. (۵)

---

۱) پس د سيدنا انس رضي الله عنه نه روايت دې : ﴿ رَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- وَحَانَتْ صَلاَةُ الْعَصْرِ فَالْتَمَسَ النَّاسُ وَضُوءًا فَلَمْ يَجِدُوهُ فَأُتِىَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- بِوَضُوءٍ فِى إِنَاءٍ فَوَضَعَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- فِى ذَلِكَ الإِنَاءِ يَدَهُ ثُمَّ أَمَرَ النَّاسَ يَتَوَضَّئُونَ مِنْهُ - قَالَ أَنَسٌ - فَرَأَيْتُ الْمَاءَ يَنْبُعُ مِنْ تَحْتِ أَصَابِعِهِ فَتَوَضَّأَ النَّاسُ حَتَّى تَوَضَّئُوا مِنْ عِنْدِ آخِرِهِمْ ﴾ موطاء امام مالک ج ۱ ص ۷۱، كتاب الطهارة، باب جامع الوضوء، رقم ۶۸
۲) قال القسطلانى والزرقانى رحمهما الله : وهو اشرف المياه على الاطلاق، كما قاله البلقينى وغيره، شرح الزرقانى على المواهب اللدنية ج ۷ ص ۳، معجزة نبع الماء الطهور من بين اصابعه.
۳) اوګورئ : شرح الزرقانى على المواهب اللدنية ج ۷ ص ۳
٤) المجموع شرح المذهب ج ۱ ص ۹۱
۵) اوګورئ : البداية والنهاية ج ۲ ص ۲۶۹، ذكر تجديد حفر زمزم.

اصل كښې كله چه عبدالمطلب د زمزم كوهى كنستلو سره تجديد اوكړو نو هغه هلته يو حوض تيار كړو، په هغې كښې به پلار او ځوئى يو ځائې كيدو سره د زمزم نه اوبه راويستلې، حاجيانو به ترې اوبه څكلې، خو د شپې به د قريشو بعض حاسدانو هغه ماتولو، سحر به بيا عبدالمطلب هغه برابرولو، چه كله دا سلسله اوږده شوه نو عبدالمطلب دعا اوكړه، په خوب كښې ورته تلقين اوشو چه دا دعا اوكړه ﴿ اللهم انى لا احلها لمغتسل، ولكن هى لشارب حل وبل ﴾ يعنى زه په دې باندې چاته د غسل كولو اجازت نه وركوم، خو د څكلو والا دپاره حلال او مباح دى.(۱)

د عبدالمطلب نه روستو دا ذمه دارى د څه مودې دپاره ابو طالب سره وه. بيا داسې اوشوه چه ابو طالب يو كال په معاشى تنګسيا كښې واقع شو، هغوى د خپل رور سيدنا عباس رضي الله عنه نه د راروان د حج موسم پورې د لس زره درهم قرض واخستلو، خو چه كله راروان كال راغلو نو د ابو طالب سره هيڅ نه وو، هغوى بيا د سيدنا عباس رضي الله عنه نه د څوارلس زره قرض مطالبه اوكړه. هغوى اووې چه په دې شرط سره ئې دركوم چه كه په بل كال كښې دې ادا نه كړې شو نو د سقايه خدمت به ماته مستقلا راسپارې، چه كله بل كال راغلو نو د ابو طالب سره هيڅ نه وو، پس هغوى د سقايه خدمت سيدنا عباس رضي الله عنه ته اوسپارلو، د عباس رضي الله عنه نه پس دا خدمت سيدنا ابن عباس رضي الله عنهما ته ملاؤشو، چه كله د عبدالمطلب نه پس د عباس او ابن عباس رضي الله عنهما دور راغلو نو هغوى هم په خپله زمانه كښې د عبدالمطلب شرط دوباره اولګولو. (۲)

خاص طور سيدنا عباس او ابن عباس رضي الله عنهما چه كوم شرط لګولې وو هغه د دې وجې نه هم وو چه هلته د عورت د ښكاره كيدلو ارتكاب كيدلو او خلقو هلته په بربنډه باندې غسل كولو، د هغه خرابئ د لرې كولو دپاره هغوى هلته د غسل نه منع اوفرمائيله. (۳)

هم دغه شان دا هم ممكنه ده چه هغوى د مسجد د حرمت د وجې نه د غسل نه منع فرمائيلې وى. لكه چه د ابن ابى شيبه په روايت كښې دى : ﴿ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: لَا أُحِلُّهَا لِمُغْتَسِلٍ يَغْتَسِلُ فِي الْمَسْجِدِ، وَهِيَ لِشَارِبٍ وَمُتَوَضِّئٍ حِلٌّ وَبِلٌّ ﴾ (٤) يعنى زه د يو داسې غسل كونكى دپاره چه په مسجد كښې په زمزم سره غسل كوى حلال نه ګڼړم، خو د څكلو والا دپاره او د اودس كونكى دپاره اجازت دى.

**قوله: ثُمَّ أُقِيمَتِ الصَّلَاةُ فَصَلَّى الْمَغْرِبَ:** بيا د ماښام د مونځ اقامت اوكړې شو او د ماښام

۱) اخبار مكة للازرقى ج ۱ ص ٥٥٠. ما جاء فى حفر عبدالمطلب بن هاشم زمزم.

۲) اوګورئ: البداية والنهاية ج ۲ ص ۲٦٩، ذكر تجديد حفر زمزم.

۳) اخبار مكة كښې په طريق د سفيان، زر بن حبيش رحمه الله فرمائى : ﴿ رأيت عباس بن عبد المطلب فى المسجد الحرام، وهو يطوف حول زمزم يقول: لا أحلها لمغتسل وهى لمتوضئ وشارب حل وبل. قال سفيان: يعنى لمغتسل فيها، وذلک أنه وجد رجلا من بنى مخزوم، وقد نزع ثيابه، وقام يغتسل من حوضها عريانا ﴾ اخبار مكة للازرقى ج ۱ ص ٥٧٥. باب ما جاء فى تحريم العباس زمزم للمغتسل فيها.

٤) المصنف لابن ابى شيبة ج ۱ ص ۳٦۳ كتاب الطهارة. باب فى الوضوء فى المسجد. رقم ۳۸۷.

مونځ ني ادا كړو.

**قوله: ثُمَّ أَنَاخَ كُلُّ إِنْسَانٍ بَعِيرَهُ فِي مَنْزِلِهِ:** بيا هر سړي په خپل خپل ځائې باندې اوښ کينولو.

علامه خطابى رحمه الله د دې نه په دې خبره باندې استدلال کړې دې چه کوم دوه مونځونه جمع کيږى چه د هغې ترمينځه په څه معمولى عمل سره خلل واقع شى نو دا د جمع دپاره مانع نه دې، په دې شرط چه د دواړو مونځونو ترمينځه کلام بيا نه موندلې شى. (۱)

خو علامه کرمانى رحمه الله په دې باندې دا اعتراض کړې دې چه په دې کښې هيڅ فرق نشته چه فصل يسير به مانع نه وى او فصل کثير به مانع وى، بلکه مطلقا فصل مانع جمع نه دې. هم دغه شان هغه فرمائى چه د عدم کلام چه ئې کوم شرط لګولې دې هغه هم معتبر نه دې. (۲)

د علامه کرمانى رحمه الله خبره د کلام په سلسله کښې خو صحيح کيدې شى چه په عدم کلام باندې څه دليل نشته.

خو د فصل يسير وکثير د فرق قيد په دې خبره مبنى کيدې شى چه د اوښانو چو کول څه اوږد کار نه دې بلکه هر سړې په يو منټ کښې خپل اوښ کينولې او پاسولې شى، کيدې شى چه امام خطابى رحمه الله هم د دې معمولى عمل نه د عدم کلام استنباط هم کړې وى.

**فصل بين الصلاتين المجموعتين قاطع جمع دې يا نه دې؟:** کوم دوه مونځونه چه جمع کولې شى د هغې ترمينځه فصل قاطع دې يا نه دې؟ په دې کښې اختلاف دې. احناف مطلقا قاطع منى، صاحب هدايه فرمائى : ﴿ ولا يتطوع بين الصلاتين تحصيلا لمقصود الوقوف ولهذا قدم العصر على وقته فلو أنه فعل فعل مكروها وأعاد الأذان للعصر في ظاهر الرواية خلافا لما روى عن محمد رحمه الله لأن الاشتغال بالتطوع أو بعمل آخر يقطع فور الأذان الأول فيعيده للعصر ﴾ (۳)

يعنى د دوه مونځونو (په عرفات کښې د ماسپخين او مازيګر) ترمينځه به هيڅ قسم نفل نه شى کولې، چه د وقوف مقصد حاصل شى، هم په دې وجه باندې عصر د خپل وخت نه مقدم کړې شوې دې، که څوک د دوه مونځونو ترمينځه نفل مونځ اوکړى نو هغه د مکروه ارتکاب اوکړو. اوس د ظاهر الرواية مطابق به د عصر دپاره د مستقل اذان اعاده کوى، د امام محمد رحمه الله په دې باندې اختلاف دې، اعاده د اذان د وجې نه دا ده چه تطوع يا په بل څه عمل کښې مشغوليت د اول اذان د اتصال د پاره قاطع دې، په دې وجه د مازيګر دپاره مستقل اذن دې.

هم دغه شان فرمائى : ﴿ ولا يتطوع بينهما لأنه يخل بالجمع ولو تطوع أو تشاغل بشيء أعاد الإقامة لوقوع الفصل وكان ينبغي أن يعيد الأذان كما في الجمع الأول بعرفة إلا أنا اكتفينا بإعادة الإقامة لما روى أن النبي

---

۱) اعلام الحديث ج ۱ ص ۲۳۵، باب اسباغ الوضوء
۲) شرح الكرمانى ج ۲ ص ۱۷۹
۳) الهداية ج ۲ ص ۱۹٤، كتاب الحج، باب الاحرام

عليه الصلاة والسلام صلى المغرب بمزدلفة ثم تعشى ثم أفرد الإقامة للعشاء ﴾ (١)

**يعنى**: د دوارو مونځونو (ماښام او ماسخوتن) ترمينځه دې نفل نه كوى، ځكه چه دا د جمع دپاره مخل دي، كه نفل مونځ ئې اوكړو يا ئې په يو څيز كښې مشغوليت اختيار كړو نو اوس چونكه فصل واقع شوې دې، لهٰذا د اقامت اعاده دې اوكړى، هسې كيدل خو داسې پكار وو چه څنګه په عرفات كښې د فصل د وجې نه د اذان اعاده كيږى هغه شان دلته هم اعاده كيدې، خو د ذكر شوې روايت مطابق صرف د اقامت په اعاده باندې اكتفاء اوكړې شوه.

مالكيان فصل مانع نه ګڼرى، خو مكروه ورته وائى، پس علامه دردير مالكى رحمه الله فرمائى:

﴿ ولا تنفل بينهما) أى يمنع بمعنى يكره فيما يظهر إذ لا وجه للحرمة قاله شيخنا، وكذا كل جمع يمنع فيه التنفل بين الصلاتين (ولم يمنعه) أى أن التنفل إن وقع لا يمنع الجمع ﴾ (٢)

يعنى د دوارو مونځونو ترمينځه به په نفل سره فصل نه شى كولې. يعنى داسې طريقې سره د فصل كولو نه به منع كولې شى، ظاهرا د دې مطلب دا دې چه فصل كول مكروه دى، ځكه چه د حرمت څه وجه نشته، لكه زمونږ شيخ فرمائى. هم دغه شان د هر جمع بين الصلاتين په موقع باندې فصل كولو ممنوع خو دى، خو مانع عن الجمع نه دى، يعنى كه څوك نفل اوكړى نو جمع بين الصلاتين نه باطل كيږى.

علامه حطاب رعينى مالكى رحمه الله فرمائى: ﴿ قال فى الذخيرة: قال مالك: ولا يتنفل بين المغرب والعشاء ليلة الجمع، ......وإذا قلنا لا يتنفل فتنفل فلا يمنع ذلك الجمع ﴾ (٣)

يعنى امام مالك رحمه الله فرمائى: د مزدلفې په شپه كښې به د ماښام او ماسخوتن ترمينځه نفل نه وى او كه څوك نفل اوكړى نو دا د جمع بين الصلاتين دپاره مانع نه دې.

شوافع او حنابله د جمع تاخير په صورت كښې (لكه چه په مزدلفه كښې د ماښام او ماسخوتن ترمينځه جمع تاخير وى)، فصل لره قاطع نه منى. خو د جمع تقديم په صورت كښې د شوافعو په نزد دواړه اقوال دى، خو د هغوى په نزد راجحه هم دا ده چه فصل طويل قاطع او مانع دې، د فصل يسير اعتبار نشته، بيا ئې د فصل يسير په مقدار كښې هم دوه اقوال دى، يو دا چه د اقامت په اندازه فصل يسير دې او دويم قول كوم چه راجح دې هغه دا دې چه د دې بنياد په عرف باندې دې. دحنابله په نزد هم د جمع تقديم په صورت كښې فصل طويل مانع دې اوفصل يسير معاف دې، دفصل طويل اويسير ترمينځه فرق په عرف باندې مبنى دې.(٤)

---

١) الهداية ج ٢ ص ٢٠٢، كتاب الحج، باب الاحرام، ثم هذا الحديث المذكور قال الزيلعى عنه: غريب ... وهو فى البخارى عن ابن مسعود، فذكره. انظر النصب الراية ج ٣ ص ٧٠، كتاب الحج باب الاحرام، رقم ٤٢٦٣، ٤٢٦٤

٢) الشرح الكبير لدردير مع حاشية الدسوقى ج ١ ص ٥٨٩، باب الصلاة، فصل فى احكام صلاة السفر

٣) مواهب الجليل ج ٢ ص ٥١٦، كتاب الصلاة، فصل فى صلاة السفر.

٤) اوګورئ: المجموع شرح المهذب ج ٤ ص ٣٧٥، كتاب الصلاة، باب صلاة المسافر، فرع فى مذاهب العلماء فى الجمع فى السفر، والمغنى لابن قدامة ج ٢ ص ٦٠، ٦١

**قوله:** ثُمَّ أُقِيمَتُ الْعِشَاءُ فَصَلَّى وَلَمْ يُصَلِّ بَيْنَهُمَا : بيا د ماسخوتن د مانخه دپاره اقامت اوكړې شو، رسول الله ﷺ د ماسخوتن مونځ اوكړو، د ماسخوتن او د ماښام ترمينځه ئې بل يو مونځ هم اونكړو.
شاته د مذاهب د تفصيل نه به تاسوښه پوهه شوي يئ چه د صلاتين مجموعتين ترمينځه نقل كول د چا په نزد هم صحيح نه دی.

******

## ⑦ باب: غَسْلِ الْوَجْهِ بِالْيَدَيْنِ مِنْ غَرْفَةٍ وَاحِدَةٍ

**د سابقه باب سره مناسبت :** علامه عينی رحمه الله فرمائی چه په مخكښې باب كښې د رسول الله ﷺ د اودس وصف ذكر شوې وو، په دې باب كښې هم دي چه ابن عباس رضي الله عنهما اودس اوكړو او وې فرمائيل : ﴿ هَكَذَا رَأَيْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَتَوَضَّأُ ﴾ يعنى ما رسول الله ﷺ هم دغه شان په اودس كولو باندې ليدلې دې. گويا په دې باب كښې هم د رسول الله ﷺ د اودس كيفيت بيان كړې شوې دې. (١)
شيخ الحديث رحمه الله فرمائی چه زما په نزد دا باب، د مخكښې باب تكمله ده، ځكه چه په مخكښې باب كښې د اسباغ الوضوء ذكر وو او په دې باب كښې دا بيان كړې شوې دی چه د اسباغ وضوء دپاره د استعانت باليدين ضرورت دې. (٢)
**د ترجمة الباب مقصد :** حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه د امام بخاری رحمه الله مقصد په دې خبره باندې تنبيه كول دی چه اغتراف باليدين شرط نه دې، هم دغه شان د حديث ﴿ ان رسول الله صلى الله عليه وسلم كان يغسل وجهه بيمينه ﴾(٣) د ضعف طرف ته اشاره ده. (٤)
علامه حليمی رحمه الله د دې دواړو روايتونو مطابق تطبيق كړې دې چه د اودس په وخت په لاس كښې د اوبه اخستلو دوه صورتونه وی، يو صورت خو دا دې چه لاس په لوښې كښې غوپه كړې شی او لپه ترې ډكه كړې شی او دويم صورت دا دې چه د لوټې وغيره نه په لاس كښې اوبه اچولو سره اوكړې شی. په كوم روايت كښې چه ﴿ غسل الوجه باليمين ﴾ راغلې دې د هغې تعلق د دې صورت ثانيه سره دې. يعنی رسول الله ﷺ چه به كله په لوټې وغيره سره اودس كولو نو صرف يمين به ئې استعمالولو او په كوم روايت كښې چه د دواړو لاسونو د

---

١) عمدة القاری ج ٢ ص ٢٦٢
٢) الكنز المتواری ج ٣ ص ١٦
٣) اخرجه ابوداؤد فی كتاب المراسيل ص ١١١، رقم ٦ : ﴿ قال حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عُثْمَانَ الدِّمَشْقِيُّ أَبُو الْجَمَاهِرِ ، أَنَّ سُلَيْمَانَ بْنَ بلال حَدَّثَهُمْ ، حَدَّثَنِي شَرِيكُ بْنُ أَبِي نَمِرٍ ، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ ، أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى الله عليه وسلم : كَانَ يَغْسِلُ وَجْهَهُ بِيَمِينِهِ ﴾ وروى ايضاً عن عطاء بن يسار مرسلاً. انظر كنز العمال ج ٩ ص ٤٥٧، رقم ٢٦٩٥٠.
٤) فتح البارى ج ١ ص ٢٤١

استعمال ذكر دې د هغې تعلق د صورت اولى يعنى اغتراف من الاناء سره دې، يعنى كله چه به رسول الله ﷺ لاس داخلولو سره اوبه اخستلې او اودس به ئې كولو هغه وخت به ئې په دواړو لاسونو سره مخ مبارك وينځلو. (۱)

خو حافظ رحمه الله دې جمع او تطبيق ته بعيد وئيلې دى، ځكه چه د حديث سياق دا بيانوى چه رسول الله ﷺ په يو لاس سره اوبه واخستلې او بل لاس ئې ورسره يو ځائې كړو او مخ مبارك ئې وينځلو. (۲)

حضرت گنگوهى رحمه الله فرمائى چه د ترجمة الباب مقصد دا دې چه اوبه په يوې لپې سره واخستې شى د دې نه زياتې نه، بيا دې په دواړو لاسونو سره مخ وينځلې شى، چه اوبه ضائع نه شى او په دې وجه د يو لاس په مقابله كښې په دوه لاسونو سره وينځل زيات اسان دى (۳)

د حضرت گنگوهى رحمه الله د دې توجيه اختيارولو په صورت كښې نه خو اعتراض لازميږى كوم چه حافظ رحمه الله په حليمى رحمه الله كړې دې او نه په دواړو روايتونو كښې تعارض لازميږى، ځكه چه رسول الله ﷺ چه كله په ښى لاس سره مخ مبارك وينځلو نو غسل باليمين بيا موندلې شو، هر چه د گس لاس تعلق دې نو هغه د يمين دپاره د اوبو د حفاظت او د اسباغ على الوجه دپاره معين دې. (٤) والله اعلم

۱۴۰: ﴿حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحِيمِ قَالَ أَخْبَرَنَا أَبُو سَلَمَةَ الْخُزَاعِيُّ مَنْصُورُ بْنُ سَلَمَةَ قَالَ أَخْبَرَنَا ابْنُ بِلَالٍ يَعْنِي سُلَيْمَانَ عَنْ زَيْدِ بْنِ أَسْلَمَ عَنْ عَطَاءِ بْنِ يَسَارٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ (۵) أَنَّهُ تَوَضَّأَ فَغَسَلَ وَجْهَهُ أَخَذَ غَرْفَةً مِنْ مَاءٍ فَمَضْمَضَ بِهَا وَاسْتَنْشَقَ ثُمَّ أَخَذَ غَرْفَةً مِنْ مَاءٍ فَجَعَلَ بِهَا هَكَذَا أَضَافَهَا إِلَى يَدِهِ الْأُخْرَى فَغَسَلَ بِهِمَا وَجْهَهُ ثُمَّ أَخَذَ غَرْفَةً مِنْ مَاءٍ فَغَسَلَ بِهَا يَدَهُ الْيُمْنَى ثُمَّ أَخَذَ غَرْفَةً مِنْ مَاءٍ فَغَسَلَ بِهَا يَدَهُ الْيُسْرَى ثُمَّ مَسَحَ بِرَأْسِهِ ثُمَّ أَخَذَ غَرْفَةً مِنْ مَاءٍ فَرَشَّ عَلَى رِجْلِهِ الْيُمْنَى حَتَّى غَسَلَهَا ثُمَّ أَخَذَ غَرْفَةً أُخْرَى فَغَسَلَ بِهَا رِجْلَهُ يَعْنِي الْيُسْرَى ثُمَّ قَالَ هَكَذَا رَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَتَوَضَّأُ﴾

---

۱) پورته حواله

۲) پورته حواله

۳) لامع الدرارى مع كنز المتوارى ج ۳ ص ۱۵

٤) الكنز المتوارى فى معادن لامع الدرارى ج ۳ ص ۱۵، ۱۶

۵) قوله : عن ابن عباس الحديث اخرجه ابوداؤد فى سننه، فى كتاب الطهارة، باب الوضوء مرتين، رقم ۱۳۷، وباب الوضوء مرة مرة، رقم ۱۳۸، والنسائى فى سننه فى كتاب الطهارة، باب مسح الاذنين، رقم ۱۰۱، وباب مسح الاذنين مع الراس، وما يستدل به على انهما من الراس، رقم ۱۰۲، وابن ماجه فى سننه فى كتاب الطهارة، باب المضمضة والاستنشاق من كف واحد، رقم ٤۰۳، وباب ما جاء فى الوضوء مرة مرة، رقم ٤۱۱.

## رجال الحديث

① **محمد بن عبدالرحيم** : دا ابو يحيى محمد بن عبدالرحيم بن ابى زهير قرشى عدوى بغدادى رحمه الله دي. د بزازى د كسب د وجې نه ورته بزاز وئيلې شى، د هغوى لقب صاعقة دي.(١)

هغه د ابو احمد الزبيرى، يونس بن محمد المؤدب، يزيد بن هارون، شبابه بن سوار، روح بن عباد، معلى بن منصور او ابو النضر رحمه الله وغيره حضراتو نه روايت كوى.

د هغوى نه په روايت كونكو كښې امام بخارى، امام ابوداؤد، امام ترمذى، امام نسائى، ابوبكر بن ابى داؤد، يحيى بن صاعد او قاضى ابو عبدالله محاملى رحمهم الله وغيره نه علاوه ډير محدثين دى. (٢)

امام احمد، امام نسائى او ابو العباس السراج رحمهم الله فرمائى : ﴿ثقة﴾(٣)

ابن صاعد رحمه الله فرمائى : ﴿حدثنا ابويحيى الثقة الامين﴾(٤)

نصر بن احمد الكندى رحمه الله فرمائى : ﴿كان من اصحاب الحديث المامونين﴾(٥)

خطيب بغدادى رحمه الله فرمائى : ﴿وكان متقنا، ضابطا، عالما، حافظا﴾(٦)

امام ابن حبان رحمه الله هغه لره په كتاب الثقات كښې ذكر كړې دې او فرمائى : وكان صاحب حديث يحفظ﴾(٧)

حافظ مزى رحمه الله فرمائى : ﴿وكان احد الحفاظ المتقنين﴾(٨)

حافظ ذهبى رحمه الله فرمائى : ﴿الامام الحافظ المتقن﴾(٩)

امام دارقطنى رحمه الله فرمائى : ﴿حافظ ثبت﴾(١٠)

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى : ﴿ثقة حافظ﴾(١١)

---

١) اوګورئ : تهذيب الكمال ج ٢٦ ص ٥، رقم ٥٤١٧
٢) د شيوخ او تلامذه دپاره اوګورئ : تهذيب الكمال ج ٢٦ ص ٥، ٦
٣) تاريخ بغداد ج ٣ ص ١٦٧، رقم ١١٨٩
٤) پورته حواله
٥) پورته حواله
٦) تاريخ بغداد ج ٣ ص ١٦٦، رقم ١١٨٩
٧) كتاب الثقات لابن حبان ج ٩ ص ١٣٢
٨) تهذيب الكمال ج ٢٦ ص ٥
٩) سير اعلام النبلاء ج ١٢ ص ٢٩٥
١٠) تهذيب التهذيب ج ٩ ص ٣١٢
١١) تقريب التهذيب ص ٤٩٣، رقم ٦٠٩١

په ۱۸۵ هجری کښې پیدا شوې دې او په ۲۵۵ هجری کښې وفات شوې دې. (۱) رحمه الله تعالى رحمة واسعة.

⑫ **ابو سلمه الخزاعي منصور بن سلمه** : دا ابو سلمه منصور بن سلمه بن عبدالعزيز بن صالح الخزاعی البغدادی رحمه الله دې. (۲)

هغه د عبد العزيز بن ابى سلمه، حماد بن سلمه، مالك بن انس، ليث بن سعد، قاضى شريك، سليمان بن بلال او هشيم رحمهم الله وغيره نه روايت كوى.

د هغوى نه په روايت كونكو كښې امام احمد، محمد بن عبدالرحيم صاعقه، ابوبكر بن الصاغانى، عباس دورى، ابواميه طرسوى او احمد بى ابى خيثمه رحمهم الله نه علاوه نور هم ډير حضرات دى. (۳) امام احمد بن حنبل رحمه الله فرمائى : **(ابوسلمة الخزاعي من متثبتي بغداد)**(٤)

يعنى ابو سلمه الخزاعى رحمه الله د بغداد په مضبوطو خلقو كښې دې.

امام يحيى بن معين رحمه الله فرمائى : **(ثقة)**(۵)

امام دار قطنى رحمه الله فرمائى : **(احد الثقات الحفاظ الرفعاء الذين كانوا يسئلون عن الرجال، ويؤخذ بقوله فيهم، اخذ عنه احمد بن حنبل ويحيى بن معين وغيرهما علم ذلك)**(٦)

يعنى هغه د اوچتې درجې ثقه او حفاظو نه دې، د چا نه به چه د راويانو په باره كښې تپوس كيدلې شو او د راويانو په باره كښې د هغوى قول معتبر منلې شى، امام احمد بن حنبل او امام يحيى بن معين رحمهما الله دا فن د هغوى نه حاصل كړې وو.

امام ابن سعد رحمه الله فرمائى : **(وكان ثقة)**(۷)

حافظ ذهبى رحمه الله فرمائى : **(الحافظ الناقد الحجة)**(۸)

هم دغه شان هغه فرمائى : **(وكان من ائمة هذا الشان، بصيرا بالرجال والعلل)**(۹)

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى : **(ثقة، ثبت، حافظ)**(۱۰)

---

۱) تهذيب الكمال ج ۲۶ ص ۸
۲) تهذيب الكمال ج ۲۸ ص ۵۳۰
۳) د شيوخ او تلامذه د پاره اوګورئ : تهذيب الكمال ج ۲۸ ص ۵۳۰، ۵۳۱
٤) الجرح والتعديل لابن ابى حاتم ج ۸ ص ۲۰۰، رقم ۱٤۰۷۰/۸۶۳
۵) تاريخ بغداد ج ۱۳ ص ۷۱، رقم ۷۰۵۱
٦) تاريخ بغداد ج ۱۳ ص ۷۲، رقم ۷۰۵۱
۷) الطبقات لابن سعد ج ۷ ص ۳٤۵
۸) سير اعلام النبلاء ج ۹ ص ۵۶۰
۹) سير اعلام النبلاء ج ۹ ص ۵۶۱
۱۰) تقريب التهذيب ص ۵۷۶، رقم ۶۹۰۱

امام ابن حبان رحمه الله هغه په كتاب الثقات كښې ذكر كړې دې. (١)

د صحيح قول مطابق په ٢١٠ هجرى كښې هغه وفات شوې دې. (٢) رحمه الله تعالى رحمة واسعة.

④ **ابن بلال (سليمان بن بلال)** : دا سليمان بن بلال تيمي قرشي رحمه الله دې. د هغوى حالات په كتاب العلم كښې د باب طرح الامام المسالة على صاحبه ليختبر ما عندهم من العلم ... د لاندې تير شوي دى. (٣)

⑤ **زيد بن اسلم** : دا زيد بن اسلم قرشي عدوى مدني رحمه الله دې. د هغوى حالات په كتاب الايمان باب كفران العشير وكفر دون كفر د لاندې تير شوي دى. (٤)

⑥ **عطاء بن يسار** : دا ابو محمد عطاء بن يسار هلالي مدني رحمه الله دې، د هغوى حالات هم په كتاب الايمان، باب كفران العشير وكفر دون كفر د لاندې تير شوي دى. (٥)

⑦ **ابن عباس رضي الله عنهما** : دا ترجمان القران سيدنا عبدالله بن عباس رضي الله عنهما دې، د هغوى حالات په بدء الوحى كښې د څلورم حديث د لاندې او په كتاب الايمان كښې د باب كفران العشير وكفر دون كفر د لاندې تير شوي دى. (٦)

**قوله: أَنَّهُ تَوَضَّأَ فَغَسَلَ وَجْهَهُ أَخَذَ غَرْفَةً مِنْ مَاءٍ فَمَضْمَضَ بِهَا وَاسْتَنْشَقَ** : سيدنا ابن عباس رضي الله عنهما اودس كولو سره مخ مبارك وينځلو ، يوه لپه اوبه ئې واخستلې، په هغې سره ئې خوله كنګال كړه او په پوزه كښې ئې اوبه واچولې.

وړاندې د مضمضه په باره كښې مستقل باب راروان دې، په هغې باندې به كلام انشاء الله هم هلته كيږي.

**قوله: ثُمَّ أَخَذَ غَرْفَةً مِنْ مَاءٍ فَجَعَلَ بِهَا هَكَذَا أَضَافَهَا إِلَى يَدِهِ الْأُخْرَى فَغَسَلَ بِهَا وَجْهَهُ** : بيا ئې د اوبو يوه لپه واخستله او هغه ئې داسې كړه، هغې سره ئې بل لاس يو ځائې كړو او په دواړو لاسونو سره ئې خپل مخ وينځلو.

دا مقصود بالترجمه دې، يعنې په يو لاس سره ئې اوبه واخستلې او دويم لاس ئې د هغې سره يو ځائې كړو او مخ ئې وينځلو.

**قوله: ثُمَّ أَخَذَ غَرْفَةً مِنْ مَاءٍ فَغَسَلَ بِهَا يَدَهُ الْيُمْنَى ثُمَّ أَخَذَ غَرْفَةً مِنْ مَاءٍ فَغَسَلَ بِهَا يَدَهُ الْيُسْرَى** : بيا ئې يو لپه اوبه واخستلې په هغې سره ئې خپل ښې لاس وينځلو ، بيا

---

١) الثقات لابن حبان ج ٩ ص ١٧٢
٢) تقريب التهذيب ص ٥٧٦، رقم ٦٩٠١
٣) كشف البارى ج ٣ ص ١٣٧
٤) كشف البارى ج ٢ ص ٢٠٣
٥) كشف البارى ج ٢ ص ٢٠٤
٦) كشف البارى ج ١ ص ٤٣٥، و ج ٢ ص ٢٠٥

ئې يوه لپه اوبه واخستلې او په هغې سره ئې ګس لاس وينځلو.

**قوله:** ثُمَّ مَسَحَ بِرَأْسِهِ: بيا ئې په خپل سر باندې مسح اوکړه.

د دې نه بعض علماء کرامو په دې خبره استدلال کړې دې چه د سر د مسح دپاره په لاس کښې چه کومه تری ده هم هغه کافي ده، د مستقل اوبو اخستلو ضرورت نشته، ځکه چه په هغې کښې د نوې اوبو اخستلو ضرورت نشته.

خو په دې روايت سره په دې باندې استدلال بعيد دې ځکه چه هم دا روايت په سنن ابی داؤد کښې راغلې دې، په هغې کښې د ماء جديد د اخستلو ذکر دې: ﴿ثُمَّ قَبَضَ قَبْضَةً مِنَ الْمَاءِ، ثُمَّ نَفَضَ يَدَهُ، ثُمَّ مَسَحَ بِهَا رَأْسَهُ وَأُذُنَيْهِ﴾(١) يعنى اوبه ئې واخستلې په لاس ئې اوشيندلې او بيا ئې په هغې سره د سر او غوږونو مسح اوکړه.

د دې نه معلومه شوه چه ابن عباس رضي الله عنه د سر د مسح دپاره مستقل اوبه اخستلې وې.

**ايا د سر د مسح دپاره نوې اوبه اخستل ضروري دي؟:** خو دا مسئله مختلف فيه ده چه د سر د مسح دپاره نوې اوبه اخستل ضروري دي يا نه دي؟

مالکيان، شوافع او حنابله رحمهم الله وائي چه د سر د مسح دپاره د نوې اوبو اخستل ضروري دي، د لاس په تر والي سره به مسح نه کيږي. (٢)

او احناف فرمائي چه د ماء جديد اخستل مستحب دي ضروري نه دي، پس که د لاسونو په لوندوالي سره ئې مسح اوکړه نو مسح به اوشي. (٣)

جمهور علماء کرام فرمائي چه په مسلم شريف کښې د عبدالله بن زيد بن عاصم رضي الله عنه په روايت کښې راغلې دي ﴿ومسح برأسه بماء غير فضل يده﴾(٤) يعنى رسول الله ﷺ د خپل سر مسح د لاس نه بچ شوې اوبو لره پريخودلو سره په نورو باندې اوکړه.

---

١) سنن ابى داؤد، كتاب الطهارة، باب الوضوء مرتين رقم ١٣٧

٢) قال الشافعي رحمه الله تعالى: ويأخذ لكل عضو منه ماء غير الماء الذى اخذ للاخر، ولو مسح راسه بفضل بلل وضوء يديه او مسح راسه ببلل لحيته لم يجزئه، ولا يجزئه الا ماء جديد. كتاب الام ج ٢ ص ١٠١، كتاب الطهارة، باب النية فى الوضوء. وقال ابن قدامة :ولان البلل الباقى فى يده مستعمل، فلا يجزئ المسح به، المغنى ج ١ ص ٨٩ وقال فى مواهب الجليل : وسئل مالک عن مسح راسه بفضل ذراعيه قال : لا احب ذلک ... قال ابن رشد : اما مسح راسه بفضل ذراعيه فلا يجوز. وليس فى قول مالک لا احب ذلک دليل على الاجزاء، لانه يقول : لا احب فما لا يجوز عنه بوجه، لان العلماء يكرهون ان يقولوا! هذا حلال وهذا حرام، فيما طريقه الاجتهاد، ويكتفون بقولهم : اكرهه، ولا احبه، ولا باس به وما اشبه هذه الالفاظ، فيكتفى بذلک عن قولهم .. (ج ١ ص ٣٣٠) كتاب الطهارة، فصل فى فرائض الوضوء.

٣) قال فى الدر المختار مع تنوير الابصار فى سياق المكروهات الوضوء، وتثليث المسح بماء جديد، اما بماء واحد فمندوب او مسنون ... ج ١ ص ٩٨. وقال الحلبى فى شرح المنية : ولو توضاء ومسح ببلة بقيت على كفيه بعد الغسل يجوز مسحه. ص ١١٠.

٤) صحيح مسلم ، كتاب الطهارة، باب آخر فى صفة الوضوء، رقم (٥٥٩).

احناف فرمائی چه هم دا حدیث: ﴿ ابن لهيعة عن حبان بن واسع عن ابيه عن عبدالله بن زيد ﴾ په طریق سره نقل دې په هغې کښ دی!

﴿ ان النبى صلى الله عليه وسلم توضاء، وانه مسح راسه بما غبر فضل يديه ﴾(۱)

یعنی. رسول اللهﷺ اودس اوکړو او په باقی اوبو کومې چه د لاسونو د تر والی په صورت کښ وې په هغې باندې ئې د سر مسح اوکړه.

اولنې روایت کوم چه د عمرو بن الحارث عن حبان په طریق سره روایت شوې دې هغه سندا زیات قوی دې، هم دغه شان په دې وجه باندې هم هغې کښ قوت زیات دې چه د عبدالله بن زیدﷺ په روایت کښ هم د رسول اللهﷺ د سر د مسح دپاره د نوې اوبو اخستلو صراحت دې. (۲)

دویم روایت چه د کوم نه احناف استدلال کوی اگر چه د عمرو بن الحارث والا روایت په مقابله کښ ضعیف دې، خو د هغې شواهد موجود دی.

پس په سنن ابی داؤد کښ ﴿عن ابن عقيل عن الربيع﴾ په طریق سره مروی دې، ﴿ ان النبىﷺ مسح براسه من فضل ماء كان فى يده ﴾(۳)

هم دغه شان په دارقطنی کښ هم دې طریق سره روایت راغلې دې، چه د هغې الفاظ داسې دی: ﴿ أَنَّ النَّبِيَّ صلى الله عليه وسلم تَوَضَّأَ وَمَسَحَ رَأْسَهُ بِبَلَلِ يَدَيْهِ ﴾ (٤)

یعنی رسول اللهﷺ اودس اوکړو او د دواړو لاسونو په لوندوالی سره ئې د سر مسح اوکړه.

د امام دارقطنی‌رحمه الله د یو بل روایت الفاظ داسې دی ﴿ كَانَ النَّبِيُّ صلى الله عليه وسلم يَأْتِينَا فَيَتَوَضَّأُ فَيَمْسَحُ رَأْسَهُ بِمَا فَضَلَ فِي يَدَيْهِ مِنَ الْمَاءِ ﴾(۵)

یعنی رسول اللهﷺ به مونږ ته تشریف راوړلو، پس اودس به ئې کولو، د رسول اللهﷺ په لاس مبارک کښ چه به کومې اوبه بچ کیدلې په هغې باندې به ئې مسح کوله.

په دې روایاتو کښ عبدالله بن محمد بن عقیل راوی دې، هغه ډیرو محدثینو حضراتو ضعیف کړې دې (۶) خو امام ترمذی، امام بخاری، امام احمد، امام اسحاق بن راهویه او

---

۱) انظر: جامع الترمذی، ابواب الطهارة، باب ما جاء انه ياخذ لراسه ماء جديدا، تحت رقم ۳۵

۲) اوګورئ: جامع الترمذی ... پورته حواله

۳) السنن لابی داؤد، کتاب الطهارة، باب صفة وضوء النبیﷺ رقم ۱۳۰

٤) سنن الدارقطنی ج ۱ ص ۸۷، کتاب الطهارة، باب المسح بفضل اليدين رقم ۱

۵) سنن الدارقطنی ج ۱ ص ۸۷، کتاب الطهارة، باب المسح بفضل اليدين رقم ۲، وجامع الترمذی، ابواب الطهارة، باب ما جاء ان مفتاح الصلاة الطهور.

٦) اوګورئ: تحرير تقريب التهذيب ج ۲ ص ۲٦٤، رقم ۳۵۹۲، والسنن الكبرى للبيهقی ج ۱ ص ۲۳۷، کتاب الطهارة، باب الدليل على انه ياخذ لكل عضو ماء جديدا، ولا يتطهر بالماء المستعمل.

امام حمیدی رحمه الله به د هغوی نه احتجاج کولو. (۱)
چونکه د صحیح مسلم د عبدالله بن زید بن عاصم رضی الله عنه د حدیث او د احنافو د مستدل حدیث ترمینځه څه منافات نشته په دې وجه احنافو د دواړو احادیثو ترمینځه تطبیق کولو سره دواړه احادیث معمول به کړي دی چه د سر د مسح دپاره نوې اوبه اخستل مستحب دی او د لاسونو په لوندوالی سره مسح کول جائز دی. (۲)
او د جمهورو مستدل د هغوی په مذهب باندې صراحة دلالت نه کوی! پس امام نووی رحمه الله فرمائی چه د دې حدیث مهفوم بس صرف دومره دې چه رسول الله صلی الله علیه وسلم د سر د مسح دپاره نوې اوبه واخستلې، د لاسونو په لوندوالی ئې اکتفاء اونکړه، د دې نه په دې خبره باندې استدلال نه شی کیدې چه د ماء مستعمل نه طهارت نه شی حاصلیدې، ځکه چه په دې حدیث کښې صرف دومره ذکر دی چه رسول الله صلی الله علیه وسلم نوې اوبه استعمال کړې، د دې نه دا نه لازمیږی چه نوې اوبه اخستل شرط هم وی. (۳)
هم دغه شان که د جمهورو مذهب اختیار کړې شی نو یو حدیث بالکلیه پاتې کیږی، او د احنافو په نزد دواړه احادیثو باندې عمل راځی. امام بیهقی رحمه الله د احنافو په مستدل روایت کښې د تاویل کولو کوشش کړې دې چه رسول الله صلی الله علیه وسلم د مسح دپاره اوبه باقاعده اخستلې وې، د هغې نه پس ئې څه حصه توئې کړې او په باقی اوبو ئې مسح اوکړه. (٤)
خو اول خو دا تاویل غیر متبادر دې، د نورو توجیهاتو ضرورت خو هغه وخت وو چه کله دا ثابت شوې وې چه د سر دپاره نورې اوبه اخستل ضروری او شرط دی، په دې سلسله کښې د احادیث صحیحه نه استدلا ل شوې وې، خو داسې څه دلیل موجود نه دې، کوم چه په شرطیت باندې دلالت کوی او چه کوم حدیث موجود دې د هغې په باره کښې د شوافعو وکیل امام نووی رحمه الله فرمائی چه هغه د شرطیت دلیل نه شی جوړیدې، نو بیا د دویم مخالف روایت داسې خلاف ظاهر توجیه کولو څه ضرورت دې؟ والله اعلم

**قوله: ثُمَّ أَخَذَ غَرْفَةً مِنْ مَاءٍ فَرَشَّ عَلَى رِجْلِهِ الْيُمْنَى حَتَّى غَسَلَهَا:** بیا ابن عباس رضی الله عنهما د اوبو یوه لپه واخستله او هغه ئې په ښۍ خپه باندې چهرکاؤ کړه، تردې چه هغه ئې وینځله.

---

۱) قال الترمذی : وعبد الله بن محمد بن عقیل هو صدوق و قد تکلم فیه بعض أهل العلم من قبل حفظه. قال أبو عیسی: و سمعت محمد بن اسماعیل یقول کان أحمد بن حنبل و اسحق بن ابراهیم و الحمیدی یحتجون بحدیث عبد الله بن محمد بن عقیل ... جامع الترمذی، ابواب الطهارة، باب ما جاء ان مفتاح الصلاة الطهور. رقم ۳

۲) اوګورئ: اعلاء السنن ج ۱ ص ۶۰ کتاب الطهارة، باب کفایة البلة من فضل غسل الیدین فی مسح الراس، واستحباب الماء الجدید

۳) اوګورئ: شرح النووی علی صحیح مسلم ج ۳ ص ۱۱۹، کتاب الطهارة، باب فی وضوء النبی صلی الله علیه وسلم

٤) قال البیهقی : وکانه اراد اخذ ماء جدیدا فصب بعضه ومسح راسه ببلل یدیه ... السنن الکبری للبیهقی ج ۱ ص ۲۳۷، کتاب الطهارة، باب الدلیل علی انه یاخذ لکل عضو ماء جدیدا، ولا یتطهر بالماء المستعمل.

گويا هغه په خپله خپه باندې دومره ترمكيا اوكړه چه د خپې وينځل بيا موندلې شو. په دې كښې ظاهرا اشكال دې چه د ﴿ رش ﴾ معنی د چهركاؤ كولو او د ترمكيا كولو راځي او د ﴿غسل﴾ معنی د وينځلو ده، چه د هغې دپاره د ﴿ اسالة الماء ﴾ موندلې كيدل ضروری دی، نو ﴿ غسل ﴾ لره د ﴿ رش ﴾ غايت څنگه منلې كيدې شی؟

د دې يو جواب خو دا وركړې كيدې شی چه په ﴿ رش ﴾ د قطرات صغار كيدل ضروری نه دی، په دې كښې قطرات كبار هم كيدې شی، كه د اوبو څاڅكی غټ وی او په هغې سره ترمكيا اوكړې شی نو په هغې باندې اطلاق خو به د ﴿رش﴾ كيږی خو د ﴿ غسل ﴾ حاصليدل څه بعيد نه دی.

داسې هم وئيلې گيدې شی چه دلته مجازا قطرات سائله ته ﴿ رش ﴾ وئيلې شوې وی.
هم دغه شان دا هم وئيلې كيدې شی چه د تكرار رش د وجې نه غسل حاصل شوې وی، كه يو كرت د اوبو څاڅكی اوكړې شی نو پوره به نه تر كيږی، خو كه بار بار پرې ترمكيا كوی نو پوره به تر شی او په دې سره به اسالة الماء هم حاصل شی. (١)

**د ابوداؤد د روايت توجيه** : دلته د ابوداؤد په روايت كښې دی چه ﴿ فرش على رجله اليمنى وفيها النعل، ثم مسحها بيديه: يدٌ فوق القدم ويدٌ تحت النعل ﴾(٢)
يعنی ابن عباس رضی الله عنهما په خپله ښئ خپه باندې ترمكيا اوكړه، په هغې كښې نعل وو، بيا ئې هغه په خپلو دواړو لاسونو سره مسح كړه، يو لاس ئې د خپو دپاسه وو او يو لاس ئې د نعل د لاندې.
د دې روايت نه معلوميږی چه سيدنا ابن عباس رضی الله عنهما په خپو باندې ترمكيا اوكړه، په دې موقع باندې ئې يو لاس د خپې دپاسه وو او دويم د نعل د لاندې، چه د هغې نه معلوميږی چه د پوره خپې وينځل نه دی موندلې شوې.
بعض حضراتو دا په مسح على الخف باندې محمول كړې دې. (٣) خو دا تاويل صحيح نه دې څكه چه دلته د بخاری په روايت الباب او هم دغه شان د نسائی او د بيهقی په روايتونو كښې د غسل تصريح موجود ده. (٤)

---

١) قال الحافظ رحمه الله قوله : فرش : اى سكب الماء قليلا قليلا الى ان صدق عليه مسمى الغسل، قوله : حتى غسلها : صريح فی انه لم يكتف بالرش. فتح الباری ج ١ ص ٢٤١
٢) سنن ابی داؤد، كتاب الطهارة، باب فی الوضوء مرتين رقم ١٣٧
٣) قاله صاحب مرقاة الصعود ج ١ ص ١١٧ : كتاب الطهارة، باب الوضوء مرتين مرتين، ت : محمد شايب شريف و ج ١ ص ٢١٥ ت : محمد اسحاق. انظر بذل المجهود ج ١ ص ٦٠٥، كتاب الطهارة، باب فی الوضوء مرتين.
٤) اوگورئ : سنن النسائی، كتاب الطهارة، باب مسح الاذنين رقم ١٠١، وباب مسح الاذنين مع الراس ... رقم ١٠٢، والسنن الكبری للبيهقی ج ١ ص ٥٣، كتاب الطهارة، باب غسل الوجه رقم ٢٤٣

لهذا بغير د څه دليل او قرينې نه په مسح باندې د محمول کولو هيڅ جواز نشته. (۱)

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى چه دلته ﴿تحت النعل﴾ وئيلو سره مجازا ﴿تحت القدم﴾ مراد کړې شوې دې، ګيني که دا تاويل اونکړې شى نو دا روايت به شاذ منلو سره رد کولې شى، څکه چه په دې کښې هشام بن سعد دې کوم چه د اکثر علماء کرامو په نزد ضعيف دې. (۲)

د هغه د تفرداتو نه هم استدلال نه شى کيدې پاتې لا دا چه د ثقه راويانو مخالفت اوکړى. (فتح البارى ج ۱ ص ۲٤۱)

مولانا خليل احمد سهارنپورى رحمه الله فرمائى چه په قدم د پاسه چه کوم لاس دې په هغې باندې اصل کښې خپه وينځلې شى او د هغې په ذريعه پوره خپه مږلې شى چه پوره خپې ته اوبه اورسيږى، ګيني ظاهره ده چه په يوه لپه اوبو سره د پوره خپې استيعاب ممکن نه دې، هر چه د دويمې خپې تعلق دې کوم چه د نعل نه لاندې بيان کړې شوې دې، د هغې په غسل قدم کښې هيڅ دخل نشته، خو هغه د دې قدم د اوچتولو او اړانړه ورکولو د پاره استعماليدو، چه په هغې سره راوى دا خيال اوکړو چه په دې سره د قدم مسح کيدله. (۳)

**قوله:** ثُمَّ أَخَذَ غَرْفَةً أُخْرَى فَغَسَلَ بِهَا رِجْلَهُ يَعْنِي الْيُسْرَى ثُمَّ قَالَ هَكَذَا رَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَتَوَضَّأُ : بيا ابن عباس رضى الله عنهما په يوه لپه کښې اوبه واخستلې، او په هغې سره ئې خپله خپه يعنى ګسه خپه وينځله، بيا ئې اوفرمائيل : ما رسول الله صلى الله عليه وسلم هم دغه شان په اودس کولو باندې ليدلې دې.

★★★★★★

## ⑧ بَابُ التَّسْمِيَةِ عَلَى كُلِّ حَالٍ وَعِنْدَ الْوِقَاعِ

**په هر حال کښې او د جماع په وخت ﴿بسم الله﴾ لوستل :** په دې ترجمة الباب کښې د ﴿وقاع﴾ ذکر د ﴿على كل حال﴾ نه پس د ذکر الخاص بعد العام د قبيل نه دې، چونکه په حديث پاك کښې د تسميه عند الوقاع ذکر وو او مصنف سره داسې روايت نه وو چه د هغې نه ئې خپله مدعا اخذ کړې وې نو د دې روايت نه ئې ترجمه اخذ کړه چه کله د وقاع (کوم ابعد الاحوال عن الذکر دې) په وخت ذکر مندوب دې نو په باقى احوال کښې به تسميه په طريقه اولى مندوب وى. (٤)

**د مخکښې باب سره مناسبت :** په ظاهره کښې دا باب دلته بې ربط دې، نه ئې د تير باب سره مناسبت شته او نه د وړاندې باب سره، ماقبل سره د بې ربطه کيدو وجه دا ده چه تسميه د

۱) بذل المجهود ج ۱ ص ٦۰۵
۲) انظر تحرير تقريب التهذيب ج ٤ ص ۳۹، رقم ۷۲۹٤
۳) بذل المجهود ج ۱ ص ٦۰۵
٤) اوګورئ : فتح البارى ج ۱ ص ۲٤۲، عمدة القارى ج ۲ ص ۲٦٦، وشرح تراجم ابواب البخارى للشاه ولى الله رحمه ص ۱٦، والکنز المتوارى ج ۳ ص ۱۹

غسل وجه نه مقدم وی، لهذا دا اول راوړل پکار وو او د مابعد سره ئې د عدم مناسبت وجه دا ده چه وړاندې باب مايقول عند الخلاء نه د خلاء او استنجاء ابواب شروع كيږی، او د تسميه تعلق د اودس سره دې د خلا او استنجاء سره نه.

علامه كرمانى رحمه الله خو بس مختصر شان خبره كړې ده چه امام بخارى رحمه الله د ترتيب څه اهتمام او التزام نه دې كړې، ځكه چه د هغوی اصل مقصود احاديث صحيحه لره راجمع كول دی. (١)

خو د علامه كرمانى رحمه الله دا خبره په فهم كښې نه راځی ځكه چه د وضع تراجم ابواب په سلسله كښې د امام بخارى رحمه الله زور نظر او په دې ابواب او كتابونو كښې ترتيب او مناسبت معروف او مشهور څيز دې، تردې چه ﴿ فقه البخاری فی تراجمه ﴾ مشهور شو، بيا د هغوی په كتابونو او بابونو كښې د بې ربطه كيدو اعتراض څنګه كيدې شی؟

علامه عينى رحمه الله په بعض مقاماتو كښې دا رائې ظاهر فرمائيلې ده چه د ټولو بابونو مجموعى طور د اودس سره تعلق دې، لهذا دومره مناسبت كافى دې. (٢)

او په بعض مقاماتو كښې هغوی داسې جواب كړې دې چه امام بخارى رحمه الله كتاب الوضوء شروع كولو سره شپږ ابواب "ماجاء فى الوضوء"، "لا تقبل صلاة بغير طهور"، "فضل الوضوء"، "لايتوضاء من الشك حتى يستيقن"، "التخفيف فى الوضوء" او "اسباغ الوضوء" تراجم قائم كړې دی، په دې كښې په يو كښې هم د اودس صفت او كيفيت نه دې ذكر شوې، د هغې نه پس ئې اووم باب "غسل الوجه باليدين من غرفة واحدة" قائم كړې دې، چه په هغې كښې د اودس كيفيت ذكر دې، او حال دا چه دا باب د ابواب الاستنجاء نه روستو ذكر كول پكار وو، خو هغوی دا باب دلته استطرادا او ضمنا قائم كړې دې. (٣)

حافظ ابن حجر رحمه الله د دې ابواب ترمينځه مناسبت ډير په تفصيل سره ذكر كړې دې چه د هغې خلاصه دا ده:

امام بخارى رحمه الله اول خو دا بيان كړه چه اودس فرض دې، بيا ئې دا بيان كړه چه شرط دې، بيا ئې د هغې فضيلت ذكر كړو، بيا ئې دا بيان كړه چه صرف په شك سره اودس نه واجب كيږی، بيا ئې دا بيان كړه چه په اودس كښې واجب درجه دا ده چه د اودس اندامونه تر كړې شی او كوم چه د دې نه زيات او په اسباغ كښې داخل دې هغه د فضيلت د باب نه دې او هم په دې كښې ﴿ غسل الوجه من غرفة واحدة ﴾ هم داخل دې، د هغې نه روستو ئې د تسميه ذكر اوفرمائيلو، اصل كښې په تسميه او غسل وجه كښې اقتران مطلوب دې چه د غسل وجه

---

١) شرح الكرمانى ج ٢ ص ١٨٣

٢) قال العينى رحمه الله : على ان المناسبة العامة موجودة بين الابواب كلها، لكونها من واد واحد. عمدة القارى ج ٢ ص ٢٦٢، باب غسل الوجه باليدين من غرفة واحدة.

٣) عمدة القارى ج ٢ ص ٢٦٦

شروع دي د تسميه نه بيا موندلي شي، په ذكر كښ د تسميه مقدم كيدو او د غسل وجه د موخر كيدو څه اثر نه پريوځي، بس متوضي چه كله هم اودس كوى هغه لره د مخ د وينځلو سره بسم الله وئيل پكار دي. دغه شان د ماقبل سره مناسبت ښكاره شو.
او د مابعد سره ئې مناسبت دا دې چه څنګه تسميه عند الوضوء مشروع ده، هم دغه شان تسميه عند الخلاء هم مشروع ده، د هغې نه روستو ئې وړاندې ابواب الخلاء منعقد كړل.(۱)
حافظ ابن حجر رحمه الله مناسبت خو بيان كړو خو په دې كښ څو اشكالات دي.
اول خو دا چه هغوى چه د تيرباب سره كوم جوړ بيان كړې دې په هغې كښ اشكال دا دې چه په تقديم او تاخير كښ چه هر كله څه باك نشته نو امام بخارى رحمه الله له پكار وو چه تسميه ئې په شروع كښ ذكر كړې وې.
دويمه خبره دا چه حافظ رحمه الله فرمائي چه د تسميه د غسل وجه سره اقتران مطلوب دې، دا هم قابل تسليم خبره نه ده، ځكه چه متوضي چه كله د اودس دپاره كينى نو هغه د ټولو نه اول خپل لاس نه وينځي، بلكه اول لاس وينځي، بيا خوله كنګالوى او بيا پوزه كښ اوبه اچوى اوبيا مخ وينځي اودتسميه اقتران د شروع سره كيدل پكار دي، نه د مخ وينځلو سره.
هم دغه شان هغوى چه د راروانو بابونو سره كوم مناسبت ذكر كړې دې په هغې كښ اشكال دا دې چه ستاسو تقرير به هغه وخت چليدو چه كله امام بخارى رحمه الله د تسميه على الوضوء ذكر، عند الخلاء نه استدلال كولو سره ثابتولې، حال دا چه هغوى تسمية على الوضوء د ذكر عند الجماع نه ثابت كړې ده، لكه چه مونږ بالكل په شروع كښ ذكر كړې دى.
حضرت شيخ الحديث صاحب رحمه الله فرمائي چه دا ټول اشكال هغه وخت راځي چه كله د تسميه نه مراد تسميه على الوضوء وى، د امام بخارى رحمه الله مقصد تسميه على الاستنجاء بيانول دى او د غسل الوجه باليدين ترجمه مصنف رحمه الله د باب اسباغ الوضوء د تكملې په طور ذكر كړې ده، ځكه چه په دواړو لاسونو سره ښه طريقه باندې اسباغ راځي، لهذا په طور د تكمله ئې غسل الوجه باليدين راوړلو سره دې خبرې طرف ته اشاره اوكړه چه په كومو اندامونو كښ دواړه لاسونه استعماليدې شى لكه لاس هلته دواړه استعمالول پكار دى، ځكه چه په دې كښ اسباغ اسانه ده.
بيا د مصنف رحمه الله چونكه عادت دا دې چه كله مسئله يو كرت راشى نو بيا دوباره تكرار نه كوى، نو په دې وجه چه هر كله د غسل وجه بيان اوشو نو وړاندې تلو سره چه كله ئې د اودس ابواب قائم كړل نو هلته ئې دا مسئله دوباره ذكر نه كړه، چه تكرار لازم نه شى.
حضرت شيخ الحديث رحمه الله فرمائي چه امام بخارى رحمه الله په دې ترجمة الباب سره د سيدنا على رضي الله عنه روايت مرفوعه "ستر ما بين اعين الجن وعورات بنى ادم اذا دخل احدهم الخلاء ان يقول بسم الله" (۲)

---

۱) فتح البارى ج ۱ ص ۲٤۲
۲) جامع الترمذى، كتاب الجمعة، باب ما ذكر من التسمية عند الخلاء، رقم ٦۰٦، وانظر سنن ابن ماجة، كتاب الطهارة، باب ما يقول الرجل اذا دخل الخلاء، رقم ۲۹۷.

طرف ته اشاره کړې ده او د هغې تقويت ئې فرمائيلې دی. (١)
حضرت شيخ الحديث رحمه الله چه د ترجمې کوم غرض بيان کړې دې په دې باندې د بې ربطه کيدو او عدم مناسبت اشکال بالکل رفع کيږي خو يوه خبره بيا هم ذهن ته راځي او هغه دا چه تسميه عند دخول الخلاء بالاتفاق مستحب ده، او د دې په مقابله کښې تسميه د اودس په وخت کښې اهم هم ده او مختلف فيه هم. بله دا چه د محل سياق او د مسئلې اهميت خو دا غواړي چه دلته تسميه على الوضوء مراد وی، ځکه چه د بخاری ټولو شارحينو دلته تسميه على الوضوء مراد کړې ده، خپله امام بخاری رحمه الله وړاندې د تسميه على الوضوء مستقبل هيڅ باب هم نه دې تړلې.

خو وئيلې کيدې شی چه امام بخاری رحمه الله د غسل وجه باليدين ترجمه خو د تکميل اسباغ دپاره ذکر کړې وی او دا تسميه په حقيقت کښې تسميه على الوضوء ده کومه چه دغسل وجه نه مخکښې کيدل پکار وو، خو د اسباغ د مناسبت د وجې نه ئې د غسل وجه باليدين ترجمه مخکښې راوړه، د هغې نه روستو ئې د تسميه عند الخلاء باب راوړلو، هم د دې نه تسمية على الوضوء هم ثابته شوه، چونکه يو کرت دا مسئله دلته راغلې وه، په دې وجه ئې وړاندې مکرر ذکر نه کړه، ګويا تسميه کومه چه د غسل وجه نه مخکښې ده، د هغې د شهرت په وجه باندې ئې په هغې باندې اکتفاء اوکړه او په مؤخر ذکر کولو کښې ئې هيڅ اشکال پيښ نه شو. والله اعلم

**د ترجمة الباب مقصد** : د دې تقرير په ضمن کښې د ترجمة الباب مقصد هم څه حده پورې واضح شو.
حاصل ئې دا دې چه عام طور سره شارحينو د دې باب مقصد تسميه عند الوضوء بيان کړې دې، بس امام شاه ولی الله رحمه الله فرمائی چه چونکه د تسميه على الوضوء والا روايت د مؤلف رحمه الله د شرط مطابق نه دې، په دې وجه د تسميه على الوضوء سنت کيدل ئې د حديث الباب نه ثابت کړل، ځکه چه ﴿ وقاع ﴾ ابعد الاحوال عن ذکر الله... دې چه کله په هغې کښې تسميه مستحب ده نو په اودس کښې به په طريق اولی مستحب وی. (٢)
او حضرت شيخ الحديث رحمه الله فرمائی چه د دې باب مقصد تسميه عند الخلاء ده، هم په دې وجه ئې د دې نه روستو ابواب الخلاء ذکر کړې دی. (٣) والله سبحانه وتعالی اعلم
**د تسميه على الوضوء حکم** : د اودس په شروع کښې د بسم الله وئيلو څه حکم دې؟ په دې کښې د فقهاء کرامو اختلاف دې!
اهل ظواهر، امام اسحاق بن راهويه او د روايت مطابق امام احمد رحمه الله د تسميه د وجوب او فرضيت قائل دی.

---

١) الکنز المتواری ج ٣ ص ١٦ تا ٢٠
٢) اوګورئ رساله : شرح تراجم أبواب البخاری : ص: ١٦.
٣) الکنز المتواری ج ٣ ص ١٩

او د احناف، مالكيانو، شوافع او د امام احمد رحمه الله ظاهر مذهب دا دې چه تسميه سنت ده يا مستحب ده. (١)

صاحب هدايه فرمائى چه اصح دا ده چه تسميه على الوضوء مستحب ده. (٢) او ابن الهمام رحمه الله د وجوب قائل دې. (٣)

**د قائلين فرضيت دلائل او د هغې تجزيه :** قائلين فرضيت د ډيرو احاديثو نه استدلال کوی!

① پس په سنن ابى داؤد وغيره كښې د سيدنا ابوهريره رضى الله عنه مرفوع روايت دې: ﴿ **لاصلاة لمن لا وضوء له، ولا وضوء لمن لم يذكر اسم الله تعالى عليه** ﴾ (٤)

دا روايت د "**يعقوب بن سلمة عن ابيه عن ابى هريرة**" په طريق سره روايت شوې دې. (٥)
امام حاكم رحمه الله يعقوب بن سلمه لره يعقوب بن ابى سلمه الماجشون ګنړلې دې، پس هغه فرمائى: ﴿ **وقد احتج مسلم بيعقوب بن ابى سلمة الماجشون، واسم ابى سلمة، دينار** ﴾ (٦)
يعنى امام مسلم رحمه الله د يعقوب بن ابى سلمه الماجشون احاديث په طور د احتجاج او استدلال نقل کړې دى او د ابو سلمه نوم دينار دې.

خو حافظ ذهبى رحمه الله فرمائى: ﴿ **صوابه حدثنا يعقوب بن سلمة الليثى عن ابيه عن ابى هريرة ... واسناده فيه لين** ﴾ (٧)
يعنى دا يعقوب بن ابى سلمه الماجشون نه دې، بلكه يعقوب بن سلمه ليثى دې، هغه د خپل پلار نه او د هغه پلار د ابوهريره رضى الله عنه نه نقل کوى، په دې سند کښې ضعف دې.

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى: ﴿ **ادعى انه الماجشون، وصححه لذلك، والصواب انه الليثى** ﴾ (٨) يعنى امام حاكم رحمه الله دا دعوى کړې ده چه دا ماجشون دې، هم په دې وجه باندې هغوى حديث ته صحيح وئيلې دې او صحيح دا ده چه هغه ليثى دې.

---

١) اوګورئ: حاشية ابن عابدين ج ١ ص ٨٩، سنن الوضوء، وحاشية الدسوقى على الشرح الكبير ج ١ ص ١٧١، والمجموع شرح المهذب ج ١ ص ٣٤٦، والمغنى ج ١ ص ٧٣، والانصاف ج ١ ص ١٢٨، ونيل الاوطار ج ١ ص ١٥٠، باب التسمية على الوضوء.
٢) اوګورئ: الهداية مع شرحه فتح القدير ج ١ ص ٢٠
٣) فتح القدير ج ١ ص ٢٠، ٢١
٤) سنن ابى داؤد، كتاب الطهارة، باب التسمية على الوضوء، رقم ١٠١، وسنن ابن ماجة، كتاب الطهارة، باب ما جاء فى التسمية على الوضوء، رقم ٣٩٣، ومستدرک الحاكم، ج ١ ص ١٤٦، كتاب الطهارة رقم ٥١٩/٧٤.
٥) اوګورئ پورته حواله جات
٦) المستدرک ج ١ ص ٤٦.
٧) تلخيص المستدرک ج ١ ص ١٤٦
٨) التلخيص الحبير ج ١ ص ١٢٣، كتاب الطهارة، باب سنن الوضوء رقم ٧٠

بیا امام ترمذی رحمہ اللہ د امام بخاری رحمہ اللہ نه نقل کړې دی چه: ﴿ یعقوب بن سلمة مدنی، لا یعرف سماع من ابیه، ولا یعرف لابیه سماع من ابی هریرة ﴾ (۱)
یعنی یعقوب بن سلمه مدنی راوی دې، خو نه خو د هغه د خپل پلار نه سماع معروف ده او نه د هغه د پلار د ابوهریره رضی اللہ عنہ نه سماع معروف ده.

امام دارقطنی رحمہ اللہ دا حدیث "ایوب عن یحیی بن ابی کثیر عن ابی سلمة عن ابی هریرة رضی اللہ عنہ" په طریق سره هم نقل کړې دې: ﴿ ماتوضاء من لم یذکر اسم الله علیه، وما صلی من لم یتوضاء ﴾ (۲)
یعنی چا چه بسم الله او نه لوستله هغه اودس نه دې کړې او چا چه اودس اونکړو هغه مونځ نه دې کړې.
خو په دې طریق کښې انقطاع ده ځکه چه ایوب وائی چه ما د یحیی بن ابی کثیر نه صرف یو حدیث اوریدلې دې. (۳)

④ امام ترمذی رحمہ اللہ د سعید بن زید رضی اللہ عنہ نه حدیث نقل کړې دې: ﴿ سمعت رسول الله صلی اللہ علیہ وسلم یقول: لا وضوء لمن لم یذکر اسم الله علیه ﴾ (۴)
یعنی د هغه چا اودس نه کیږی چه بسم الله پرې او نه وائی.

امام ترمذی رحمہ اللہ د امام بخاری رحمہ اللہ نه نقل کوی: ﴿ لیس فی هذا الباب حدیث احسن عندی من هذا ﴾ (۵)
یعنی زما په نزد په دې باب کښې د ذکر شوې حدیث نه غوره بل یو حدیث هم نشته.

امام احمد رحمہ اللہ فرمائی: ﴿ لا اعلم فی هذا الباب حدیثا له اسناد جید ﴾ (۶)
یعنی په دې باب کښې ماته داسې حدیث نه دې معلوم چه د هغې سند جید وی.

حافظ زیلعی رحمہ اللہ فرمائی چه امام ابن القطان رحمہ اللہ په خپل کتاب الوهم والایهام کښې فرمائی چه په دې کښې درې مجهول الحال اشخاص دی، یو د رباح راوی نیا، د هغې نه نوم معلوم دې او نه حال. (۷) بله دا چه سوا د دې یو حدیث نه چرته هم د هغې تذکره نه راځی.

---

۱) علل الترمذی الکبیر ص ۳۲، کتاب الطهارة، باب التسمیة عند الوضوء. هم دغه شان اوګورئ: مختصر سنن ابی داؤد للمنذری ج ۱ ص ۸۸، کتاب الطهارة باب فی التسمیة علی الوضوء.
۲) سنن الدارقطنی ج ۱ ص ۷۱، کتاب الطهارة باب التسمیة علی الوضوء رقم ۲
۳) السنن الکبری للبیهقی ج ۱ ص ۴۴، رقم ۱۹۶
۴) جامع الترمذی، کتاب الطهارة، باب ما جاء فی التسمیة علی الوضوء رقم ۲۵، وسنن ابن ماجة، کتاب الطهارة، باب ما جاء فی التسمیة علی الوضوء، رقم ۳۹۲.
۵) علل الترمذی الکبیر ص ۳۱، ۳۲، کتاب الطهارة، باب فی التسمیة عند الوضوء رقم ۱۶
۶) علل الترمذی الکبیر ص ۳۲، کتاب الطهارة، باب التسمیة عند الوضوء، رقم ۱۷
۷) قال الحافظ کذا قال ابن القطان فاما هی فقد عرف اسمها من روایة الحاکم ... (بقیه برصفحه آئنده

دويم راوى رباح دي، دا هم مجهول الحال دي، دريم ابو ثفال "بكسر الثاء المثلثة وخفة فاء"(١) دي دا هم مجهول الحال دي. (٢)

هم دا خبره ابو حاتم او ابوزرعه رحمه الله فرمائي، پس امام ابن ابى حاتم رحمه الله چه كله د خپل والد محترم او ابو زرعه نه د دې حديث په باره كښې تپوس اوكړو نو هغوى اوفرمائيل :

﴿ليس عندنا بذاك الصحيح، ابوثفال ورباح مجهول﴾(٣)

يعنى زمونږ په نزد دا روايت صحيح نه دې، ځكه چه ابوثفال او رباح مجهول دى.

امام بخارى رحمه الله فرمائى : ﴿فى حديثه نظر﴾(٤)

هم دغه شان امام بزار رحمه الله فرمائى : ﴿ابوثفال مشهور، ورباح وجدته لا نعلمها رويا الا هذا الحديث، ولا حدث عن رباح الا ابوثفال، فالخبر من جهة النقل لا يثبت﴾(٥)

يعنى ابو ثفال خو مشهور دې، خو رباح او دهغه د نيا نه سوا د دې حديث زمونږ د علم مطابق بل يو روايت هم نقل نه دې، هم دغه شان د رباح نه د ابوثفال نه علاوه بل چا روايت نه دې كړې، لهذا دا روايت د نقل د جهت نه ثابت نه دې.

بيا د دې روايت په سند كښې كافى اضطراب دې پس !

① وهيب او بشر بن المفضل وغيره د ﴿عن عبدالرحمن بن حرملة، عن ابى ثفال المرى، عن رباح بن عبدالرحمن، عن جدته، عن ابيها﴾ په طريق سره روايت كړې دې.

② حفص بن ميسره، ابو معشر او اسحاق بن حازم ﴿عن عبدالرحمن بن حرملة، عن ابى ثفال عن رباح عن جدته انها سمعت﴾ په طريق سره نقل كړې دې، په دې طريق كښې د "جدة رباح" د والد واسطه نشته.

③ دراوردى د "ابوثفال عن رباح عن ابن ثوبان" په طريق سره مرسلا نقل كړى دى.

④ صدقه مولى آل الزبير د "ابوثفال عن ابى بكر بن حويطب" (ابوبكر بن حويطب پخپله رباح دې) په طريق سره مرسلا نقل كړې دې.

---

.....بقيه ازصفحه گذشته) ورواه البيهقى ايضا مصرحا باسمها، (قال البيهقى : جدة رباح هى اسماء بنت سعيد بن زيد بن عمرو بن نفيل، السنن الكبرى ج ١ ص ٤٣، واما حالها فقد ذكرت فى الصحابة، وان لم يثبت لها صحبة، فمثلها لا يسئل عن حالها. التلخيص الخبير ج ١ ص ١٢٧.

١) المغنى فى ضبط اسماء الرجال ص ١٤

٢) نصب الراية ج ١ ص ٤ رقم ١٥ : قال البيهقى او ثفال المرى يقال اسمه ثمامة بن وائل، وقيل ثمامة بن حصين، السنن الكبرى ج ١ ص ١٤٣، كتاب الطهارة، باب التسمية على الوضوء رقم ١٩٤.

٣) علل الحديث لابن ابى حاتم ج ١ ص ٥١ طبع قديم و ج ١ ص ٢٦٣، طبع جديد، رقم ١٢٩.

٤) التلخيص الحبير ج ١ ص ١٢٧، رقم ٧٠

٥) التلخيص الحبير ج ١ ص ١٢٧

امام دارقطني رحمه الله فرمائي چه په دې کښې صحيح اولني طريق دې. (۱)

④ امام ابن ماجه رحمه الله وغيره د ابو سعيد خدري رضي الله عنه حديث د "كثير بن زيد، عن ربيح بن عبدالرحمن بن ابي سعيد، عن ابيه عن ابي سعيد الخدري رضي الله عنه" په طريق سره نقل کړې دې : ﴿ ان النبي ﷺ قال: لاوضوء لمن لم يذكر اسم الله عليه ﴾(۲)

يعني : رسول الله ﷺ اوفرمائيل څوک چه د اودس په وخت د الله پاك نوم وانه اخلي د هغه اودس نه کيږي

امام احمد رحمه الله فرمائي : ﴿ احسن مايروى في هذا الحديث كثير بن زيد ﴾(۳)

امام اسحاق بن راهويه رحمه الله فرمائي : ﴿ هو اصح ما في الباب ﴾(٤)

يعني په دې باب کښې د ټولو نه زيات صحيح هم دا حديث دې.

حافظ ابن حجر رحمه الله دې حديث ته حسن وئيلې دې. (۵)

او حال دا چه امام ترمذي رحمه الله فرمائي چه امام بخاري رحمه الله ربيح بن عبدالرحمن ته منکر الحديث وئيلې دې. (۶)

امام احمد رحمه الله د هغه په باره کښې فرمائي : ﴿ليس بمعروف﴾(۷)

④ امام ابن ماجه او امام حاکم وغيره د سيدنا سهل بن سعد ساعدي رضي الله عنه نه مرفوعا نقل کړي دي چه : ﴿ لا صلاة لمن لا وضوء له، ولا وضوء لمن لم يذكر اسم الله عليه، ولا صلاة لمن لا يصلي على النبي ﷺ، ولا صلاة لمن لا يحب الانصار ﴾(۸) دا روايت د "عبد المهيمن بن عباس بن سهل بن سعد الساعدي عن ابيه عن جده" په طريق سره نقل دې.

خو په دې طريق کښې عبدالمهيمن بن عباس دې، هغه ته امام بخاري رحمه الله منکر الحديث وئيلې دې،امام نسائي رحمه الله فرمائي﴿ ليس بثقة ﴾ او امام دارقطني رحمه الله فرمائي:﴿ ليس بالقوي﴾(۹)

خو د هغه متابعت د هغه رور ابي بن عباس کړې دې، کوم چه امام طبراني رحمه الله په

---

۱) اوګورئ : العلل الواردة في الاحاديث للدارقطني ج ٤ ص ٤٣٣ تا ٤٣٥
۲) سنن ابن ماجة، کتاب الطهارة، باب ما جاء في التسمية على الوضوء رقم ۳۹۱
۳) المستدرک للحاکم ج ۱ ص ۱٤۷، رقم (۷۵/۵٤۰) کتاب الطهارة
٤) التلخيص الحبير ج ۱ ص ۱۲۵
۵) نتائج الافکار ج ۱ ص ۲۲۹، باب ما يقول على وضوئه.
۶) علل الترمذي الکبير ص ۳۲، وميزان الاعتدال ج ۲ ص ۳۸، رقم ۲۷۲۷
۷) ميزان الاعتدال ج ۲ ص ۳۸، رقم ۲۷۲۷
۸) سنن ابن ماجة، کتاب الطهارة باب ما جاء في التسمية على الوضوء، رقم ٤۰۰
۹) ميزان الاعتدال ج ۲ ص ۶۷۱، رقم ۵۲۷۹

المعجم الکبیر کښې روایت کړې دې. (۱) ابی بن عباس اګر چه د بخاری په راویانو کښې دې. خو امام ابن معین رحمه الله د هغه تضعیف کړې دې او امام نسائی رحمه الله او دولابی رحمه الله فرمائی :

﴿لیس بالقوی﴾ او امام احمد رحمه الله فرمائی : ﴿منکر الحدیث﴾ (۲)

⑤ سنن ابن ماجة، مسند بزار، مصنف ابن ابی شیبه او سنن دارقطنی کښې د سیده عائشه رضی الله عنها حدیث روایت شوې دې. ﴿کان النبی ﷺ اذا توضاء فوضع یدیه فی الاناء سمی الله﴾ (۳)

یعنی رسول الله ﷺ چه به کله اودس شروع کولو نو ﴿بسم الله﴾ به ئې لوستله.

په دې حدیث کښې حارثه بن محمد نومې راوی دې او هغه ضعیف دې.

امام بزار رحمه الله فرمائی ﴿حارثة لین الحدیث﴾ (٤)

امام بخاری رحمه الله ورته "منکر الحدیث" وئیلې دې. (۵)

هم دغه شان امام ابو حاتم رحمه الله فرمائی : ﴿ضعیف الحدیث، منکر الحدیث﴾ (۶)

امام نسائی او علی بن الجنید رحمه الله فرمائی : ﴿متروک الحدیث﴾ (۷)

امام ابو زرعه رحمه الله فرمائی : ﴿واهی الحدیث﴾ (۸)

امام ابن حبان رحمه الله فرمائی : ﴿ممن کثر وهمه، وفحش خطؤه، ترکه احمد ویحیی﴾ (۹)

فرمائی چه امام احمد رحمه الله د اسحاق بن راهویه رحمه الله جامع پرانستلو، په هغې کښې اولنې حدیث د حارثه بن ابی الرجال نه وو، سخت خفه شو او وې فرمائیل : اول حدیث یکون فی الجامع عن حارثة؟ یعنی عجیبه خبره دا ده چه په دې کتاب کښې اولنې حدیث د حارثه نه نقل دې، او حال دا چه د اسحاق بن راهویه رحمه الله دعوی دا ده چه هغه په دې کتاب کښې د اصح مافی الباب انتخاب کړې دې، او حال دا چه دا حدیث اضعف دې. (۱۰)

---

۱) المعجم الکبیر للطبرانی ج ۶ ص ۱۲۱، رقم ۵۶۹۹

۲) اوګورئ : میزان الاعتدال ج ۱ ص ۷۸ رقم ۲۷۳

۳) سنن ابن ماجة، کتاب الصلاة، باب اتمام الصلاة، رقم ۱۰۵۲، وکشف الاستار عن زوائد البزار ج ۱ ص ۱۳۷، باب التسمیة علی الوضوء رقم ۲۶۱، ومصنف ابن ابی شیبة ج ۱ص ۲۳۰، کتاب الطهارة، باب فی التسمیة فی الوضوء رقم ۱۶، وسنن الدارقطنی ج ۱ ص ٤.

٤) کشف الاستار ج ۱ ص ۱۳۷، رقم ۲۶۱

۵) التاریخ الکبیر ج ۳ ص ۹٤، رقم ۳۲۷

۶) الجرح والتعدیل ج ۳ ص ۲۷۰، رقم ۱۱۳۸/۳٤۳۱

۷) تهذیب التهذیب ج ۲ ص ۱۶۵، ۱۶۶

۸) الجرح والتعدیل ج ۳ ص ۲۷۰، رقم ۱۱۳۸/۳٤۳۱

۹) کتاب المجروحین لابن حبان ج ۱ ص ۳۳۱، رقم ۲۷۸

۱۰) تهذیب التهذیب ج ۲ ص ۱۶۶

⑥ امام طبرانی رحمه الله په خپل "المعجم الكبير" او "كتاب الدعاء" كښې، ابوبشر الدولابي رحمه الله په خپل كتاب "الاسماء والكنى" كښې او حافظ ابو نعيم رحمه الله په "معرفة الصحابة" كښې د سيده سبره جهنی رضی الله عنها مرفوع حديث نقل كړې دې!

﴿ الا لا صلاة الا بوضوء، ولا وضوء لمن لم يذكر اسم الله عليه، الا ولا يؤمن بالله من لا يؤمن بي، ولا يؤمن بي الا من يعرف حق الانصار ﴾ (۱)

يعنی بغير د اودس نه مونځ نه كيږی او څوك چه بسم الله اونه وائی د هغه اودس نه كيږی، څوك چه په ما باندې ايمان نه لری د هغه په الله پاك ايمان نشته او څوك چه د انصارو حق نه ادا كوی د هغه په ما باندې ايمان نشته.

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه دا روايت ابو القاسم بغوی رحمه الله د يحيى بن عبدالله بن يزيد بن عبدالله بن انيس په واسطې سره نقل كړې دې، په دې كښې عيسى بن سبرة دې، هغه ته امام بغوی رحمه الله منكر الحديث وئيلې دې. (۲)

⑦ حافظ ابو موسى مدينی په "معرفة الصحابة" كښې هم دا حديث د ام سبره رضی الله عنها نه هم روايت كړې دې، خو حافظ رحمه الله فرمائی چه دا ضعيف دې. (۳)

⑧ امام ابن عدی رحمه الله په "الكامل" كښې د ﴿ عيسى بن عبدالله، عن ابيه، عن جده ﴾ په طريق سره د سيدنا علی رضی الله عنه نه حديث نقل كړې دې.

﴿ قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: لا صلاة لمن لا وضوء له ولا وضوء لمن لم يذكر اسم الله عليه ﴾ (٤)

د دې د سند په باره كښې امام ابن عدی رحمه الله فرمائی!

﴿ وبهذا الاسناد احاديث حدثناه ابن مهدی، ليست بمستقيمة ﴾ (۵) يعنی په دې سند سره امام ابن مهدی رحمه الله مونږ ته ډير احاديث اورولې دی، دا صحيح نه دی.

امام دارقطنی رحمه الله د عيسى بن عبدالله په باره كښې فرمائی : ﴿ متروك الحديث ﴾ (۶)

امام ابن حبان رحمه الله فرمائی : ﴿ يروی عن ابائه اشياء موضوعة، لا يحل الاحتجاج به، كانه كان يهم ويخطئ ﴾

---

۱) المعجم الكبير للطبرانی ج ۲۲ ص ۲۹۶، رقم ۷۵۵، وكتاب الدعاء ج ۱ ص ۹۷۲، باب القول عند افتتاح الوضوء، رقم ۳۸۱، وكتاب الاسماء والكنى للدولابی ج ۱ ص ۳۶، ومعرفة الصحابة لابی نعيم ج ٤ ص ٤۸۶، رقم ۶۸۷۲

۲) اوګورئ نتائج الافكار ج ۱ ص ۲۳٤، باب ما يقول علی وضوئه

۳) اوګورئ التلخيص الحبير ج ۱ص ۱۲۸

٤) الكامل لابن عدی ج ۵ ص ۲٤۳، ترجمة عيسى بن عبدالله بن محمد بن عمر بن علی بن ابی طالب

۵) پورته حواله اوګورئ

۶) لسان الميزان ج ٤ ص ۳۹۹، طبع قديم، و ج ۶ ص ۲۶۹، طبع جديد، تحقيق شيخ عبد الفتاح ابو غده رحمه الله تعالی رقم ۵۹۳٤

حتى كان يجئ بالاشياء الموضوعة عن اسلافه، فبطل الاحتجاج بما يرويه ﴾(١)
يعنى دې د خپل پلار نيكه نه موضوع روايات نقل كوى، اصل كښې د وهم او د خطاء د زياتيدو د وجې نه هغه د خپلو مشرانو نه موضوع روايات راوړى، په دې وجه د هغه د رواياتو نه احتجاج كول صحيح نه دى.

او امام ابن عدى رحمه الله فرمائى: ﴿ وعامة مايرويه لايتابع عليه ﴾(٢)

⑨ ابو موسى المدينى رحمه الله په معرفة الصحابة كښې د ﴿ عبدالملك بن حبيب الاندلسى، عن اسد بن موسى، عن حماد بن سلمة، عن ثابت ﴾ په طريق سره د سيدنا انس رضى الله عنه مرفوع روايت نقل كړې دې!

﴿ لا ايمان لمن لم يؤمن بى، ولا صلاة الا بوضوء، ولا وضوء لمن لم يسم الله ﴾(٣)
يعنى څوك چه په ما باندې ايمان نه راوړى د هغه ايمان نشته، او بغير د اودس نه مونځ نشته او څوك چه بسم الله نه وائى د هغه اودس نشته.

په دې سند كښې د عبدالملك بن حبيب اندلسى په باره كښې حافظ رحمه الله فرمائى: ﴿ شديد الضعف ﴾(٤)

حاصل دا دې چه د تسميه على الوضوء د وجوب په سلسله كښې چه خومره هم روايتونه دى هغه ټول ضعيف اومتكلم فيه دى، خو په دې سلسله كښې مجموعى طور سره چونكه په ډيرو احاديثو كښې د تسميه ذكر دې، په دې وجه يو قسم قوت ضرور حاصليږى!
پس حافظ منذرى رحمه الله فرمائى:

﴿ وفى الباب احاديث كثيرة، لا يسلم شئ منها من مقال، ولا شك ان الاحاديث التى وردت فيها وان كان لا يسلم شئ منها من مقال، فانها تتعاضد بكثرة طرقها، وتكتسب قوة ﴾(٥)
يعنى په دې باب كښې ډير احاديث دى، خو په هغې كښې يو حديث هم د مقال نه خالى نه دې، او په دې خبره كښې هم څه شك نشته چه په كومو احاديثو كښې چه تسميه راغلې ده، اگر چه هغه د كلام نه خالى نه دى، خو هغه د كثرت د وجې نه د يو بل دپاره د تقويت باعث دى او په هغې كښې يو قسم تقويت پيدا كيږى.

هم دغه شان حافظ رحمه الله فرمائى: ﴿ والظاهر ان مجموع الاحاديث يحدث منها قوة تدل على ان له اصلا ﴾(٦)

---

١) كتاب المجروحين ج ٢ ص ١٠٣، رقم ٧٠٧
٢) الكامل ج ٥ ص ٢٤٥
٣) التلخيص الحبير ج ١ ص ١٢٨
٤) پورته حواله، د هغوى په باره كښې تفصيلات اوگورئ: لسان الميزان ج ٤ ص ٥٩، طبع قديم، و ج ٥ ص ٢٥٥ طبع جديد، رقم ٤٩٠١
٥) الترغيب والترهيب ج ١ ص ٩٨، الترهيب من ترك التسمية على الوضوء عامدا، رقم ٣١٥
٦) التلخيص الحبير ج ١ ص ١٢٨

يعنی ظاهره دا ده چه د مجموعی احاديثو نه قوت حاصلیږی او په دې خبره باندې دال دی چه د دې څه اصل ضرور شته.

**د قائلين سنيت او استحباب موقف** : جمهور علماء کرام کوم چه د فرضيت نه دی قائل هغوی د تسميه علی الوضوء د احاديثو په سلسله کښې فرمائی چه دا احاديث يا خو قولی دی يا فعلی دی!

هر چه د فعلی احاديثو تعلق دې نو هغه په دوام باندې دال نه دی لهذا د هغې نه سنيت هم نه شی ثابتيدلې پاتې دا چه فرضيت ترې ثابت شی.

او هر چه د قولی احاديثو تعلق دې نو د هغې په سندونو کښې کلام دې، بيا دا اخبار احاد دی، چه د هغې نه په کتاب الله باندې زيادت نه شی کيدې.

د دې نه علاوه چه په کومو احاديثو کښې د ﴿ لاوضوء ﴾ الفاظ راغلې دی په هغې کښې په نفی په نفی کمال باندې محمول کولې شی، لهذا د هغې نه به زيات نه زيات سنيت ثابتیږی. (۱)

والله اعلم

د قائلين سنيت استدلال هم د دې احاديثو نه دې کوم چه مونږ په تفصيل سره پورته ذکر کړې دې، دا احاديث اګر چه متکلم فيه دی خو پورته مونږ دا بيان کړې ده چه د کثرت طرق د وجې نه په دې کښې يو قسم قوت پيدا شوې دې، لهذا تسميه سنت ده.

او د استحباب قائلين دې خبرې ته ګوری چه سنت وئيلې شی ﴿ ما واظب عليه رسول الله ﷺ مع الترك احيانا ﴾ يعنی سنت به هغه عمل ته وئيلې شی چه رسول الله ﷺ پرې اکثر اوقات پابندی کړې وی او کله کله ئې ترک کړې وی. تسميه علی الوضوء د دې درجې عمل نه دې، ځکه چه په دې باندې مواظبت ثابت نه دې. (۲)

خو د سنتيت قائلين وائی چه سنت چه څنګه په فعل سره ثابتیږی هم دغه شان په قول سره هم ثابتیږی. (۳) د دې نه علاوه علامه عينی رحمه الله فرمائی چه تسميه ته صرف مستحب څنګه وئيلې کيدې شی، چه هر کله د تسميه په باره کښې قولی او فعلی ډير احاديث راغلې دی.؟(۴)

**د امام ابن الهمام رحمه الله موقف** : امام ابن الهمام رحمه الله په فتح القدير کښې د ټولو دلائلو تجزيه کولو سره ثابته کړې ده چه هر کله د تسميه احاديث په کثرت سره ثابت دی، د هغې په معارضه کښې څه نص نشته نو هغه په نفی کمال باندې ولې محمول کولې شی، براه راست پرې د وجوب اثبات ولې نه شی کيدې؟ هغوی دا خپل موقف ډير مدلل ذکر کړې دې. (۵)

---

۱) اوګورئ: شرح معانی الاثار مع نثر الازهار ج ۱ ص ۵۰، ۵۱، کتاب الطهارة، باب التسمية على الوضوء، والبناية للعينی ج ۱ ص ۱۹۴، والسعاية ج ۱ ص ۱۰۹، ۱۱۰

۲) اوګورئ: السعاية ج ۱ ص ۱۱۰، والبناية ج ۱ص ۱۹۷

۳) اوګورئ: السعاية ج ۱ ص ۱۱۰

۴) البناية ج ۱ ص ۱۹۸

۵) اوګورئ: فتح القدير ج ۱ ص ۲۰، ۲۱

علامه عبد الحی لکهنوی رحمه الله فرمائی : ﴿ وهذا كلام حسن، ينبغي ان يعول عليه ﴾(١)
دا يو ښه كلام دے د دې طرف ته رجوع او اعتماد كيدل پكار دى.

خو علامه شامی رحمه الله فرمائی : ﴿ كلام البحر صريح في ان المحقق ابن الهمام من اهل الترجيح، حيث قال عنه : انه اهل للنظر في الدليل، وحينئذ فلنا اتباعه فيما يحققه ويرجحه من الروايات او الاقوال، ما لم يخرج عن المذهب، فان له اختيارات خالف فيه المذهب، فلا يتابع عليها، كما قاله تلميذه العلامة قاسم ﴾(٢)
يعنى د صاحب بحر د تصريح مطابق محقق ابن الهمام د اهل ترجيح نه دې، پس صاحب بحر فرمائى چه هغه په دليل كښې د نظر كولو اهل دې. لهذا ابن الهمام چه كومو رواياتو او اقوالو ته ترجيح وركړې زمونږ دپاره د هغې د اتباع ګنجائش شته، په دې شرط چه د مذهب نه خارج څه خبره نه وى، ځكه چه د هغوى بعض اختيارات او تفردات دى كوم چه د مذهب خلاف دى، په هغې كښې د هغوى اتباع نه شي كيدې، لكه چه د هغوى شاګرد قاسم بن قطلوبغا تصريح كړې ده.

١٤١ : ﴿ حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللهِ قَالَ حَدَّثَنَا جَرِيرٌ عَنْ مَنْصُورٍ عَنْ سَالِمِ بْنِ أَبِي الْجَعْدِ عَنْ كُرَيْبٍ عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ (٣) يَبْلُغُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَوْ أَنَّ أَحَدَكُمْ إِذَا أَتَى أَهْلَهُ قَالَ بِاسْمِ اللَّهِ اللَّهُمَّ جَنِّبْنَا الشَّيْطَانَ وَجَنِّبْ الشَّيْطَانَ مَا رَزَقْتَنَا فَقُضِيَ بَيْنَهُمَا وَلَدٌ لَمْ يَضُرُّهُ ﴾ [٣٠٩٨، ٣١٠٩، ٤٨٧٠، ٢٠٢٥، ٢٩٢١]

## رجال الحديث

① **على بن عبدالله** : دا امير المومنين فى الحديث امام على بن عبد الله بن جعفر بن نجيح سعدى بصرى المعروف بابن المدينى رحمه الله دې. د هغوى حالات په كتاب العلم (باب الفهم فى العلم) د لاندې تير شوې دى. (٤)

---

١) السعاية ج ١ ص ١١٠

٢) شرح عقود رسم المفتى ص ١٢٦، مطلب : المحقق ابن الهمام وتلميذه العلامة قاسم من أهل الاجتهاد لا صاحب البحر

٣) قوله عن ابن عباس : الحديث اخرجه البخارى ايضا فى صحيحه ج ١ ص ٤٦٣ و ٤٦٤، كتاب بدء الخلق، باب صفة ابليس وجنوده، رقم ٣٢٧١ و ٣٢٨٣، وج ٢ ص ٧٧٦، كتاب النكاح، باب ما يقول الرجل اذا اتى اهله، رقم ٥١٦٥، و ج ٢ ص ٩٤٥، كتاب الدعوات، باب ما يقول اذا اتى اهله رقم ٦٣٨٨ و ج ٢ ص ١١٠٠، كتاب التوحيد، باب السؤال باسماء الله تعالى، والاستعاذة بها، رقم ٧٣٩٦، ومسلم فى صحيحه، كتاب النكاح، باب ما يستحب ان يقوله عند الجماع، رقم ٣٥٣٣، ٣٥٣٤، وابوداؤد فى سننه، فى كتاب النكاح، باب فى جامع النكاح، رقم ٢١٦١، والترمذى فى جامعه، فى كتاب النكاح، باب فى جامع النكاح، رقم ٢١٦١، والترمذى فى جامعه، فى كتاب النكاح، باب ما يقول اذا دخل على اهله. رقم ١٠٩٢، وابن ماجة فى سننه، فى كتاب النكاح، باب ما يقول الرجل اذا دخلت عليه اهله، رقم ١٩١٩.

٤) كشف البارى ج ٣ ص ٢٩٧

۞ **جرير**: دا جرير بن عبدالحميد بن قرط ضبی رازی رحمه الله دې. د هغوی حالات په كتاب العلم. "باب من جعل لاهل العلم اياما معلومة" د لاندې تير شوې دی. (۱)

۞ **منصور**: دا مشهور محدث منصور بن المعتمر السلمی الكوفی رحمه الله دې. د هغوی حالات په كتاب العلم "باب من جعل لاهل العلم اياما معلومة" د لاندې تير شوې دی. (۲)

۞ **سالم بن ابی الجعد**: دا سالم بن ابی الجعد كوفی رحمه الله دې، ولاء اشجعی بللې شی، د ابو الجعد نوم رافع دې. (۳)

دې د سيدنا ثوبان رضی الله عنه مولی رسول الله صلی الله عليه وسلم، سيدنا جابر، سيدنا ابن عباس، سيدنا نعمان بن بشير، سيدنا عبدالله بن عمرو، سيدنا عبدالله بن عمر او سيدنا انس بن مالك رضی الله عنهم وغيره نه روايت كوی.

د هغه نه په روايت كونكو كښې د هغه خوئي حسن، حكم بن عتيبه، عمرو بن دينار، عمرو بن مرة، ابو اسحاق السبيعی، امام اعمش، منصور بن المعتمر او موسی بن المسيب رحمهم الله وغيره حضرات دی. (٤)

دې د سيدنا عمر، سيدنا عثمان، سيدنا علی رضی الله عنهم نه روايت كوی خو هغه مراسيل دی، هم دغه شان د سيدنا ابن مسعود او سيده عائشه صديقه رضی الله عنهما سره هم د هغوی ملاقات نه دې شوې، د هغوی ملاقات د سيدنا ابو الدرداء او سيدنا ثوبان رضی الله عنهما سره هم نه دې شوې. (۵)

امام يحيی بن معين، امام ابوزرعه او امام نسائی رحمهم الله فرمائی: ﴿ثقة﴾(۶)

ابن سعد رحمه الله فرمائی: ﴿كان ثقة كثير الحديث﴾(۷)

امام عجلی رحمه الله فرمائی: ﴿كوفی تابعی ثقة﴾(۸)

ابن خلفون رحمه الله هغه په كتاب الثقات كښې ذكر كړې دې. (۹)

ابن حبان رحمه الله هم هغه په كتاب الثقات كښې ذكر كړې دې. (۱۰)

---

۱) كشف الباری ج ۳ ص ۲۶۸

۲) كشف الباری ج ۳ ص ۲۷۰

۳) تهذيب الكمال ج ۱۰ ص ۱۳۰

٤) د شيوخ او تلامذه د تفصيل دپاره اوګورئ: تهذيب الكمال ج ۱۰ ص ۱۳۱، ۱۳۲، وسير اعلام النبلاء ج ۵ ص ۱۰۸، ۱۰۹

۵) اوګورئ: اكمال تهذيب الكمال لمغلطائی ج ۵ ص ۱۸۰، ۱۸۱

۶) تهذيب الكمال ج ۱۰ ص ۱۳۲، والجرح والتعديل ج ٤ ص ۱۷۶، رقم (٥٩١٤/٧٩٥)

۷) الطبقات لابن سعد ج ۶ ص ۲۹۱

۸) معرفة الثقات للعجلی ج ۱ ص ۳۸۲، رقم ۵۳۸، واكمال تهذيب الكمال ج ۵ ص ۱۸۱

۹) اكمال تهذيب الكمال ج ۵ ص ۱۸۲

۱۰) الثقات لابن حبان ج ٤ ص ۳۰۵

حافظ ذهبی رحمه الله د هغوی په باره کښ ليکلي دی : ﴿ الفقيه، احد الثقات ﴾(۱)
هم دغه شان امام ذهبی رحمه الله فرمائی : ﴿ من ثقات التابعين ﴾(۲)
ابراهيم الحربی رحمه الله فرمائی : ﴿ مجمع على ثقته ﴾(۳) خو هغه به د خپل ثقاهت او امام باوجود تدليس او ارسال کولو ، پس حافظ ذهبی رحمه الله فرمائی: ﴿ فهو صاحب تدليس ﴾(٤)
هم دغه شان امام ذهبی رحمه الله دا هم فرمائی چه : ﴿ من ثقات التابعين، لكنه يدلس ويرسل ﴾(۵)
حافظ ابن حجر رحمه الله هغه په طبقات المدلسين کښ په دويمه طبقه کښ ذکر کړې دې، دا د هغه حضراتو طبقه ده چه د هغوی تدليس هم کم وي او هغه چه کله تدليس کوی نو هغه د ثقه نه کوی، پس د داسې حضراتو د امامت او جلالت شان باوجود ائمه کرامو د هغوی احاديث سره د هغوی د تدليس نه په خپل صحاح کښ قبول کړې دی. (۶)
د هغوی وفات په ۱۰۰ هجری کښ يا د هغې نه مخکښ يا روستو شوې دې. (۷) رحمه الله تعالى رحمة واسعة

⑤ **کريب** : دا ابو رشدين کريب بن ابی مسلم قرشی هاشمی مولی عبدالله بن عباس رضی الله عنهما دې. د هغوی حالات هم په دې جلد کښ د باب التخفيف في الوضوء د لاندې تير شوې دی.

⑥ **سيدنا عبدلله بن عباس رضی الله عنهما** : د سيدنا عبدالله بن عباس رضی الله عنهما حالات په بدء الوحی کښ د خلورم حديث د لاندې، او هم دغه شان په کتاب الايمان کښ د باب كفران العشير وكفر دون كفر د لاندې تير شوې دی. (۸)

**قوله: يَبْلُغُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:** سيدنا ابن عباس رضی الله عنهما به دا حديث رسول الله صلی الله علیه وسلم ته رسولو سره بيانولو!
مطلب دا چه دا حديث مرفوع دې، په ابن عباس رضی الله عنهما باندې موقوف نه دې، خو ابن عباس رضی الله عنهما دا حديث د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه براه راست اوريدلې وو که د بل چا په واسطه؟ چونکه د دې تصريح نشته، په دې وجه په دې صيغې سره بيان کړې شو. (۹)

---

۱) سير اعلام النبلاء ج ۵ ص ۱۰۸
۲) ميزان الاعتدال ج ۲ ص ۱۰۹
۳) اکمال تهذيب الکمال ج ۵ ص ۱۸۲
٤) سير اعلام النبلاء ج ۵ ص ۱۰۸
۵) ميزان الاعتدال ج ۲ ص ۱۰۹
۶) اوګورئ : تعريف اهل التقديس بمراتب الموصوفين بالتدليس ص ۳۱، رقم ٤۸
۷) اوګورئ : تقريب التهذيب ص ۲۲۶، رقم ۲۱۷۰
۸) اوګورئ : کشف الباری ج ۱ ص ٤٤۵، و ج ۲ ص ۲۰۵
۹) اوګورئ: شرح الکرمانی ج ۲ ص ۸۳، وعمدة القاری ج ۲ ص ۲۶۷

دلته د دې صيغې ﴿ يبلغ به ﴾ په شان نورې هم ډير صيغې استعماليږى ﴿ يرفع الحديث، يرويه، ينميه، رواية، رواه ﴾ كه دا الفاظ تابعى يا د هغه نه لاندې څوك نقل كړى نو دا د مرفوع حكمى په درجه كښې دې او كه يو صحابى دا الفاظ ذكر كړى نو بيا خو بالكل د صريح په حكم كښې دې. (۱)

**قوله:** قَالَ لَوْأَنَّ أَحَدَكُمْ إِذَا أَتَى أَهْلَهُ قَالَ بِاسْمِ اللَّهِ اللَّهُمَّ جَنِّبْنَا الشَّيْطَانَ وَجَنِّبِ الشَّيْطَانَ مَا رَزَقْتَنَا فَقُضِيَ بَيْنَهُمَا وَلَدٌ لَمْ يَضُرُّهُ: يعنى: په تاسو كښې كه څوك خپلې بيبى ته راشى نو دا دعا اووائى: بسم الله د الله پاك په نوم سره دا عمل كوم، اې الله! شيطان زمونږ نه لرې كړه او څه چه ته مونږ ته راكوې د هغه (اولاد) نه شيطان لرې كړه.

امام غزالى رحمه الله فرمائى چه مستحب دا ده چه ﴿ بسم الله ﴾ اولولى بيا سورة اخلاص اولولى، بيا تكبير او تهليل اووائى او ﴿ بسم الله العلى العظيم، اللهم اجعلها ذرية طيبة ان كنت قدرت ان تخرج ذلك من صلبى ﴾ دې اولولى. (۲)

يعنى اې الله! كه تا زما د شا نه د ذريت پيدا كولو فيصله كړې وى نو دا پاك ذريت جوړ كړه

**د دعا لوستلو وخت:** دا دعا به څه وخت لولى؟ د حديث الباب د اطلاق نه فهم كښې راځى چه د جماع په شروع كښې به ئې د كشف عورت نه پس لولى، د دې تائيد د سيدنا عبدالله بن مسعود رضى الله عنه د اثر نه كيږى!

﴿ عَنْ عَلْقَمَةَ أَنَّ ابْنَ مَسْعُودٍ كَانَ إِذَا غَشِيَ أَهْلَهُ فَأَنْزَلَ قَالَ: اللَّهُمَّ لَا تَجْعَلْ لِلشَّيْطَانِ فِيمَا رَزَقْتَنَا نَصِيبًا ﴾ (۳)

يعنى كله چه به هغه د خپلې بيبى سره جماع كوله او انزال به ئې اوشو نو وئيل به ئې: اې الله! څه چه ته مونږ ته راكوې په هغې كښې د شيطان حصه مه كوه.

خو نور علماء كرام فرمائى چه د جماع په وخت دې د عورت ښكاره كولو نه مخكښې مخكښې دا دعا اولوستلې شى. (٤) پس په صحيحين كښې په يو بل طريق كښې د ﴿ اذا اتى اهله ﴾ په ځائې د ﴿ اذا اراد ان ياتى اهله ﴾ (۵) الفاظ راغلې دى.

---

۱) اوګورئ: نزهة النظر فى توضيح نخبة الفكر ص ۱۰۵، وعلوم الحديث لابن الصلاح ص ٤٦، وفتح المغيث ج ۱ ص ۲۱۸، ۲۲۰، الفرع الرابع من الفروع السبعة بعد بحث المقطوع.

۲) احياء علوم الدين ص ۵۰۶، كتاب اداب النكاح، العاشر: فى اداب الجماع

۳) مصنف ابن ابى شيبة ج ۹ ص ۳۳۵، كتاب النكاح، باب ما يومر به الرجل اذا دخل على اهله، رقم ۱۷٤۳۹، و ج ۱۵ ص ۳۵۱، كتاب الدعاء، باب ما يدعو به الرجل اذا دخل على اهله، رقم ۳۰۳۵۳

٤) اوګورئ: اتحاف السادة المتقين ج ۶ ص ۱۷۳، كتاب اداب النكاح

۵) صحيح البخارى ج ۲ ص ۹٤۵، كتاب الدعوات، باب ما يقول اذا اتى اهله، رقم (۶۳۸۸)، وصحيح مسلم، كتاب النكاح، باب ما يستحب ان يقوله عند الجماع رقم ۳۵۳۳.

او هر چه د ابن مسعود ﷺ د اثر تعلق دې نو هغه د انزال نه پس د جامو د اغوستلو نه پس حالت باندې محمول کېدلې شي. والله اعلم

**قوله:** فَقُضِيَ بَيْنَهُمَا وَلَدٌ لَمْ يَضُرَّهُ: بيا د هغوی دواړو ترمینځه اولاد مقدر شي نو هغه ته شیطان ضرر نه شي رسولې.

د ﴿قضی﴾ ډیر معاني دي. دلته د ټولو نه غوره د تقدیر معنی ده. ځکه چه د صحیح مسلم په حدیث کښې ﴿فانه ان یقدر بینهما ولد فی ذلك﴾(۱) الفاظ راغلي دي.
د دې نه علاوه د حکم په معنی کښې هم کېدلې شي. (۲)

بیا دلته ﴿فقضی بینهما﴾ د اکثر حضراتو په نزد د تثنیه په ضمیر سره دې، او د حموی او مستملی په نسخو کښې ﴿فقضی بینهم﴾ د جمع صیغې سره راغلي دي، د تثنیه والا نسخه راجحه ده، خو جمع هم په تثنیه باندې محمول کېدلې شي. ځکه چه اقل د جمع دوه دي. (۳)
**د لم یضره څه مطلب دې؟** : د عدم اضرار شیطان یو مطلب خو دا دې چه د شیطان به په هغه باندې تسلط نه حاصلیږي. یعنی د الله پاك د نوم د اخستلو د وجې نه به هغه ماشوم د الله پاك په محفوظ بندګانو کښې شي چه په هغه باندې د انسان وس نه چلیږي، لکه د الله پاك ارشاد دې ﴿إِنَّ عِبَادِي لَيْسَ لَكَ عَلَيْهِمْ سُلْطَانٌ﴾(٤) یعنی زما په په بندګانو باندې ستا تسلط نشته، دا امکان هم ذکر کړې شوې دې چه د دې نه دې عموم مراد واخستلې شي، یعنی شیطان به هغه ته هیڅ قسم ضرر او نه رسوی. خو په دې صورت کښې به د هغه ماشوم د همیشه دپاره معصوم کېدل لازم شي، ظاهره ده چه دا خبره صحیح نه ده.
په دې وجه علماء کرام فرمائي چه د دې عموم نه مراد اخستلو په ځائې خصوص مراد کړې شي. یعنی شیطان هغه ته ضرر عقلي یا بدني کښې نه شي اخته کولې چه شیطان په هغه باندې اثر انداز شي چه هغه مخبوط العقل جوړ کړي، یا هغه ته بدني طور نقصان اورسوی.
یو احتمال دا هم بیان کړې شوې دې چه د پیدائش په وخت به هغه ماشوم ته د شیطان د مس نه حفاظت حاصل شي.
خو دا خبره دهغه حدیث منافی ده چه په هغې کښې ذکر دی چه د شیطان د مس نه سوا د مریم او د هغه د ځوئې سیدنا عیسی ﷺ نه بل چاته هم استثناء نشته. (۵)

---

۱) صحیح مسلم. کتاب النکاح. باب ما یستحب ان یقوله عند الجماع رقم ۳۵۳۳.
۲) اوګورئ: شرح الکرمانی ج ۲ ص ۱۸۳، وعمدة القاری ج ۲ ص ۲۶۸.
۳) فتح الباری ج ۱ ص ۲٤۲
٤) سورة الحجر : ٤۲
۵) قال ابوهریرة رضی الله عنه : سمعت رسول الله صلی الله علیه وسلم یقول : ما من بنی ادم مولود الا یمسه الشیطان حین یولد، فیستهل صارخا من مس الشیطان، غیر مریم وابنها. صحیح البخاری ج ۱ ص ٤۸۸، کتاب احادیث الانبیاء، باب قول الله تعالی : ﴿واذکر فی الکتاب مریم﴾ رقم ۳٤۳۱

داؤدي رحمه الله فرمائي چه د دې ضرر نه د کفر په فتنه کښې اخته کول مقصود دی، يعنی که د جماع په وخت ئې دعا اولوستلې نو هغه ماشوم به د شيطان د اغوا او تضليل کښې اخته کيدو سره په کفر کښې د واقع کيدو نه بچ شي

ګويا د دې دعا د لوستلو دپاره دا ډير لوئې بشارت دې چه دا ماشوم توحيد او ايمان باندې مري. يو مطلب دا هم بيان کړې شوې دې چه که سړې د جماع په وخت تسميه اونه لولی نو شيطان به د هغه ذکر سره يوځائې کيدو باندې په جماع کښې شريك شي. (۱)

د دې نه معلومه شوه چه که بسم الله اولولی نو د شيطان د مشارکت نه به ئې حفاظت اوشی او د شيطان د عدم مشارکت فائده ظاهره ده چه د ماشوم طرف ته به عائد وی. (۲)

**فائده**: علامه کرماني رحمه الله فرمائي چه هغوی يوه نسخه ليدلې دې چه د فربري رحمه الله مخکښې لوستلې شوې وو، په دې کښې دا اضافه ده:

**﴿قيل لابي عبد الله: فان لم يعرف بالعربية ايقول بالفارسية؟ قال نعم﴾**(۳)

يعنې د امام بخاري رحمه الله نه تپوس اوشو چه يو سړې له عربي نه ورځي نو ايا هغه ته به دا دعا په فارسئ کښې د وئيلو اجازت وی؟ وې فرمائيل: او! **والله سبحانه وتعالیٰ اعلم**

## ⑨ باب: مَا يَقُولُ عِنْدَ الْخَلَاءِ

**قوله**: خلاء: خالی فضاء ته وئيلې شی، روستو ئې د قضاء حاجت او اودس په ځائې اطلاق شروع شو (٤)

دلته عبارت مقدر دې، د عبارت تقدير داسې دې چه: **﴿ما يقول عند ارادة الدخول في الخلاء﴾** دا په هغه صورت کښې دې چه کله بيت الخلاء جوړه وی او که بيت الخلاء جوړه نه وی نو بيا هيڅ تقدير ته ضرورت نشته. (۵)

**د مخکښې باب سره مناسبت**: د دې باب د مخکښې باب سره مناسبت بالکل واضح دې، ځکه چه په دواړو بابونو کښې د دعا د لوستلو ذکر دې. (۶)

**د ترجمة الباب مقصد**: په ترجمة الباب سره د امام بخاري رحمه الله مقصد دعا لره بيانول دی

---

۱) کما اورد الطبری بسنده عن مجاهد قال: اذا جامع الرجل ولم يسم انطوی الجان علی احليله فجامع معه. جامع البيان للطبری ۲۲/۲٤۸، تحت قوله تعالی فی سورة الرحمن: ﴿لم يطمثهن انس قبلهم ولا جآن﴾

۲) اوګورئ عمدة القاری ج ۲ ص ۲٦۹. واتحاف السادة المتقين ج ۶ ص ۱۷٤. وسبل السلام ج ۳ ص ۳۹۰. کتاب النکاح. باب عشرة النساء رقم ۹٦۰.

۳) فتح الباری ج ۱ ص ۲٤۲، وشرح الکرمانی ج ۲ ص ۱۸۳، وفيه قيل لابی عبيد بدل ابی عبيد الله فانتبه.

٤) اوګورئ: تاج العروس ج ۳۸ ص ۱۳، ۱٤، مادة: خلو

۵) فتح الباری ج ۱ ص ۲٤۲

٦) اوګورئ: عمدة القاری ج ۲ ص ۲۷۰

کومه چه بیت الخلاء ته د تلو نه مخکښې لوستلې شي، دا دعا بالاتفاق مستحب ده. (۱)

۱۴۲ : ﴿حَدَّثَنَا آدَمُ قَالَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ عَبْدِ الْعَزِيزِ بْنِ صُهَيْبٍ قَالَ سَمِعْتُ أَنَسًا (۲) يَقُولُ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا دَخَلَ الْخَلَاءَ قَالَ اللَّهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنَ الْخُبُثِ وَالْخَبَائِثِ. تَابَعَهُ ابْنُ عَرْعَرَةَ عَنْ شُعْبَةَ وَقَالَ غُنْدَرٌ عَنْ شُعْبَةَ إِذَا أَتَى الْخَلَاءَ وَقَالَ مُوسَى عَنْ حَمَّادٍ إِذَا دَخَلَ وَقَالَ سَعِيدُ بْنُ زَيْدٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ إِذَا أَرَادَ أَنْ يَدْخُلَ﴾ [۵۹۲۳]

## رجال الحدیث

① **ادم** : دا ابو الحسن آدم بن ابی ایاس عبد الرحمن العسقلانی رحمه الله دې، د هغوی حالات په کتاب الایمان، باب المسلم من سلم المسلمون من لسانه ویده د لاندې تیر شوې دی. (۳)

② **شعبة** : دا امیر المومنین فی الحدیث امام شعبه بن الحجاج عتکی بصری رحمه الله دې. د هغوی حالات هم په مذکوره کتاب او باب کښې تیر شوې دی. (٤)

③ **عبدالعزیز بن صهیب**: دا عبد العزیز بن صهیب بنانی بصری رحمه الله دې. د هغوی حالات په کتاب الایمان، باب حب الرسول ﷺ من الایمان د لاندې تیر شوې دی. (۵)

④ **سیدنا انس** رضی الله عنه : د سیدنا انس رضی الله عنه حالات هم په کتاب الایمان باب من الایمان ان یحب لاخیه مایحب لنفسه د لاندې تیر شوې دی. (٦)

**قوله:** كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا دَخَلَ الْخَلَاءَ قَالَ اللَّهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ: رسول الله ﷺ چه به کله بیت الخلاء ته داخلیدو نو دا دعا به ئې لوستله.

---

۱) اوګورئ : حاشیة ابن عابدین ج ۱ ص ۸۱، سنن الوضوء، ومواهب الجلیل ج ۱ ص ۳۹۲، کتاب الطهارة، فصل فی اداب قضاء الحاجة، وحاشیة الدسوقی علی الشرح الکبیر ج ۱ ص ۱۷۷، فصل فی ندب لقضاء الحاجة، والمجموع ج ۲ ص ۷۳، ۷٤ و ۷۹، باب الاستطابة، والمغنی ج ۱ ص ۱۰۹، فصول فی اداب التخلی.

۲) قوله : انسا رضی الله تعالی عنه الحدیث اخرجه البخاری ایضا فی صحیحه ج ۲ ص ۹۳۶، کتاب الدعوات باب الدعاء عند الخلاء رقم ۶۳۲۲، ومسلم فی صحیحه، فی کتاب الحیض، باب ما یقول اذا اراد دخول الخلاء، رقم ۸۳۱، ۸۳۲، والنسائی فی سننه، فی کتاب الطهارة، باب القول عند دخول الخلاء رقم ۱۹، وابوداؤد فی سننه، فی کتاب الطهارة، باب ما یقول الرجل اذا دخل الخلاء، رقم ٤، ۵، والترمذی فی جامعه، فی کتاب الطهارة، باب ما یقول اذا دخل الخلاء رقم ۵، ۶، وابن ماجة فی سننه، فی کتاب الطهارة، باب ما یقول الرجل اذا دخل الخلاء رقم ۲۹۸.

۳) کشف الباری ج ۱ ص ۶۷۸

٤) بورته حواله

۵) کشف الباری ج ۲ ص ۱۲

٦) کشف الباری ج ۲ ص ٤

دا دعا به په هر هغه ځائې کښې لوستلې شي چرته چه قضاء حاجت کولې شي برابره خبره ده که هغه ځائې د قضاء حاجت دپاره باقاعده جوړکړې شوې وي يا خالي ځائې وي.
امام ابوداؤد رحمه الله د سيدنا زيد بن ارقم رضي الله عنه نه يو مرفوع حديث نقل کړې دې!

﴿ ان هذه الحشوش محتضرة، فاذا اتى احدكم الخلاء فليقل : اعوذ بالله من الخبث والخبائث ﴾(۱)
يعنى د قضاء حاجت دپاره جوړ شوى دا ځايونه داسې دى چه په دې کښې جنات او شيطانان حاضر وى. لهذا کله چه په تاسو کښې څوك هلته ځى نو دا دعا دې اولولى.
د دې حديث نه معلومه شوه چه دا دعا به صرف په هغه مواضع او ځايونو کښې وئيلې شي کوم چه د قضاء حاجت دپاره جوړ کړې شوې دى.
خو راجحه دا ده چه چرته هم انسان د قضاء حاجت دپاره کينى برابره خبره ده که هغه ځايونه د قضاء حاجت دپاره وى يا ميدان او ځنګل وى، په هر صورت کښې به دا دعا لوستلې شى، ځکه چه د دې مقصد تعوذ من شر الشيطان دې، او شيطانان چه څنګه په بيوت الخلاء کښې نقصان رسوى دغه شان بهر هم رسوى، پس د سيدنا ابوهريره رضي الله عنه په يو حديث کښې دى!

﴿ ومن اتى الغائط فليستتر فان لم يجد الا ان يجمع كثيبا من رمل، فليستدبره، فان الشيطان يلعب بمقاعد بنى ادم ﴾(۲) يعنى څوك چه د قضاء حاجت دپاره ځى هغه له پکار دى چه ښه پرده اوکړى، که د شړو د ډهيرکى د جمع کولو نه علاوه بل څه صورت او نه مومى نو دغه شان کولو سره دې هغې ته شا کړى، ځکه چه شيطان د انسان د مقعد سره لوبې کوى.
معلومه شوه چه د شيطان اثرات هر ځائې کښې وى، په دې وجه دعا به هم په هره موقع باندې کولې شى.
**دا دعا به کله لوستلې شى؟** : د جمهور علماء کرامو او ائمه اربعه په نزد چرته چه بيت الخلاء جوړه وى هلته هغې ته د داخليدو نه مخکښې مخکښې او چرته چه جوړه نه وى هلته د کيناستلو نه مخکښې، يعنى د کپړو د اوچتولو نه مخکښې مخکښې به دا دعا لوستلې شى، بيت الخلاء ته د داخليدو نه پس، هم دغه شان د جامو د ويستلو نه پس به په ژبې سره دا الفاظ نه شى ادا کولې، په داسې صورت کښې به ئې د جمهورو په نزد په زړه کښې لولى، په ژبې سره به تلفظ نه شى کولې.
او امام ابن سيرين او امام ابراهيم نخعى رحمهما الله فرمائى چه په بيت الخلاء کښې دننه، يا د کشف عورت نه پس د دعا په لوستلو کښې هيڅ باك نشته. (۳)

۱) سنن ابى داؤد فى كتاب الطهارة، باب ما يقول الرجل اذا دخل الخلاء، رقم ۶
۲) سنن ابى داؤد، كتاب الطهارة، باب الاستتار فى الخلاء رقم ۳۵
۳) قال ابن عابدين : الظاهر انه يسمى قبل رفع ثيابه ان كان فى غير المكان المعد لقضاء الحاجة، والا فقبل دخوله. فلو نسى فيهما سمى قلبه، ولا يحرك لسانه، تعظيما لاسم الله تعالى، رد المحتار ج ۱ ص ۸۱، سنن الوضوء. وانظر المواهب الجليل ج ۱ ص ۳۹۲، كتاب الطهارة، فصل فى اداب قضاء الحاجة، وحاشية الدسوقى على الشرح الكبير، ج ۱ ص ۱۷۷، فصل فى ندب لقضاء الحاجة، والمجموع ج ۲ ص ۷۳، ۷۴ و ۷۹، باب الاستطابة، والمغنى ج ۱ ص ۱۰۹، فصول فى اداب التخلى.

**د مجوزينو دلائل او د مانعينو جواب** : مجوزين فرمائي چه دالله پاك ارشاد دي ﴿إِلَيْهِ يَصْعَدُ الْكَلِمُ الطَّيِّبُ﴾(١)
د دې آيت كريمه په رڼا كښې هره كلمه او هره دعا د الله پاك طرف ته خيژي، لهذا بيت الخلاء كښې دننه په لوستلو كښې هيڅ باك نشته.

هم دغه شان سيده عائشه رضي الله عنها فرمائي چه : ﴿كان النبى ﷺ يذكر الله على كل احيانه﴾(٢)
يعنى رسول الله ﷺ به په هر حال كښې د الله پاك ذكر كولو.

په دې حديث كښې د ﴿على كل حال﴾ په عموم كښې قضاء حاجت هم داخل دې، لهذا د قضاء حاجت په موقع باندې هم دا دعا لوستلې كيدې شى.

جمهور علماء كرام فرمائي چه په آيت كريمه كښې د ﴿صعود﴾ نه مراد قبوليت دې.(٣)

هم دغه شان په روايت كښې د ﴿احيان﴾ نه مراد هغه عموم نه دې كوم چه تاسو اخلئ، بلكه د ﴿احيانه﴾ ضمير د ذكر طرف ته راجع دې د رسول الله ﷺ طرف ته نه، مطلب دا دې چه رسول الله ﷺ به په هغه ټولو احيان او اوقات كښې ذكر كولو په كومو كښې چه ذكر مناسب دې.
يا د دې نه مراد عموم احوال دې، يعنى رسول الله ﷺ به طاهرا ، محدثا ، قائما ، قاعدا ، مضجعا او ماشيا په هر حالت كښې د الله پاك ذكر كولو.
يا د دې ذكر نه مراد ذكر قلبى هم كيدې شى، يعنى رسول الله ﷺ به هر وخت په ذكر لسانى كښې مشغول وو، يو وخت به هم ترې غافل نه وو، خو چرته چه به ذكر لسانى نه شو كيدې هلته به ئې صرف ذكر قلبى كولو او د ذكر قلبى په صورت كښې هيڅ حال او وخت مستثنى نه وى. هر وخت كم از كم ذكر قلبى ضرور كيږى. (٤)

**قوله**: اَللّٰهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنَ الْخُبُثِ وَالْخَبَائِثِ: اې الله! زه د مذكر شيطانانو او مؤنث شيطانانو د شر نه ستا پناه غواړم.

**قوله**: الْخُبُث: د باء په ضمې سره دې، په باء باندې سكون هم لوستلې شوې دې، پس دواړو

١) فاطر ص ١٠
٢) صحيح مسلم، كتاب الطهارة، باب ذكر الله تعالى فى حال الجنابة وغيرها، رقم ٨٢٦، وسنن ابى داؤدو كتاب الطهارة، باب فى الرجل يذكر الله تعالى على غير طهر، رقم ١٨
٣ ) انظر الجامع لأحكام القرآن للقرطبي: ١١٤\ ٣٢٩، سورة فاطر، وقال المحلى: اليه يصعد الكلم الطيب: يعلمه. وقال الصاوى: أشار بذلک الى أن فى الكلام مجازا. فالصعود مجاز عن العلم، كما يقال: ارتفع الأمر الى القاضى. يعنى علمه. عبر عنه بالصعود. اشارة لقبوله. لأن موضع الثوب فوق. وموضع العذاب أسفل..... انظر تفسير الجلالين مع حاشية الصاوى: ١٣\ ٢٧٦.
٤) اوګورئ : شرح النووى على صحيح مسلم ج ٤ ص ٢٩١، كتاب الطهارة، باب ذكر الله تعالى فى حال الجنابة وغيرها، وبذل المجهود ج ١ ص ٢٢٧، ٢٢٨

طریقو سره روایة لوستل ثابت دی. (۱)
البته امام خطابی رحمه الله د باء سکون ته د محدثینو غلطی وئیلي ده. (۲)
خو امام نووی رحمه الله وغیره مختلف حضراتو د هغوی تردید کړي دي او فرمائي چه د سکون انکار صحیح نه دي. ځکه چه په داسي کلماتو کښ اهل عرب تخفیفا سکون هم لولي، پس ﴿ کتب، رسل، عنق، اذن ﴾ او په داسي الفاظو کښ اهل عربیت تصریح کړي ده چه په دواړو طریقو سره لوستل ئي صحیح دی (۳)
امام نووی رحمه الله فرمائي چه کیدي شي امام خطابی رحمه الله د هغه خلقو تغلیط کړي وی کوم چه په دي لفظ کښ سکون ته اصل وائي، که دا خبره وی نو د هغوی خبره به صحیح وی، خو عبارت به مبهم او موهم وی. (٤)
علامه فیومی رحمه الله فرمائي چه دا لفظ به د باء په ضمي سره لوستلي شي او د باء په سکون سره د قبیله بنو تمیم لغت دي، لهذا دغه شان ئي هم لوستلي شي. (۵)
امام ابو عبید رحمه الله هم دا په سکون د باء سرة روایت کړي دي. (۶)

**﴿ خبائث ﴾ د ﴿ خبیثة ﴾ جمع ده.**

**د ﴿ الخبث ﴾ او ﴿ الخبائث ﴾ نه څه مراد دي؟** امام خطابی رحمه الله فرمائي چه د دي نه مراد ﴿ذکران الشیاطین واناثهم﴾ مراد دی. (۷)

اصل کښ د ﴿ خبث ﴾ معنی د شر او کفر ده، بعض حضرات فرمائي چه د ﴿ خبث ﴾ نه مراد شیاطین او د ﴿ خبائث ﴾ نه مراد معاصی دی.

د ﴿ خبث ﴾ بالضم نه مذکر شیاطین او د ﴿ خبائث ﴾ نه مونث شیاطین مراد کړي شوي دی او که ﴿ خبث ﴾ په سکون سره وی نو په دي کښ په د شر او کفر معنی وی او د خبائث نه به تول خبیث څیزونه او احوال خبیثه مراد وی، په دي وجه د بالضم په مقابله کښ په بالسکون کښ عموم زیات دي، مذکر او مؤنث شیاطین هم په دي کښ داخلیږی او نور خبائث هم.

ابن الاعرابی رحمه الله فرمائي چه د عربو په کلام کښ ﴿ خبث ﴾ هر ناخوښه او مکروه څیز ته وئیلي شي، که به کلام کښ دننه خبث وی نو کنځل مراد دی. که ملل په دي متصف کړي

---

۱) شرح النووی علی صحیح مسلم ج ٤ ص ۲۹۳، کتاب الطهارة، باب ما یقول اذا اراد دخول الخلاء
۲) اصلاح غلط المحدثین ص ٤۸، ٤۹، ومعالم السنن ج ۱ ص ۱۶، کتاب الطهارة، باب ما یقول اذا دخل الخلاء.
۳) شرح النووی علی صحیح مسلم ج ٤ ص ۲۹۳، کتاب الطهارة، باب ما یقول اذا اراد دخول الخلاء
٤) پورته حواله
۵) المصباح المنیر للفیومی ج ۱ ص ۱۶۲، مادة : خبث
۶) انظر غریب الحدیث لابی عبید القاسم بن سلام ج ۱ ص ٤۱۶، واصلاح غلط المحدثین ص ٤۸، ٤۹
۷) معالم السنن ج ۱ ص ۱۶، کتاب الطهارة، باب ما یقول اذا دخل الخلاء.

شی نو مراد به ترې کفر وی، که مطعومات پرې متصف کړې شی نو مراد به ترې حرام وی، که د مشروبات دپاره استعمال کړې شی نو د دې نه به ضار یعنی نقصان ورکونکې معنی اخستلې شی. (١) والله اعلم

دا دعا بالاتفاق مستحب ده او بیت الخلاء ته د تلو په مجمع علیه ادابو کښې ده. (٢)

رسول الله ﷺ به د تعبد په طور لوستله، ځکه چه هغه د شیطان د شر نه محفوظ وو، د امت د تعلیم دپاره به ئې ځائې په ځائې لوستله. صلی الله علیه وسلم

**فائده** د ابن عساکر رحمه الله په نسخه کښې دلته دا عبارت هم دې: ﴿ قال ابوعبدالله یعنی البخاری ویقال الخبث ﴾ یعنی امام بخاری رحمه الله فرمائی چه دا لفظ د باء په سکون سره هم لوستلې شوې دې. اوس که د باء سکون د ضمې نه تخفیف کولو سره لوستلې شوې وی نو د هغې معنی تفصیلا تیرې شوې او که د دې نه مخفف نه وی نو بیا دا د شر او کفر په معنی کښې دې، لکه چه د ابن الاعرابی رحمه الله په حوالې سره تفصیل بیان کړې شوې دې. (٣)

﴿ تَابَعَهُ ابْنُ عَرْعَرَةَ عَنْ شُعْبَةَ وَقَالَ غُنْدَرٌ عَنْ شُعْبَةَ إِذَا أَتَى الْخَلَاءَ وَقَالَ مُوسَى عَنْ حَمَّادٍ إِذَا دَخَلَ وَقَالَ سَعِيدُ بْنُ زَيْدٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ إِذَا أَرَادَ أَنْ يَدْخُلَ ﴾

**د ذکر شوې تعلیقاتو د ذکر کولو مقصد**: دلته امام بخاری رحمه الله په درې قسمه روایاتو کښې فرق او تطبیق کول غواړی.

په یو روایت کښې د ﴿ اذا دخل ﴾ الفاظ دی، په بل روایت کښې د ﴿ اذا اتی الخلاء ﴾ الفاظ دی او په دریم روایت کښې د ﴿ اذا اراد ان یدخل ﴾ الفاظ دی.

د ادم عن شعبة په طریق کښې د ﴿ اذا دخل الخلاء ﴾ الفاظ راغلې دی، محمد بن عرعره د ادم متابعت تامه کړې دې او بعینه هم دا الفاظ ئې نقل کړې دی.

او د موسی بن حماد عن عبد العزیز بن صهیب په طریق سره هم دا الفاظ نقل دی، خو دا متابعت قاصره دې.

د دې طرق په مقابله کښې د غندر عن شعبة په طریق کښې د ﴿ اذا دخل الخلاء ﴾ په ځائې ﴿ اذا اتی الخلاء ﴾ الفاظ دی. په دواړو کښې فرق واضح دې چه ﴿ دخل ﴾ په ظاهره کښې د هغه مواضع سره خاص دې کوم چه د قضاء حاجت دپاره جوړ کړې شوې وی او ﴿ اتی ﴾ د خپل عموم د وجې نه بیوت الخلاء او میدان ټولو ته شامل دې.

بیا روایت ﴿ اذا دخل ﴾ یا ﴿ اذا اتی ﴾ دواړه قسمه روایتونو نه واضح نه دې چه آیا دا دعا به د داخلیدو نه پس لوستلې شی یا د هغې نه مخکښې.

١) پورته حواله اوګورئ

٢) شرح النووی علی صحیح مسلم ج ٤ ص ٢٩٤، کتاب الطهارة، باب ما یقول اذا اراد دخول الخلاء

٣) اوګورئ فتح الباری ج ١ ص ٢٤٣

خو ﴿ سعيدبن زيدعن عبدالعزيز ﴾ په طريق سره الفاظو دا هم واضحه کړه چه دلته د دخول اراده مراد ده، ځکه چه الفاظ دي : ﴿ اذااراد ان يدخل ﴾ والله اعلم

## د مذکوره متابعات او تعليقات تخريج

① **ابن عرعره عن شعبه** : دا روايت امام بخاري رحمه الله وړاندې په کتاب الدعوات باب الدعاء عند الخلاء کښې تخريج کړې دې. (١)

② **وقال غندر عن شعبه** : حافظ او علامه عيني رحمه الله فرمائي چه دا روايت ﴿ غندرعن شعبة عن عبدالعزيز ﴾ په طريق سره په مسند بزار کښې بعينه هم په دې الفاظو سره مروى دى او په مسند احمد کښې د ﴿ اذااتی الخلاء ﴾ په ځائې ﴿ اذادخل ﴾ الفاظ دى. (٢)

خو سره د تتبع او تلاش نه مونږ ته په مسند بزار کښې دا روايت ملاؤ نه شو، او په مسند احمد کښې بعينه هم دا الفاظ يعنى ﴿ اذااتی الخلاء ﴾ الفاظ په ذکر شوى سند سره موجود دى(٣)

③ **موسى عن حماد** : ﴿ موسی بن اسماعيل التبوذکی عن حماد، عبدالعزيزبن صهيب عن انس ﴾ په طريق سره دا روايت امام بيهقي رحمه الله په السنن الكبرى کښې موصولا نقل کړې دې. (٤)

④ **سعيد بن زيد، حدثنا عبدالعزيز** : دا روايت امام بخاري رحمه الله په الادب المفرد کښې موصولا تخريج کړې دې، پس فرمائي : ﴿ حدثنا ابوالنعمان، حدثنا سعيدبن زيد، حدثنا عبدالعزيزبن صهيب قال حدثنی انس قال : کان النبی ﷺ اذا اراد ان يدخل الخلاء قال.. ﴾(٥)

دا سعيد بن زيد د مشهور محدث حماد بن زيد بن درهم رور دې، په هغه باندې اګر چه بعض حضرانو کلام کړې دې او حافظ ابن حجر رحمه الله هغه ته ﴿ صدوق له اوهام ﴾(٦) وئيلي دى خو د امام بخاري رحمه الله سره سره ډير محدثينو د هغه تعديل او توثيق کړې دې. (٧) کماسيأتی فی ترجمته ان شاء الله تعالى

د دې نه علاوه په سنن کبرى کښې د دې متابع روايت هم موجود دې. (٨)

---

١) اوګورئ : صحيح البخاري ج ٢ ص ٩٣٦، رقم ٦٣٢٢
٢) اوګورئ : فتح البارى ج ١ ص ٢٤٤، وعمدة القارى ج ٢ ص ٢٧٢
٣) اوګورئ : مسند احمد ج ٣ ص ٢٨٢، رقم ١٤٠٤٤، مسند انس بن مالک رضي الله عنه
٤) اوګورئ : السنن الكبرى للبيهقي ج ١ص ٩٥، طبع قديم و ج ١ ص ١٥٤ طبع جديد، رقم ٤٥٢
٥) الادب المفرد ص ٢٤٠، کتاب الاذکار، باب دعوات النبى ﷺ رقم ٦٩٢
٦ ) تقريب التهذيب ص ٢٣٦، رقم ٢٣١٢
٧) اوګورئ : تحرير تقريب التهذيب ج ٢ ص ٢٩ و ٣٠، رقم ٢٣١٢
٨)قال البيهقى رحمه الله:ثنا مسدد،ثنا عبدالوارث، عن عبدالعزيز، عن انس ان رسول الله صلى الله عليه وسلم كان اذا اراد الخلاء قال...السنن الكبرى للبيهقى ج١ ص ٩٥، طبع قديم ج ١ ص ١٥٤، طبع جديد رقم ٤٥٣

## رجال الحديث

① **محمد بن عرعره** : دا محمد بن عرعره بن البرند القرشی السامی رحمه الله دي، د هغه حالات په كتاب الايمان، باب خوف المؤمن من ان يحبط عمله وهولا يشعر د لاندې تير شوې دی. (١)

② **شعبة** : دا امیر المومنین فی الحدیث امام شعبه بن الحجاج عتکی بصری رحمه الله دې. د هغوی حالات هم په مذكوره كتاب او باب كښې تير شوې دی. (٢)

③ **غندر** : دا ابو عبدالله محمد بن جعفر المعروف بغندر الهذلی رحمه الله دي، د هغه حالات په كتاب الايمان د باب ظلم دون ظلم د لاندې تير شوې دی. (٣)

④ **موسى** : دا ابو سلمه موسى بن اسماعيل تبوذكى بصرى رحمه الله دي. د هغوی حالات په كتاب بدء الوحی كښې د څلورم حديث د لاندې مختصر او په كتاب العلم كښې د باب من اجاب الفتيا باشارة اليد والراس د لاندې تفصيلا ذكر شوې دی. (٤)

⑤ **حماد**. دا امام ابو سلمه حماد بن سلمه بن دينار الربعی البصری رحمه الله دي. (٥)

هغه د ايوب سختياني، ثابت بناني، حماد بن ابی سليمان، حميد الطويل، خالد الحذاء، ربيعه بن ابی عبدالرحمن، زيد بن اسلم، د خپل والد سلمه بن دينار، سليمان التيمی، سهيل بن ابی صالح، عبدالعزيز بن صهيب، عمرو بن دينار المكی، محمد بن اسحاق، هشام بن حسان او ابو التياح يزيد بن حميد الضبعی رحمهم الله وغيره روايت كوی.

دهغه نه په روايت كونكو كښې ادم بن ابی اياس، روح بن عباده، سفيان الثوری، «وهومن اقرانه»، سليمان بن حرب، ابوداؤد طيالسی، امام شعبه، «وهو اكبر منه» امام عبدالله بن مبارك، عبدالله بن مسلمه القعنبی، امام عبدالرحمن بن مهدی، عبد الصمد بن عبدالوارث، عبد الملك بن عبدالعزيز بن جريج، عفان بن مسلم، امام ابو نعيم، امام مالك بن انس «وهومن اقرانه»، ابو النعمان بن الفضل عارم، ابو سلمه موسى بن اسماعيل تبوذكی، نضر بن شميل، امام وكيع، امام يحيى بن سعيد القطان او يزيد بن هارون رحمهم الله په شان ډير اساطين حديث شامل دی. (٦) دې د حميد الطويل رحمه الله خورئې دې. (٧)

---

١) كشف البارى ج ٢ص ٥٥٧
٢) كشف البارى ج ١ ص ٦٧٨
٣) كشف البارى ج ٢ ص ٢٥٠
٤) كشف البارى ج ١ ص ٤٣٣، ج ٣ ص ٤٧٧
٥) اوګورئ: تهذيب الكمال ج ٧ ص ٢٥٣، رقم ١٤٨٢
٦) د شيوخ او تلامذه د تفصيل دپاره اوګورئ: تهذيب الكمال ج ٧ ص ٢٥٤ تا ٢٥٩
٧) تهذيب الكمال ج ٧ ص ٢٥٩

امام احمد رحمه الله فرمائی: ﴿حماد بن سلمة اثبت الناس في حميد الطويل، سمع منه قديما﴾(۱)
يعنی حماد بن سلمه د خپل ماما حميد الطويل په راويانو کښې د ټولو نه مضبوط دې، د هغوی نه د هغه سماع قديم ده.

امام يحيى بن معين رحمه الله فرمائی: ﴿حماد بن سلمة ثقة﴾(۲)

هم دغه شان هغه فرمائی: ﴿اثبت الناس في ثابت البناني حماد بن سلمة﴾(۳)

امام ابن المديني رحمه الله فرمائی: ﴿لم يكن في اصحاب ثابت اثبت من حماد بن سلمة﴾(٤)

هم دغه شان فرمائی: ﴿هو عندي حجة في الرجال، وهو اعلم الناس بثابت البناني وعمار بن ابي عمار، ومن تكلم في حماد فاتهموه في الدين﴾(۵) يعنی هغه زما په نزد په (علم) رجال کښې حجت دې، د ثابت بناني او عمار بن ابی عمار نه په روايت کونکو کښې د ټولو نه زيات علم والا دې، څوک چه په هغه باندې کلام کوی هغه دينی اعتبار سره متهم اوګڼړئ.

حجاج بن منهال رحمه الله فرمائی: ﴿حدثنا حماد بن سلمة، وكان من ائمة الدين﴾(٦)

امام عبد الرحمن بن مهدی رحمه الله فرمائی: ﴿حماد بن سلمة صحيح السماع، حسن اللقي، ادرك الناس، لم يتهم بلون من الالوان، ولم يلتبس بشئ، احسن ملكة نفسه ولسانه، ولم يطلقه على احد، ولا ذكر خلقا بسوء، فسلم، حتى مات﴾(۷)
يعنی حماد بن سلمه صحيح السماع دې، د مشائخو سره د هغه ښه ملاقاتونه دی، لوئې لوئې خلق ئې موندلي دی، په هيڅ قسم عيب سره متهم شوې نه دې، نه په يو څيز کښې ملوث شوې دې، په خپل نفس او ژبه باندې ئې ښه قابو بيا موندلې دې، د چا په باره کښې ئې خپله ژبه بې ځايه نه ده سپړدلې، د چا ئې په عيب سره ذکر نه دې کړې، پس د هر عيب نه صحيح سلامت پاتې کيدو سره رخصت شو.

امام عبد الله بن المبارك رحمه الله فرمائی: ﴿دخلت البصرة، فما رايت احدا اشبه بمسالك الاول من حماد بن سلمة﴾(۸) يعنی زه بصرې ته داخل شوم نو د حماد بن سلمه نه مې زيات د سلفو په لاره باندې روان څوک بيا نه موندل

۱) پورته حواله
۲) تهذيب الكمال ج ۷ ص ۲٦۲
۳) پورته حواله
٤) تهذيب الكمال ج ۷ ص ۲٦۳
۵) سير اعلام النبلا . ج ۷ ص ٤٤٦
٦) تهذيب الكمال ج ۷ ص ۲٦۳
۷) تهذيب الكمال ج ۷ ص ۲٦۳، ۲٦٤
۸) تهذيب الكمال ج ۷ ص ۲٦٤

ابن سعد رحمه الله فرمائى ﴿ وكان حماد بن سلمة ثقة كثير الحديث ﴾(١)

وهيب رحمه الله فرمائى : ﴿ كان حماد بن سلمة سيدنا، وكان حماد اعلمنا ﴾(٢)

امام ابن القطان رحمه الله فرمائى : ﴿ هو احد الاثبات فى الحديث، ومتحقق بالفقه، ومن اصحاب العربية الاول ﴾(٣) يعنى هغه په علم حديث كښ د اثبات نه وو، په فقه كښ محقق او په اولين اصحاب عربيت كښ وو.

ابو الفتح ازدى رحمه الله فرمائى : ﴿ هو امام فى الحديث وفى السنة، صدوق، حجة، من ذكره بشيء واته يريد شينه، وهو مبراعنه ﴾(٤) يعنى هغه په حديث او سنت كښ امام، صدوق او حجت دې، څوك چه په هغه باندې طعن كولو سره څۀ كلام كوى هغه د هغې نه برى دې.

ساجى رحمه الله فرمائى : ﴿ كان رجلا حافظا، ثقة، مامونا، لايطعن عليه الاضال مضل ﴾(٥)
يعنى هغه حافظ. ثقه او مامون وو. په هغه باندې صرف گمراه يا گمراه كونكې انسان طعن كولې شى.

امام عجلى رحمه الله فرمائى : ﴿ ثقة، رجل صالح، حسن الحديث ﴾(٦)

ابن عيينه رحمه الله فرمائى : ﴿ عالم بالله، عالم بالعلم ﴾(٧)
حماد بن سلمه د علم حديث سره سره د فقه او عربيت هم امام وو.

امام يونس رحمه الله فرمائى : ﴿ من حماد بن سلمة تعلمت العربية ﴾(٨)
يحيى يزيدى په خپله مرثيه كښ وائى :

اطالب النحو الا فابكه ۔۔۔ بعد ابى عمرو وحماد (٩)

يعنى اې د نحو طالب علمه! د ابو عمرو او حماد نه پس اوس په نحو باندې اوژاړه.
د نحو امام سيبويه د عربيت د علم د حاصلولو نه مخكښ د حماد مجلس ته تللو، يو كرت ئې د هغه د مستملى په حيثيت سره خلقو ته د هغه حديث رسولو چه شيخ اوفرمائيل : ﴿ قال رسول الله صلى الله عليه وسلم ما احد من اصحابى الا ولقد اخذت عليه الا ابا الدرداء ﴾ امام سيبويه املاء

---

١) طبقات ابن سعد ج ٧ ص ٢٨٢
٢) الجرح والتعديل ج ٣ ص ١٥٥. رقم ٢٦٣/٢٩١٦
٣) اكمال تهذيب الكمال ج ٤ ص ١٤٤
٤) پورته حواله
٥) پورته حواله
٦) معرفة الثقات للعجلى ج ١ ص ٣١٩، ٣٢٠. رقم ٣٥٤. واكمال تهذيب الكمال ج ٤ ص ١٤٥
٧) اكمال تهذيب الكمال ج ٤ ص ١٤٧
٨) سير اعلام النبلاء ج ٧ ص ٤٥٠
٩) اكمال تهذيب الكمال ج ٤ ص ١٤٣

كولو سره اوئيل : ﴿ليس ابوالدرداء﴾ شيخ ورته فورا لقمه وركړه چه سيبويه! تا غلطي اوكړه، دا ﴿ليس اباالدرداء﴾ دي، سيبويه اووې دا علم حاصلول ضروري دى، چه د هغې د حصول نه پس څوك غلطي نه شي راويستلې. پس د هغې نه روستو هغه د نحو په طلب كښې اولګيدو او د امام خليل نحوي رحمه الله شاګردي ئې اختيار كړه. (۱)

د ابن القطان رحمه الله قول مخكښې تير شوې شوې دې!

﴿هو احد الاثبات فى الحديث، ومتحقق بالفقه، ومن اصحاب العربية الاول﴾

د علم او فن د دومره اوچت مقام سره سره امام حماد بن سلمه رحمه الله د اعلى درجې عبادت ګزار او د ورع او تقوى سره هم متصف وو.

د هغه د عبادت اندازه تاسو د دې نه اولګوئ چه امام عبدالرحمن بن مهدى رحمه الله فرمائى كه حماد بن سلمه رحمه الله ته اوئيلې شى چه ستاسو مرګ به صبا له واقع كيږى نو هغوى سره به په عبادت كښې د مزيد اضافې ډپاره هيڅ نه وى. (۲)

عفان رحمه الله فرمائى : د حماد بن سلمه نه زيات عبادت ګزار خو ما ليدلې دې خو د هغه په شان د خير كارونو لره په پابندئ سره كونكې، د قران كريم تلاوت كونكې او اخلاص سره هر كار انجام ته رسونكې ما بل څوك نه دې ليدلې. (۳)

د وخت قدر څنګه كولې شى؟ د دې خبرې اندازه د دې نه اولګوئ چه موسى بن اسماعيل تبوذكى رحمه الله فرمائى چه كه زه اوايم چه ما كله هم حماد په خندا باندې نه دې ليدلې نو زه به په خپله خبره كښې رشتينې يم ځكه چه هغه به هميشه په څه نه څه كار كښې مشغول وو، يا خو به ئې حديث اورولو يا به ئې تلاوت كولو، يا به په تسبيح او تهليل كښې مشغول شو، يا به په مانځه كښې وو، خپله ټوله ورځ هغوى دغه شان تقسيم كړې وه. (۴)

ابن حبان رحمه الله فرمائى : ﴿وكان من العباد المجابين الدعوة﴾ (۵)

يعنى د هغوى شمير په مستجاب الدعوات عبادت كونكو كښې كيدو.

د امام حماد بن سلمه رحمه الله په حفظ او اتقان او جلالت شان باندې اتفاق دې، شاته چه كوم د ائمه جرح وتعديل اقوال نقل كړې شوې دى، د هغې ټولو نه دا خبره واضحه كيږى.

خو د هغوى په احاديثو كښې څه غرائب او اوهام موندلې شى، چه د هغې نه ډير امام ابن عدى رحمه الله په خپل كتاب كښې نقل كړې دى. (۶)

---

۱) اوګورئ : اكمال تهذيب الكمال ج ٤ ص ١٤٣، والجامع لاخلاق الراوى وآداب السامع : ج ٢ ص ٨٤، اتباع المستملى لفظ الحديث رقم ١٢٢٤

۲) سير اعلام النبلاء ج ۷ ص٤٤٧

۳) پورته حواله

۴) سير اعلام النبلاء ج ۷ ص٤٤٧، ٤٤٨

۵) الثقات لابن حبان ج ۶ ص ۲۱۶

۶) اوګورئ : الكامل لابن عدى ج ۲ ص ۲۵۹ تا ۲۶۶

حافظ ذهبي رحمه الله فرمائي : ﴿ وكان ثقة له اوهام ﴾(١)
هم دغه شان هغه فرمائي : ﴿ وله اوهام في سعة ما روى ﴾(٢)
بل ځائي كښ فرمائي : ﴿ امام ثقة، له اوهام وغرائب ﴾(٣)
ابن سعد فرمائي: ﴿ وربما حدث بالحديث المنكر ﴾(٤)
د حماد بن سلمه رحمه الله په باره كښ محدثينو دا هم تصريح كړې ده چه په اخر عمر كښ د هغوى په حافظه كښ معمولى بدلون راغلې وو، خو دا تغير د اختلاط حد ته نه وو رسيدلې.
هم دا وجه ده چه هغه لره ابن الكيال په خپل كتاب الكواكب النيرات كښ، حافظ علائى رحمه الله په خپل كتاب كتاب المختلطين كښ، او هم دغه شان برهان حلبي رحمه الله په خپل كتاب الاغتباط بمن رمي بالاختلاط كښ نه دې ذكر كړې.
خو د دې كتابونو محققينو د تتمه او محلق په طور د هغوى تذكره كړې ده. (٥)
حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي : ﴿ احد الائمة الاثبات، الا انه ساء حفظه في الاخر ﴾(٦)
يعنى هغه د ثبت ائمه كرامو نه يو دې خو په اخره كښ د هغوى حافظه خرابه شوې وه.
امام بيهقى رحمه الله په خلافيات كښ ليكلې دى:

﴿ هو احد الائمة المسلمين، الا انه لما طعن في السن، ساء حفظه، فلذلك ترك البخاري الاحتجاج بحديثه، واما مسلم فانه اجتهد واخرج من حديثه عن ثابت ما سمع منه قبل تغيره، وما سوى حديثه عن ثابت لايبلغ اكثر من اثنى عشر حديثا، اخرجها في الشواهد دون الاحتجاج، واذا كان الامر على هذا فالاحتياط لمن راقب الله تعالى، لايحتج بحديثه بما يجد في حديثه مما يخالف الثقات ﴾(٧)
يعنى حماد بن سلمه د ائمة المسلمين يو امام دې، خو چه عمر ئې زيات شو نو حافظه ئې خرابه شوه، هم په دې وجه امام بخارى رحمه الله د هغه په حديث سره احتجاج نه دې كړې، او امام مسلم رحمه الله د هغه صرف هغه احاديث تخريج كړې دى كوم چه هغه د ثابت رحمه الله نه د تغير نه مخكښ روايت كولو د هغه احاديثو نه علاوه ئې د نورو نه څو احاديث په طور د استشهاد تخريج كړې دى بغير د احتجاج كولو نه، د داسې احاديثو تعداد په د دولسو نه زيات نه

١) ميزان الاعتدال ج ١ ص ٥٩٠
٢) سير اعلام النبلاء ج ٧ ص ٤٤٦
٣) المغنى فى الضعفاء ج ١ ص ١٧١١
٤ ) الطبقات لابن سعد : ٧\ ٢٨٢.
٥) اوګورئ: الكواكب النيرات ص ٤٦٠، ٤٦١، محلق اولو ونهاية الاغتباط ص ٩٦. وكتاب المختلطين للعلائى ص ٢٥، ٢٦
٦) هدى السارى ص ٥٦٧
٧ ) اكمال لتهذيب الكمال لمغلطائى ج ٥ ص ١٤٥

وى، چه كله د هغه دا حال دې نو څوك چه د الله پاك نه ويره كوى د هغه دپاره احتياط دا دې چه د هغوى د داسې احاديثو نه استدلال او احتجاج اونكړې شى چه په كومو كښې هغه د ثقات راويانو مخالفت كوى

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى : ﴿ استشهد به البخارى تعليقا، ولم يخرج له احتجاجا، ولا مقرونا، ولا متابعة الا فى موضع واحد، قال فيه : قال لنا ابو الوليد، حدثنا حماد بن سلمة فذكره، وهو فى كتاب الرقاق، وهذه الصيغة يستعملها البخارى فى الاحاديث الموقوفة وفى المرفوعة أيضا إذا كان فى إسنادها من لا يحتج به عنده واحتج به مسلم والأربعة لكن قال الحاكم لم يحتج به مسلم إلا فى حديث ثابت عن أنس وأما باقى ما أخرج له فمتابعة زاد البيهقى أن ما عدا حديث ثابت لايبلغ عند مسلم اثنى عشر حديثا والله أعلم ﴾(١)

يعنى امام بخارى رحمه الله د حماد بن سلمه رحمه الله روايت تعليقا په طور د استشهاد ذكر كړې دې، هغه هم صرف په يو مقام باندې، د هغه نه علاوه ئې په يو ځائې كښې هم د هغه روايات احتجاجا، يا متابعة، يا مقرونا نه دى ذكر كړى، چرته چه ئې د هغه روايات نقل كړى دى په هغې كښې ئې هم د ﴿ قال لنا ﴾ الفاظ سره نقل كړې دې او دا صيغه امام بخارى رحمه الله د احاديث موقوفه په باره كښې ذكر كوى، يا بيا د داسې مرفوع احاديثو دپاره چه د هغې په سندونو كښې يو سړې د هغه په نزد د احتجاج قابل نه وى.

او د امام حماد بن سلمه رحمه الله نه امام مسلم او اصحابه سنن اربعه احتجاج كړې دې، خو امام حاكم رحمه الله فرمائى چه امام مسلم رحمه الله هم د حماد د صرف هغه رواياتو انتخاب كړې دې كوم چه هغه د ﴿ ثابت عن انس ﴾ په طريق سره نقل كوى، باقى روايات ئې متابعة تخريج كړې دى، امام بيهقى رحمه الله په دې باندې زياتى دا خبره ارشاد فرمائيلې ده چه د داسې زائد رواياتو تعداد د دولسو نه زيات نه دې.

حافظ رحمه الله په كتاب الرقاق كښې د ذكر شوې مقام معلق كيدل نه بلكه موصول كيدو ته راجح وئيلې دى، ځكه چه دلته د ﴿ قال لنا ﴾ په صيغې سره دې او په دې سره مقصود دا دې چه حافظ مزى رحمه الله چه د هغوى په ترجمه كښې كوم د ﴿ خت ﴾ يعنى ﴿ البخارى تعليقا ﴾ علامت ليكلې دې (٢) هغه صحيح كيدل نه دى پكار، بلكه دا حديث موصول دې. (٣)

حاصل دا چه حماد بن سلمه رحمه الله د كتب خمسه د رجال نه دې، د صحيح بخارى د رجال نه نه دې.

امام ابن حبان رحمه الله په دې باندې د سختې ناراضګئ اظهار كړې دې، پس هغه فرمائى!

﴿ ولم ينصف من جانب حديثه واحتج بأبى بكر بن عياش فى كتابه وبابن اخى الزهرى وبعبد الرحمن بن عبد الله

١) هدى السارى ص ٥٦٧، ٥٦٨

٢) اوګورئ : تهذيب الكمال ج ٧ ص ٢٥٣، رقم ١٤٨٢

٣) قال الحافظ رحمه الله: قوله : قال لنا ظاهر فى الوصل وان كان بعضهم قال انها للاجازة أو للمناولة أو للمذاكرة فكل ذلك فى حكم الموصول. فتح البارى ج ١١ ص ٢٥٦، كتاب الرقاق، باب ما يتقى من فتنة المال

بن دينار فان كان تركه إياه لما كان يخطئ فغيره من أقرانه مثل الثوري وشعبة ودونهما وكانوا يخطئون فان زعم أن خطأه قد كثر من تغير حفظه فقد كان ذلك في أبي بكر بن عياش موجودا وأنى يبلغ أبو بكر حماد بن سلمة ولم يكن من أقران حماد مثله بالبصرة في الفضل والدين والعلم والنسك والجمع والكتبة والصلابة في السنة والقمع لأهل البدعة ولم يكن يثلبه في أيامه إلا قدري أو مبتدع جهمي لما كان يظهر من السنن الصحيحة التي ينكرها المعتزلة وأنى يبلغ أبو بكر بن عياش حماد بن سلمة في إتقانه أو في جمعه أم في علمه أم في ضبطه ﴾ (١)

يعنى د هغه د احاديثو نه چه چا احتراز كړې دې هغه د انصاف نه كار نه دې اخستلې، حال دا چه هغوى د ابوبكر بن عياش، ابن اخى الزهرى، عبدالرحمن بن عبدالله بن دينار نه احتجاج كړې دې.

كه حماد بن سلمه لره هغوى د هغه د خطاګانو د وجې نه پريخودلې دې نو د امام سفيان ثورى، امام شعبه او د هغوى نه علاوه د هغه د نورو همزولو نه هم خطاء واقع شوې ده.

او كه دا دعوى ده چه د هغه غلطيانې د حافظې د تغير د وجې نه دى نو دا خبره په ابوبكر بن عياش كښې هم ده، او حال دا چه ابوبكر بن عياش د حماد بن سلمه درجې ته نه شى رسيدلې، د حماد بن سلمه اقران په بصره كښې د فضل، دين، علم، عبادت، جمع حديث، كتابت حديث او په سنت كښې تصلب او د اهل بدعت د بيخ ويستلو په اعتبار سره څوك هم د هغوى برابر نه وو. د هغوى په زمانه كښې چونكه هغوى د صحيح عقائد او سنتو اظهار كولو، چه د هغې نه به معتزله انكار كولو، په دې وجه په هغوى باندې عيب لګونكې به څوك قدرى يا جهمى مبتدع وو. ابوبكر بن عياش د حماد بن سلمه ضبط او اتقان، جمع حديث او د علم پوخ والى ته نه شى رسيدلې.

تنبيه : د حماد بن سلمه رحمه الله د ورع، تقوى او تدين وعبادت په باره كښې تاسو په مخكښې صفحاتو كښې لوستلې دى!

د دې ټولې تقوى او تدين او تورع باوجود د هغوى نه د امام الائمه، سراج الامة ابو حنيفة النعمان عليه الرحمة والرضوان په شان كښې داسې اقوال منقول دى كوم چه د هغه د شان عالى سره هرګز شايان نه دى، بلكه د هغوى اقوالو لره به په اول كرت لوستلو سره سليم العقل انسان وائى چه دا اقوال د هغه بالكل نه شى كيدې!!! خو دا هم حقيقت دې چه مؤرخين خاص طور سره په امام ابوحنيفه رحمه الله باندې خاص كرم كونكې، امام خطيب بغدادى رحمه الله دا اقوال نقل كړې دى. (٢)

د دې قسم ټولو اقوالو په باره كښې اول خو زمونږ ګمان هم دا دې چه د هغه په شان بزرګانو ته د هغې نسبت صحيح نه دې، او كه ثابت هم شى نو د امام صاحب رحمه الله د شان او درجې د الله پاك په نزد د اوچتيدو سبب دې.

---

١) الثقات لابن حبان ج ٦ ص ٢١٦، ٢١٧، وانظر الاحسان بترتيب صحيح ابن حبان ج ١ ص ١٤١ تا ١٤٣

٢) اوګورئ : تاريخ بغداد ج ١٣ ص ٣٩٠، ٣٩١، ٤٠٦، ٤٠٧

كضرائر الحسناء قلن لوجهها حسدا وبغضا انه لذميم

د ښكلې او ډولى ښځې بنې د حسد او بغض د وجې نه د هغې صورت بدرنګ بيانوى.
د دې اقوالو او د دې په شان نورو هفواتو دندان شكن جواب د دې دوران محقق، علامه محمد زاهدى الكوثرى رحمه الله وركړې دې، د هغه د كتاب تانيب الخطيب على ما ساقه فى ترجمة ابى حنيفة من الاكاذيب.... مطالعه دې ضرور اوكړې شى. (١)
علامه قاسم بن قطلوبغا رحمه الله د هم داسې خلقو په باره كښې فرمائيلې دى!

كذب الذى نسب الماثم للذى قاس المسائل بالكتاب وبالاثر
ان الكتاب وسنة المختار قد دلا عليه فدع مقالة من فشر (٢)

هغه سړې دروغ وائى كوم چه د هغه سړى طرف ته د ګناه نسبت كوى چا چه د كتاب او سنت په بنياد باندې د قياس نه كار اخستلې دې، بيشكه د كتاب الله او سنت رسول ﷺ د داسې قياس په صحت باندې دال دى، لهذا د بكواس كونكى اقوال پريږده.

**يو اهم فائده**: حماد بن سلمه او حماد بن زيد رحمهما الله د شيوخ او تلامذه په اعتبار سره كافى اشتراك لرى، په داسې صورت كښې كه څوك د حماد نه روايت كوى او د والد وغيره نوم ذكر نه كړى نو هلته د قرائن ضرورت راځى چه دلته كوم حماد مراد دې.
په دې سلسله كښې حافظ مزى رحمه الله څه منضبط كلام كړې دې. (٣) كوم چه حافظ ذهبى رحمه الله لږ په تفصيل سره ليكلې دې.
حاصل د هغې دا دې چه ددې دواړو په مشترك شيوخ كښې انس بن سيرين، ايوب سختيانى، الازرق بن قيس، اسحاق بن سويد، برد بن سنان، بشر بن حرب، بهز بن حكيم ثابت بنانى، الجعد ابو عثمان، حميد الطويل، خالد الحذاء، داؤد بن ابى هند، سعيد بن اياس الجريرى، شعيب بن الحجاب، عاصم بن ابى النجود، عبدالله بن عون، عبيدالله بن ابى بكر بن انس، عبيدالله بن عمر، عطاء بن السائب، على بن زيد، عمرو بن دينار، محمد بن زياد، محمد بن واسع، مطر الوراق، ابو جمره الضبعى، هشام بن عروه، هشام بن حسان، يحيى بن سعيد الانصارى، يحيى بن عتيق او يونس بن عبيد رحمهم الله شامل دى.
او د هغوى په مشترك شاګردانو كښې عبدالرحمن بن مهدى، وكيع بن الجراح، عفان بن مسلم، حجاج بن منهال، سليمان بن حرب، شيبان بن فروخ، عبدالله بن مسلمة القعنبى،

---

١) په امام ابوحنيفه رحمه الله باندې د لګيدلې بهتانونو او الزاماتو د ترديد دپاره زمونږ د شيخ، محدث شهير. مدقق كبير. شيخ عبدالفتاح ابو غده رحمه الله جامع كلام دې ضرور مطالعه كړې شى، كوم چه هغه د امام ابن عبدالبر د كتاب "الانتقاء فى فضائل الائمة الثلاثة الفقهاء" په حاشيه باندې ليكلې دې، دا كلام د كتاب د صفحه ٢٣٠ نه تر ٢٥٥ پورې خور شوې دې.
٢) اوګورئ: تأنيب الخطيب، ص: ١٩٠، قال الزبيدى فى تاج العروس (١١٣\٣٢٤): الفشار: كغراب، (الذى تستعمله العامة بمعنى الهذيان)، وكذا التفشير، (ليس من كلام العرب)، وانما هو من استعمال العامة....
٣) تهذيب الكمال ج ٧ ص ٢٦٩

عبدالله بن معاويه جهمي، عبد الاعلى بن حماد، ابو النعمان محمد بن الفضل عارم، موسى بن اسماعيل (دې د حماد بن زيد نه صرف يو حديث روايت كوى) مؤمل بن اسماعيل، هدبة بن خالد، يحيى بن حسان، يونس بن محمد المؤدب رحمهم الله وغيره دى.

هغه حفاظ چه د حماد بن سلمه سره مختص دى او د هغه نه په كثرت سره روايت كوى هغه بهز بن اسد، حبان بن هلال، حسن بن اشيب او عمرو بن عاصم دى.

او كوم چه د حماد بن زيد سره مختص دى، حماد بن سلمه ته نه دى رسيدلى هغه امام على بن المدينى، احمد بن عبده، احمد بن المقدام، بشر بن معاذ العقدى، خالد بن خداش، خلف بن هشام، زكريا بن عدى، سعيد بن منصور، ابو الربيع الزهرانى القواريرى، عمرو بن عون، قتيبه بن سعيد، محمد بن ابى بكر المقدمى، لوين، محمد بن عيسى بن الطباع، محمد بن عبيد بن حساب، مسدد، يحيى بن حبيب او يحيى بن يحيى تميمى نه علاوه نور د هغوى څه اقران دى.

كه د دې حضراتو نه څوك يا د هغوى د طبقې يو سړې د حماد نه مبهمًا روايت كوى نو حماد بن زيد به مراد وى ځكه چه دې طبقې حماد بن سلمه نه دې موندلې.

هم دغه شان كه په مشترك شاګردانو كښې چا په ابهام سره ﴿حدثنا حماد﴾ اووې او د والد وغيره نوم ئې وانخستلو نو د حماد شيخ ته به كتلې شى چه هغه څوك دې؟ كه شيخ ئې هم مشترك وى نو په دې كښې به تردد او توقف كولې شى او كه شيخ د يو سره مختص وى نو په هغې سره به د حماد تعيين كولې شى.

بيا د عفان بن مسلم عادت دې چه كله هم هغه د حماد بن زيد نه روايت كوى نو د پلار نوم ئې ذكر كوى او حماد بن زيد وائى، خو ډيره كرته د حماد بن سلمه نه روايت كولو سره مطلقا حماد وائى. د پلار نوم ئې نه ذكر كوى. بعينه هم دغه شان حجاج بن منهال او هدبه بن خالد هم كوى. او د سليمان بن حرب او عارم حال د دې برعكس دې چه كله هم هغه ﴿حدثنا حماد﴾ وائى نو په دې سره حماد بن زيد مقصود وى، نه حماد بن سلمة.

بيا موسى بن اسماعيل تبوذكى خو د حماد بن سلمه خصوصى راوى دې، لهذا كه هغه ﴿حدثنا حماد﴾ اوائى نو په دې سره به د هغوى مراد صرف او صرف ﴿حماد بن سلمه﴾ وى.

او كه سند د هر قسم قرينې نه خالى وى (او داسې ډير كم كيږى) نو په دې صورت كښې څه قطعى خبره نه شى كيدې چه دلته حماد بن زيد مراد دې يا حماد بن سلمه، بلكه تردد او توقف به كولې شى، يا به وئيلې شى چه دا حديث على الاقل د امام مسلم د شرط مطابق دې، ځكه چه امام مسلم رحمه الله د دواړو نه احتجاج كړې دې.

هم دغه شان اشتباه د سفيانين يعنى سفيان ثورى او سفيان بن عيينه ترمينځه هم كيږى.

دلته هم دغه شان ځان پوهه كول پكار دى چه د امام سفيان ثورى رحمه الله اصحاب قدماء او مشران دى او د ابن عيينه اصحاب كشران دى.

لهذا كه په قدماء او مشرانو كښې يو سړې مثلا امام وكيع، عبدالرحمن بن مهدى، فريابى او ابو نعيم رحمهم الله ﴿حدثنا سفيان﴾ اوائى نو مراد به سفيان ثورى وى، د دې طبقې حضرت كه د

ابن عيينه نه حديث روايت كوى نو هغوى وضاحت كولو سره بيانوى.
او پاتې شو هغه چه د هغوى د سفيان ثورى سره لقاء نه ده ثابت نو په داسې صورت كښې ظاهره ده چه د ﴿ حدثنا سفيان ﴾ نه به ابن عيينه مراد وى، په دې كښې هيڅ اشتباه نه پاتې كيږى. (۱) والله اعلم وعلمه اتم واحكم

**يوه بله فائده** : امام احمد بن حنبل او عبدالله بن معاويه رحمهما الله نه منقول دى چه د حماد بن سلمه بن دينار او حماد بن زيد بن درهم ترمينځه هم هغه تفاضل دې كوم چه د دينار په درهم باندې دې. يعنى جماد بن سلمه د حماد بن زيد نه افضل دې.
خو حافظ ذهبى رحمه الله فرمائى چه دا افضليت په تدين او جلالت شان كښې خو ممكن دې، او هر چه د اتقان او ضبط تعلق دې، نو په دې كښې حماد بن زيد د حماد بن سلمه نه فائق دې، حماد بن زيد د تثبت په اعتبار سره د امام مالك رحمه الله برابر دې. (۲)

د حماد بن سلمه رحمه الله وفات په ۱۶۷ هجرى كښې شوې دې. (۳) رحمه الله رحمة واسعة

⑨ **سعيد بن زيد** : دا ابو الحسن سعيد بن زيد بن درهم ازدى بصرى رحمه الله دې. (٤)
دا د مشهور محدث حماد بن زيد بن درهم رحمه الله رور دې. (۵)
هغه د ايوب سختيانى، الجعد بن ابى عثمان، سنان بن ربيعه، عبدالعزيز بن صهيب، على بن زيد بن جدعان، عمرو بن خالد النكرى، ليث بن ابى سليم او هشام بن حسان رحمهم الله وغيره نه روايت كوى.
د هغوى نه په روايت كونكو كښې اسد بن موسى، حبان بن هلال، حسن بن موسى الاشيب، عبدالله بن المبارك، سليمان بن حرب، ابو عاصم النبيل، عفان بن مسلم، محمد بن الفضل عارم، ابو سلمه موسى بن اسماعيل او يزيد بن هارون رحمهم الله وغيره دى. (۶)

امام احمد رحمه الله فرمائى : ﴿ ليس به بأس ﴾(۷)

امام يحيى بن معين رحمه الله فرمائى : ﴿ ثقة ﴾(۸)

مسلم بن ابراهيم رحمه الله فرمائى : ﴿ سعيد بن زيد ابو الحسن صدوق حافظ ﴾(۹)

---

۱) اوګورئ : سير اعلام النبلاء ج ۷ ص ٤٦٤ تا ٤٦٦، نهاية ترجمة حماد بن زيد
۲) اوګورئ : ميزان الاعتدال ج ۱ ص ٤٩٢، وسير اعلام النبلاء ج ۷ ص ٤٤٧
۳) سير اعلام النبلاء ج ۷ ص ٤٥٣
٤) تهذيب الكمال ج ۱۰ ص ٤٤١، ٤٤٢، رقم ۲۲۷۶
۵) پورته حواله
٦) د شيوخ او تلامذه د تفصيل دپاره اوګورئ : تهذيب الكمال ج ۱۰ ص ٤٤٢، ٤٤٣
۷) تهذيب الكمال ج ۱۰ ص ٤٤٣
۸) پورته حواله
۹) پورته حواله

سليمان بن حرب رحمه الله فرمائی : ﴿كان ثقة﴾(١)

ابن سعد رحمه الله فرمائی : ﴿كان ثقة﴾(٢)

حبان بن بلال رحمه الله فرمائی : ﴿وكان حافظا صدوقا﴾(٣)

امام عجلی رحمه الله فرمائی : ﴿ثقة ... بصری﴾(٤)

ابن السکری رحمه الله فرمائی : ﴿بصری ثقة﴾(٥)

علی بن المدینی رحمه الله فرمائی : ﴿سمعت يحيى بن سعيد يضعفه جدا في الحديث﴾(٦)

امام نسائی رحمه الله فرمائی ﴿ليس بالقوى﴾(٧)

عباس دوری د امام یحیی بن معین رحمه الله نه نقل کوی!

﴿سعيد بن زيد اخو حماد بن زيد ليس بقوى، قلت يحتج بحديثه؟ قال يكتب حديثه﴾(٨)

یعنی د هغوی احادیث د احتجاج په طور نه شی پیش کیدې، خو د هغوی احادیث د اعتبار دپاره لیکلې کیدې شی.

امام دارقطنی رحمه الله فرمائی : ﴿ضعيف﴾(٩)

امام جوزجانی رحمه الله فرمائی : ﴿يضعفون حديثه، وليس بحجة﴾(١٠)

امام ابوبکر رحمه الله فرمائی : ﴿لين﴾(١١) هم دغه شان هغه فرمائی : ﴿لم يكن له حفظ﴾(١٢)

امام ابن عدی رحمه الله فرمائی : ﴿لسعيد بن زيد غير ما ذكرت احاديث حسان، وليس له متن منكر لا يأتي به غيره، وهو عندي في جملة من ينسب الى الصدق﴾(١٣)

---

١) الجرح والتعديل ج ٤ ص ٢١، رقم ٨٧/٥٦٠٦
٢) الطبقات لابن سعد ج ٧ ص ٢٨٧
٣) اكمال تهذيب الكمال ج ٥ ص ٢٩٦
٤) معرفة الثقات للعلجلى ج ١ ص ٣٩٩، رقم ٥٩٠
٥) ا اكمال تهذيب الكمال ج ٥ ص ٢٩٦
٦) تهذيب التهذيب ج ٤ ص ٣٢
٧) تهذيب الكمال ج ١٠ ص ٤٤٤
٨) الجرح والتعيدل ج ٤ ص ٢١، رقم (٨٧/٥٢٠٦)
٩) اكمال تهذيب الكمال ج ٥ ص ٢٩٦
١٠) تهذيب الكمال ج ١٠ ص ٤٤٣
١١) اكمال تهذيب الكمال ج ٥ ص ٢٩٥
١٢) تهذيب التهذيب ج ٤ ص ٣٣
١٣) الكامل لابن عدی ج ٣ ص ٣٧٨

یعنی سعید بن زید د ذکر شوې روایاتو نه علاوه نور احادیث هم دی، کوم چه حسان دی، هغوی سره داسې څه منکر متن نشته کوم چه بل څوك نه روایت کوی، هغه زما په نزد د صدق طرف ته منسوب خلقو کښې دې.

ابن حبان رحمه الله فرمائی : ﴿وكان صدوقا حافظا ممن كان يخطئ في الاخبار، ويهم في الآثار، حتى لا يحتج به اذا انفرد﴾ (۱) یعنی دا صدوق او حافظ دې، خو په روایات او اثار کښې پرې وهم راځی او غلطی کوی، لهذا که منفرد وی نه بیا به ترې احتجاج نه شی کولې.

د هغه روایات امام بخاری رحمه الله اشتشهادا اخستلې دی، او د نسائی نه علاوه ئې باقی ټولو حضراتو روایات تخریج کړې دی، امام بخاری رحمه الله هم د هغه روایات په الادب المفرد کښې قبول کړې دی. (۲) په ۱۶۷ هجری کښې دحمادبن سلمه رحمه الله نه مخکښې هغه وفات شوې دې (۳) رحمه الله رحمة واسعة

## ⑩ بَابُ وَضْعِ الْمَاءِ عِنْدَ الْخَلَاءِ

**د مخکښې باب سره مناسبت** : د دې باب د مخکښې باب سره مناسبت واضح دې، اولنې باب ﴿باب مايقول عند الخلاء﴾ دې او دا دویم ﴿باب وضع الماء عند الخلاء﴾ دې، ددواړو تعلق د خلاء سره دې. (٤)

**د ترجمة الباب مقصد** : د امام بخاری رحمه الله د ترجمة الباب نه مقصد دا دې چه د بیت الخلاء سره دې اوبه کیخودلې شی.

خو سوال دا دې چه اوبه به د څه دپاره کیخودلې شی؟

عام شراح کرام حافظ ابن حجر او علامه عینی رحمهما الله وغیره خو فرمائی چه د بیت الخلاء نه د راوتلو نه پس ئې انسان د اودس دپاره استعمال کړې شی. (۵)

خو ابن بطال او شیخ الحدیث رحمهما الله فرمائی چه د دې مقصد دا دې چه انسان د بیت الخلاء نه راوتلو سره فورا د استنجاء دپاره هغه استعمال کړی. (۶)

ددې حضراتو وینا دا ده چه که دا اوبه د اودس دپاره وې نو بیت الخلاء سره ئې د ږدلو ضرورت څه وو؟ (۷)

خو د فریق اول د طرف نه دا وئیلې کیدې شی چه د اوبو لټون ته حاجت رانشی، او فورا ئې

---

۱) کتاب المجروحین لابن حبان ج ۱ ص ٤٠١، ٤٠٢، رقم (۳۸۸)
۲) تهذیب الکمال ج ۱۰ ص ٤٤٤
۳) کتاب المجروحین: ۱/ ٤٠٢، رقم (۳۸۸)
٤) اوګورئ: عمدة القاری ج ۲ ص ۲۷۳
۵) اوګورئ: فتح الباری ج ۱ ص ۲٤٤، و عمدة القاری ج ۲ ص ۲۷۳
٦) شرح صحیح البخاری لابن بطال ج ۱ ص ۲۳۵. والکنز المتواری ج ۳ ص ۲۳
۷) اوګورئ: الکنز المتواری ج ۳ ص ۲۳

واخلي او د اودس دپاره ئې استعمال كړي او كه په دې سره مقصود استنجاء بالماء وي نو بيا به اشكال وي چه د استنجاء بالماء باب وړاندې راروان دې.

حضرت شيخ الحديث صاحب رحمه الله د دې جواب كړې دې چه دلته ترجمه شارحه ده، مستقلا نه ده، ځكه چه استنجاء بالماء مسئله د سلف ترمينځه مختلف فيه پاتې شوې ده، په دې وجه ئې هغه وړاندې مستقلا ذكر كړې ده. (١)

د احتمال په درجه كښې دا هم وئيلې كيدې شي چه امام بخاري رحمه الله دې خبرې طرف ته اشاره كړې وي چه كه په اوبو سره استنجاء كوي نو چه هم هلته اونكړې شي چرته چه انسان قضاء حاجت كړې دې، بلكه بهر دې اوكړې شي چه گندگي نه خوريږي، پس شافعيه په خپلو كتابونو كښې ليكلي دي چه د قضاء حاجت په محل كښې د اوبو استعمالول مكروه دي. (٢)

خو دا كراهت په هغه صورت كښې دې چرته چه د اوبو د استعمالولو مستقل ځائې نه وي جوړ شوې، كه ځانله په بيوت الخلاء كښې د اوبو د استعمال ځائې جوړ شوې وي نو بيا په استعمال كښې هيڅ باك نشته، دا خو نه شي وئيلې كيدې چه هم دا د امام بخاري رحمه الله مقصد دې. خو دا وئيلې كيدې شي چه د دې نه اشاره كيدې شي.

١٤٣ : ﴿حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ قَالَ حَدَّثَنَا هَاشِمُ بْنُ الْقَاسِمِ قَالَ حَدَّثَنَا وَرْقَاءُ عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي يَزِيدَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ (٣) أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دَخَلَ الْخَلَاءَ فَوَضَعْتُ لَهُ وَضُوءًا قَالَ مَنْ وَضَعَ هَذَا فَأُخْبِرَ فَقَالَ اللَّهُمَّ فَقِّهْهُ فِي الدِّينِ﴾ [ر : ٧٥]

## رجال الحديث

① **عبد الله بن محمد** : دا ابو جعفر عبد الله بن محمد بن عبد الله بن جعفر بن اليمان بن اخنس الجعفي البخاري المسندي رحمه الله دې. د هغه مختصر حالات په كتاب الايمان كښې د باب امور الايمان د لاندې تير شوې دي. (٤)

② **هاشم بن القاسم** : دا ابو النضر هاشم بن القاسم الليثي البغدادي رحمه الله دې، اصل كښې د خراسان دې. لقب ئې قيصر دې. (٥)

هغه د ابن ابى ذئب، شعبة، حريز بن عثمان، عكرمة بن عمار، عبد العزيز بن ماجشون، شيبان نحوي، سليمان بن مغيرة، ليث بن سعد او ابو معشر سندي عبيد الله الاشجعي رحمهم الله

١) پورته حواله

٢) قال النووي رحمه الله : ويويد هذا قولهم إذا اخرج أحدنا من الغائط أحب أن يستنجي بالماء فهذا يدل على أن استنجاءهم بالماء كان بعد خروجهم من الخلاء والعادة جارية بانه لا يخرج من الخلاء الا بعد التمسح بماء أو حجر: وهكذا المستحب أن يستنجي بالحجر في موضع قضاء الحاجة ويؤخر الماء إلى أن ينتقل إلى موضع آخر والله أعلم. المجموع شرح المهذب ج ٢ ص ١٠٠

٣) قدسبق تخريجه في كشف الباري ج ٣ ص ٢٥٦، كتاب العلم، باب قول النبي صلى الله عليه وسلم ... اللهم علمه الكتاب

٤) كشف الباري ج ١ ص ٦٥٧

٥. اوگورئ: تهذيب الكمال: ١٣٠ ١٣٠ و ١٣١، رقم (٤٥٤٠)

وغیره نه روایت حدیث کوی
سفیان ثوری رحمه الله ئې په مکه کښې لیدلې دې خو د هغه نه ئې سماع نشته.
د هغه نه په روایت کونکو کښې امام احمد بن حنبل، علی بن المدینی، یحیی بن معین، اسحاق بن راهویه، ابن ابی شیبة، عمرو بن محمد الناقد، یعقوب بن شیبه، عباس الدوری رحمهم الله وغیره ډیر حضرات دی. (۱)

امام احمدبن حنبل رحمه الله به فرمائیل: ﴿ ابو النضر شیخنا، من الامرین بالمعروف والناهین عن المنکر ﴾(۲) هم دغه شان هغه فرمائی: ﴿ ابوالنضر من مشیخة بغداد ﴾(۳)

امام یحیی بن معین، علی بن المدینی او ابن سعد رحمهم الله فرمائی: ﴿ ثقة ﴾(٤)

امام عجلی رحمه الله فرمائی: ﴿ صاحب سنة، ثقة، وکان اهل بغداد یفخرون به ﴾(۵)

ابو حاتم رحمه الله فرمائی ﴿ صدوق ﴾(۶)

ابن قانع رحمه الله فرمائی: ﴿ ثقة ﴾(۷)

حافظ ابن عبد البر رحمه الله فرمائی: ﴿ اثنی علیه علی، واحمد، واتفقوا علی انه صدوق ثقة ﴾(۸)

امام نسائی رحمه الله فرمائی: ﴿ لا باس به ﴾(۹)

امام حاکم رحمه الله فرمائی: ﴿ حافظ ثبت فی الحدیث ﴾(۱۰)

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی: ﴿ ثقة ثبت ﴾(۱۱)

په ۲۰۷ هجری کښې ئې ددرې اویا کالو په عمر کښې وفات موندلې دې(۱۲) رحمه الله رحمة واسعة

•••

۱) د شیوخ او تلامذه د تفصیل دپاره اوګورئ: تهذیب الکمال ج ۳۰ ص ۱۳۱، ۱۳۳، وسیر اعلام النبلاء ج ۹ ص ۵٤۶
۲) تهذیب الکمال ج ۳۰ ص ۱۳۳
۳) تهذیب الکمال ج ۳۰ ص ۱۳٤
٤) اوګورئ: تاریخ عثمان الدارمی ص ۲۲۵، رقم ۸۵۸، والجرح والتعدیل ج ۹ ص ۱۳۰، رقم (۱۶۱۰۱/٤٤۶) وطبقات ابن سعد ج ۷ ص ۳۳۵.
۵) معرفة الثقات للعجلی ج ۲ ص ۳۲۳، رقم ۱۸۷۹، وتهذیب الکمال ج ۳۰ ص ۱۳۵
۶) الجرح والتعدیل ج ۹ ص ۱۳۰، رقم (۱۶۱۰۱/٤٤۶)
۷) اکمال تهذیب الکمال ج ۱۲ ص ۱۲۱، رقم ٤۹۱۶
۸) پورته حواله
۹) کمال تهذیب الکمال ج ۱۲ ص ۱۲۲، رقم ٤۹۱۶
۱۰) پورته حواله
۱۱) تقریب التهذیب ص ۵۷۰، رقم ۷۲۵۶
۱۲) پورته حواله

④ ورقاء: دا ابو بشر ورقاء بن عمر بن كليب يشكري، شيباني، كوفي رحمه الله دې. (١)
هغه د زيد بن اسلم. سماك بن حرب، سمي مولى ابى بكر بن عبدالرحمن، شعبه بن الحجاج، (وهو من اقرانه)، عاصم بن ابى النجود، عبد الله بن دينار، عبيد الله بن ابى يزيد، عطاء بن السائب، عمرو بن دينار، منصور بن المعتمر، ابو اسحاق السبيعي، ابو الزبير مكي، ابو الزناد او ابو طواله انصاري رحمهم الله وغيره نه روايت حديث کوي.
د هغه نه په روايت کونکو کښې ادم بن ابى اياس، بقيه بن الوليد، شعبه بن الحجاج، عبدالله بن المبارك، شبابه بن سوار، ابو نعيم الفضل بن دکين، معاذ بن معاذ العنبري، وکيع بن الجراح، يزيد بن هارون او ابوداؤد طيالسي رحمهم الله وغيره حضرات دي. (٢)
محمود بن غيلان د ابوداؤد طيالسي نه نقل کوي چه ماته امام شعبه رحمه الله اوفرمائيل:

﴿عليك بورقاء، فانك لاتلقى بعده مثله حتى ترجع، قال محمود: قلت لابي داؤد: اى شيء يعني بقوله؟ قال: افضل واورع وخيرمنه﴾ (٣)

يعنى ته ورقاء لازم اونيسه؛ ځکه چه که ته ټول سفر کولو سره راواپس شې نو بيا به هم تاته د هغه په شان شخصيت ملاؤ نه شي. محمود بن غيلان د ابوداؤد طيالسي نه تپوس اوکړو چه د دې مطلب څه دې؟ وې فرمائيل: چه د هغه په شان افضل، متقي او غوره انسان به درته ملاؤ نه شي.

امام احمد رحمه الله فرمائي: ﴿ثقة، صاحب سنة﴾ (٤)

امام يحيى بن معين هغه ته ﴿ثقة﴾ او ﴿صالح﴾ وئيلي دي. (٥)

امام ابوداؤد رحمه الله فرمائي: ﴿ورقاء صاحب سنة، الا ان فيه ارجاءا﴾ (٦)
ابن ابى حاتم رحمه الله چه کله د خپل پلار نه د هغه په باره کښې تپوس اوکړو نو وې فرمائيل:
﴿شعبة يثني عليه، وكان صالح الحديث﴾ (٧)
ابن شاهين رحمه الله هغه په کتاب الثقات کښې ذکر کړې دې او فرمائي چه امام وکيع رحمه الله هغه ته ﴿ثقة﴾ وئيلي دي. (٨) امام عقيلي رحمه الله فرمائي: ﴿تكلموا في حديثه عن منصور﴾ (٩)

---

١) اوګورئ: تهذيب الكمال ج ٣٠ ص ٤٣٣، رقم ٦٦٨٤
٢) د شيوخ او تلامذه د تفصيل دپاره اوګورئ: تهذيب الكمال ج ٣٠ ص ٤٣٣، ٤٣٤
٣) تهذيب الكمال ج ٣٠ ص ٤٣٤
٤) تهذيب الكمال ج ٣٠ ص ٤٣٥
٥) پورته حواله
٦) سؤالات ابى عبيد الاجري ج ١ ص ٢٠٠، رقم ١٦٦
٧) الجرح والتعديل ج ٩ ص ٦٦ رقم ٢١٦/١٥٨٧١
٨) اكمال تهذيب الكمال ج ١٢ ص ٢١٢، رقم ٥٠١٨
٩) تهذيب التهذيب ج ٢ ص ٢١٢، رقم ٥٠١٨.

یعنی هغه چه کوم احادیث د منصور بن المعتمر نه نقل کړي دي په هغې کښې محدثینو کلام کړي دي.

امام ابن عدی رحمه الله فرمائی چه: «روی احادیث غلط فی اسانیدها، وباقی احادیثه لا باس به»(۱)

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه امام یحیی بن معین رحمه الله هغه مطلقا ثقه ګڼلي دي. (۲)

بیا حضرات شیخین رحمهما الله د هغه نه داسې څه روایت نه دي اخستلي کوم چه هغه د منصور بن المعتمر نه نقل کوی. (۳)

هغه د ټولو اصحاب ستة په نزد محتج به دي. (٤) رحمه الله رحمة واسعة

⑫ **عبید الله بن ابی یزید**: دا عبید الله بن ابی یزید مکی رحمه الله دي. (۵)

دې د سیدنا ابن عباس، ابن عمر، ابن الزبیر او حسین بن علی رضی الله عنهم نه علاوه د سباع بن ثابت، نافع بن جبیر، مجاهد بن جبر، عبید بن عمیر او د خپل پلار ابو یزید رحمهم الله وغیره نه روایت کوی.

د هغه نه په روایت کونکو کښې ابن جریج، شعبه بن الحجاج، ورقاء بن عمر، حماد بن زید او سفیان بن عیینه رحمهم الله وغیره دی. (۶)

امام یحیی بن معین. علی بن المدینی. عجلی، ابوزرعه او نسائی رحمهم الله فرمائی: «ثقة»(۷)

ابن سعد رحمه الله فرمائی «وکان ثقة، کثیر الحدیث»(۸)

ابن خلفون رحمه الله هغه په کتاب الثقات کښې ذکر کړي دي. (۹)

ابن حبان رحمه الله هم هغه په خپل کتاب الثقات کښې ذکر کړي دي. (۱۰)

اصحاب اصول ستة د هغه احادیث اخستلي دی. (۱۱) په ۱۲۰ هجری کښې هغه وفات شوې دې، د شپږ اتیا کالو په عمر کښې. (۱۲) رحمه الله رحمة واسعة

---

۱) الکامل فی ضعفاء الرجال ج ۷ ص ۹۲
۲) هدی الساری ص ٤٤۹
۳) هدی الساری ص ٤۵۰
٤) پورته حواله
۵) اوګورئ: تهذیب الکمال ج ۱۹ ص ۱۷۸، رقم ۳۶۹۷
۶) د شیوخ او تلامذه د تفصیل دپاره اوګورئ: تهذیب الکمال ج ۱۹ ص ۱۷۸، ۱۷۹
۷) اوګورئ: الجرح والتعدیل ج ۵ ص ۳۹۹، رقم ۱۵۹٤/۸۹۲۸، وتهذیب الکمال ج ۱۹ ص ۱۷۹
۸) الطبقات لابن سعد ج ۵ ص ٤۸۱
۹) اکمال تهذیب الکمال ج ۹ ص ۷۷، رقم ۳۵۰۳
۱۰) الثقات لابن حبان ج ۵ ص ۷۳
۱۱) تهذیب الکمال ج ۱۹ ص ۱۷۹
۱۲) پورته حواله، وسیر اعلام النبلاء ج ۵ ص ۲٤۲

**فائده** : د عبیدالله بن ابی یزید د پلار ابو یزید کنیت معروف دې، د نوم علم ئې نشته، د کشمهینی په روایت کښې د ابویزید په ځائې ابو زائده راغلې دې، دا غلط دې. (۱)

⑤ **سیدنا عبدالله بن عباس** ﷠ : د سیدنا عبدالله بن عباس ﷠ حالات په بدء الوحی کښې د خلورم حدیث د لاندې، او هم دغه شان په کتاب الایمان ، باب کفران العشیر وکفر دون کفر د لاندې تیر شوې دی. (۲)

**قوله:** أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دَخَلَ الْخَلَاءَ فَوَضَعْتُ لَهُ وَضُوءًا : رسول الله ﷺ بیت الخلاء ته داخل شو، ما ورله د استنجاء یا اودس دپاره اوبه کیخودلې.

**قوله:** قَالَ مَنْ وَضَعَ هَذَا : رسول الله ﷺ تپوس اوکړو دا اوبه چا کیخودلې دی؟

**قوله:** فَأُخْبِرَ : رسول الله ﷺ ته خبر ورکړې شو.

یعنی ورته اوئیلې شو چه ابن عباس ﷠ کیخودلې دی. دا خبر ورکونکې ام المومنین سیده میمونه ﷦ وه، لکه چه د مسند احمد او صحیح ابن حبان په روایت کښې د دې تصریح موجود ده. (۳)

**قوله:** فَقَالَ اللَّهُمَّ فَقِّهْهُ فِي الدِّينِ : رسول الله ﷺ په دعا کښې اوفرمائیل : اې الله! هغه ته د دین پوهه او پوخ والې ورکړه.

سیدنا عبدالله بن عباس ﷠ ډیر په عقلمندئ سره دا خدمت کړې وو، چه کله هغه بالکل ماشوم وو. رسول الله ﷺ د هغه د هوښیارتیا او عقلمندئ په مناسبت سره هغه ته دعا اوکړه، شاته په کتاب العلم، باب قول النبی ﷺ اللهم علمه الکتاب ... د لاندې د حدیث الباب مکمل تشریح تیره شوې ده. (٤)

## ⑪ بَاب لَا تُسْتَقْبَلُ الْقِبْلَةُ بِغَائِطٍ أَوْ بَوْلٍ إِلَّا عِنْدَ الْبِنَاءِ جِدَارٍ أَوْ نَحْوِهِ

**د مخکښې باب سره مناسبت** : په مخکښې باب کښې د وضع الماء عند الخلاء ذکر وو، په دې باب کښې د خلاء د آدابو نه د یو ادب ذکر دې، په دواړو بابونو کښې مناسبت واضح دې.

**د ترجمة الباب مقصد** : په ترجمة الباب سره د امام بخاری ﷬ مقصد هم واضح دې چه د غائط او بول په موقع دې استقبال قبله اونکړې شی.

---

۱) فتح الباری ج ۱ ص ۲۴۳

۲) اوګورئ کشف الباری ج ۱ ص ٤٤٥، و ج ۲ ص ۲۰۵

۳) اوګورئ : مسند احمد ج ۱ ص ۳۲۸، رقم (۳۰۳۳)، و ج ۱ ص ۳۳۵، رقم ۳۱۰۲، مسند عبد الله بن عباس رضی الله تعالی عنهما، والاحسان بترتیب صحیح ابن حبان ج ۱۰ ص ۹۸، ذکر وصفه الفقه والحکمة اللذین دعا المصطفی ﷺ لابن عباس بهما، رقم (۷۰۱۵)

٤) اوګورئ : کشف الباری ج ۳ ص ۳۷۰ تا ۳۷۳، فراجعه ان شئت

**په ترجمة الباب کښې د الا عند البناء استثناء :** امام بخاري رحمه الله چه دلته کوم ترجمة الباب قائم کړې دې هغه ئې د ﴿الاعند البناء، جدار اونحوه﴾ د استثناء سره مقيد کړې دې، او حال دا چه حديث الباب مطلق دې، په دې کښې داسې هيڅ قيد نشته، سوال دا دې چه امام بخاري رحمه الله دا قيد ولې اولګولو؟

امام اسماعيلي رحمه الله فرمائي چه امام بخاري رحمه الله لفظ ﴿غائط﴾ کوم چه اګر چه په مجازي معنی کښې مستعمل دې، خو دلته ئې د هغې د حقيقي معنی لحاظ ساتلو سره قيد لګولې دې، ځکه چه د غائط لغوي معنی د ﴿المكان المطمئن من الارض في الفضاء﴾ ده، يعنې په خالي ځائې کښې چه کوم هوار ځائې وی هغې ته غائط وائي، چونکه د غائط په معنی حقيقي کښې ﴿فضاء﴾ او خالي ځائې کيدل ملحوظ دې، په دې وجه حديث الباب، چه مطلق دې، په دې کښې به هم د دې معنی لحاظ ساتلې شی، او مطلب به دا وی چه کله خالي ځائې وی نو هلته دې استقبال قبله اونکړې شی، د دې مفهوم مخالف هم دا راوځی چه که آبادي وی يا يو ديوال وغيره حائل وی نو هلته استقبال قبله کيدلې شی. (۱)

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي چه دا د ټولو نه قوي جواب دې. (۲)

خو علامه عيني رحمه الله فرمائي چه هرکله د ﴿غائط﴾ لغوي معنی مهجورشوه اودا د ﴿نجس خارج﴾ په معنی کښې استعماليدل شروع شو نو دا حقيقت عرفيه دې، د دې په مقابله کښې حقيقت لغويه مهجور شوې دې، لهذا د دې حقيقت لغويه د معنی لحاظ څنګه اوساتلې شی؟ (۳)

دويم جواب علامه ابن بطال رحمه الله ورکړې دې، هغه فرمائي چه دا استثناء د حديث الباب د الفاظو نه نه ده بلکه په وړاندې باب کښې د سيدنا ابن عمر رضي الله عنهما د حديث نه ماخوذ ده. (٤)

خو علامه عيني رحمه الله فرمائي چه که هم دا خبره وه نو د سيدنا ابن عمر رضي الله عنهما دا حديث د وړاندې باب په ځائې هم په دې باب کښې د سيدنا ابو ايوب انصاري رضي الله عنه د حديث نه پس ذکر کول پکار وو. (۵)

دريم جواب دا کړې شوې دې چه د استقبال قبله تحقق په فضاء او خالي ځايونو کښې ممکن دې، د آبادئ او کورونو ترمينځه استقبال قبله نه متحقق کيږي، ځکه چه د آبادئ ترمينځه چه کوم څيز حائل جوړيږي، استقبال به هم د هغې طرف ته منسوب کولې شی، مثلا وئيلې به شی چه استقبل الجدار، واستقبل البناء، وغيره. (۶)

---

۱) فتح الباري ج ۱ ص ۲٤۵
۲) پورته حواله
۳) عمدة القاري ج ۲ ص ۲۷۵
٤) شرح صحيح البخاري لابن بطال ج ۱ ص ۲۳۸
۵) عمدة القاري ج ۲ ص ۲۷۵
٦) فتح الباري ج ۱ ص ۲٤۵

خو دا جواب هم کمزوری دې، ځکه چه کله هم یو سړې د کعبې طرف ته متوجه کیږی نو هغه ته مستقبل الکعبة وئیلې شی، که په ابادئ کښ دننه وی یا په صحرا کښ وی، اګر چه په ابادو او کورونو کښ ابادی د هغه او د قبلې ترمینځه حائل وی او په صحراګانو کښ د غرونو او ډهیرکو وغیره حائل وی. (۱)

علامه عینی رحمه الله فرمائی چه بهتر جواب دا دې چه داسې اوئیلې شی چه حدیث الباب د امام بخاری رحمه الله په نزد عام مخصوص منه البعض دې، په دې وجه دا استثناء ذکر کړې شوه. (۲)

والله اعلم

۱۴۴ : ﴿حَدَّثَنَا آدَمُ قَالَ حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي ذِئْبٍ قَالَ حَدَّثَنَا الزُّهْرِيُّ عَنْ عَطَاءِ بْنِ يَزِيدَ اللَّيْثِيِّ عَنْ أَبِي أَيُّوبَ الْأَنْصَارِيِّ (۳) قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا أَتَى أَحَدُكُمُ الْغَائِطَ فَلَا يَسْتَقْبِلِ الْقِبْلَةَ وَلَا يُوَلِّهَا ظَهْرَهُ شَرِّقُوا أَوْ غَرِّبُوا﴾ [۳۸۲]

## رجال الحديث

① **ادم** : دا ابو الحسن ادم بن ابی ایاس عبدالرحمن العسقلانی رحمه الله دې، د هغوی حالات په کتاب الایمان، باب المسلم من سلم المسلمون من لسانه ویده د لاندې تیر شوې دی. (٤)

② **ابن ابی ذئب** : دا امام محمد بن عبدالرحمن بن المغیرة بن الحارث بن ابی ذئب قرشی عامری مدنی رحمه الله دې د هغه حالات په کتاب العلم کښ د باب حفظ العلم د لاندې تیر شوې دی (۵)

③ **الزهری** : دا امام محمد بن مسلم بن عبیدالله بن عبدالله بن شهاب زهری مدنی رحمه الله دې، د هغوی حالات په (بدء الوحی) کښ د دریم حدیث د لاندې تیر شوې دی. (۶)

---

۱) عمدة القاری ج ۲ ص ۲۷۶

۲) پورته حواله

۳) قوله : عن ابی ایوب الانصاری رضی الله عنه الحدیث اخرجه البخاری ایضا فی صحیحه ج ۱ ص ۵۷ کتاب الصلاة، باب قبلة اهل المدینة، واهل الشام والمشرق .... رقم ۳۹٤، ومسلم فی صحیحه، فی کتاب الطهارة، باب الاستطابة رقم ۶۰۹، والنسائی فی سننه فی کتاب الطهارة، باب النهی عن استقبال القبلة عند الحاجة رقم (۲۰)، وباب النهی عن استدبار القبلة عند الحاجة رقم ۲۱، وباب الامر باستقبال المشرق او المغرب عند الحاجة. رقم ۲۲. وابوداؤد فی سننه، فی کتاب الطهارة، باب کراهیة استقبال القبلة عند قضاء الحاجة. رقم ۹. والترمذی فی جامعه فی کتاب الطهارة، باب فی النهی عن استقبال القبلة بغائط او بول رقم ۸ وابن ماجة فی سننه، فی کتاب الطهارة، باب النهی عن استقبال القبلة بالغائط والبول، رقم ۳۱۸.

٤) کشف الباری ج ۱ ص ۶۷۸

۵) کشف الباری ج ٤ ص ٤٤۲

۶) کشف الباری ج ۱ ص ۳۲۶

④ **عطاء بن یزید اللیثی**: دا ابو محمد یا ابو یزید عطاء بن یزید اللیثی، ثم الجندعی المدنی، ثم الشامی رحمه الله دی (۱)

هغه د سیدنا تمیم الداری، ابوهریره، ابو سعید خدری، ابو ایوب انصاری، ابو ثعلبه الخشنی رضی الله عنهم نه علاوه د حمران بن ابان مولی عثمان بن عفان او عبید الله بن عدی رحمهما الله نه روایت حدیث کوی

د هغه نه په روایت کونکو کښ امام زهری، د هغه خپل خوئي سلیمان بن عطاء بن یزید، ابو عبید حاجب سلیمان بن عبد الملك، ابو صالح السمان، سهیل بن ابی صالح، جمیل بن ابی میمونه او هلال بن میمون الرملی رحمهم الله نه روایت کوی. (۲)

امام علی بن المدینی رحمه الله فرمائی: ﴿وکان ثقة﴾(۳)

امام نسائی رحمه الله فرمائی: ﴿شامی ثقة﴾(٤)

امام ابن معین رحمه الله فرمائی: ﴿ثقة﴾(۵)

امام عجلی رحمه الله فرمائی: ﴿تابعی، ثقة﴾(۶)

ابن سعد رحمه الله فرمائی: ﴿وهو کثیر الحدیث﴾(۷)

ابن حبان رحمه الله هغه په کتاب الثقات کښ ذکر کړې دې. (۸)

د اتیا کالو په عمر کښ ئې په ۱۰۵ هجری کښ وفات شوې دې. (۹) رحمه الله رحمة واسعة

⑤ **سیدنا ابو ایوب انصاری رضی الله عنه**: دا د رسول الله ﷺ کوربه (میلمستیا کونکې)، سیدنا ابو ایوب خالد بن زید بن کلیب بن ثعلبه بن عبد عوف بن غنم الانصاری النجاری الخزرجی رضی الله عنه دې (۱۰)

سیدنا ابو ایوب انصاری رضی الله عنه په بیعت عقبه ثانیه کښ شریك وو، د غزوه بدر سره سره په ټولو غزواتو کښ هم شریك وو. (۱۱) د رسول الله ﷺ د استوګنې ځائې چه ترڅو پورې جوړ

---

۱) تهذیب الکمال ج ۲۰ ص ۱۲۳

۲) د شیوخ او تلامذه د تفصیل دپاره اوګورئ: تهذیب الکمال ج ۲۰ ص ۱۲۳، ۱۲٤

۳) الجرح والتعدیل ج ۶ ص ٤۳۸، رقم (۱۸۶۶/۱۱۱۱۶)

٤) تهذیب الکمال ج ۲۰ ص ۱۲٤

۵) تعلیقات تهذیب الکمال ج ۲۰ ص ۱۲٤

۶) معرفة الثقات للعجلی ج ۲ ص ۱۳۷، رقم ۱۲٤٤

۷) الطبقات لابن سعد ج ۵ ص ۲٤۹

۸) الثقات لابن حبان ج ۵ ص ۲۰۰

۹) پورته حواله

۱۰) تهذیب الکمال ج ۸ ص ۶۶

۱۱) پورته حواله

شوي نه وو، درسول الله ﷺ دميلمستيا شرف سيدنا ابو ايوب انصاري رضي الله عنه ته حاصل وو.(١)

هغه د رسول الله ﷺ نه علاوه د سيدنا ابى بن كعب رضي الله عنه حديث روايت كوى، د هغوى نه په روايت كونكو كښ سيدنا براء بن عازب، سيدنا جابر بن سمرة، سيدنا مقدام بن معديكرب، سيدنا ابو امامه الباهلى، سيدنا زيد بن خالد الجهنى، سيدنا عبدالله بن عباس او سيدنا عبدالله بن يزيد خطمى رضي الله عنهم دى.
او په تابعينو كښ ترې سعيد بن المسيب، سالم بن عبدالله بن عمر، عروة بن الزبير، عطاء بن يزيد الليثى رحمهم الله وغيره يو ګڼړ تعداد روايت كوى (٢) رسول الله ﷺ د هغه او د سيدنا مصعب بن عمير رضي الله عنهما ترمينځه د مواخات رشته قائم كړې وه.(٣)
سيدنا علي رضي الله عنه هغه په مدينه منوره باندې خپل نائب جوړ كړې وو، روستو سيدنا ابو ايوب انصاري رضي الله عنه هم عراق ته لاړو او د سيدنا على رضي الله عنه په ملګرتيا كښ ئې د خوارجو خلاف په قتال كښ شركت اوكړو. (٤)
د رسول الله ﷺ په ګيره مباركه كښ هغه څه ځيز اوليدو، هغه ئې ترې راويستلو، رسول الله ﷺ هغه ته دعا اوكړه: ﴿لايصيبك السوء يا ابا ايوب﴾ اې ابو ايوب! تاته به هيڅ قسمه بدى نه رسيږى. (٥)

ټول ژوند ئې جهاد كړې دې، فرمائيل به ئې چه الله پاك فرمائى: ﴿انفروا خفافا وثقالا﴾(٦) (يعنى كه خفيف يئ كه ثقيل، په هر حال كښ د جهاد دپاره اوځئ) زه د دې دواړو احوالو نه خالى نه يم لهذا جهاد به كوم. (٧)
چه كله ئې د وفات وخت نزدې راغلو نو هغه وخت هم هغه د يزيد بن معاويه په مشرئ كښ په قسطنطنيه كښ په جهاد كښ مصروف وو، په دې موقع باندې هغوى وصيت اوكړو چه كله زه مړ شم نو زما بدن د كوم ځائې پورې چه اوړلې شئ يوسئ او چه كله د دشمنانو په مقابله كښ صفونه جوړ كړئ نو په خپلو خپو كښ مې دفن كړئ.
پس د هغوى د وصيت مطابق هغه عمل اوكړې شو، نن هم د هغوى مزار شريف ته هر عام او خاص راځى، چه خلق د هغوى په بركت او توسل سره د الله پاك نه باران طلب كوى نو باران كيږى. (٨)

---

١) پورته حواله
٢) د شيوخ او تلامذه د تفصيل دپاره اوګورئ: تهذيب الكمال ج ٨ ص ٦٧، ٦٨
٣) الاصابة ج ١ ص ٤٠٥
٤) پورته حواله
٥) پورته حواله
٦) التوبة: ٤١
٧) سير اعلام النبلاء ج ٢ ص ٤٠٤، ٤٠٥
٨) اوګورئ: سير اعلام النبلاء ج ٢ ص ٤١٠، والاصابة ج ١ ص ٤٠٥

د رسول الله ﷺ سره د هغوى معامله څنګه وه او د هغوى دعزت او ناموس به ئي څومره لحاظ ساتلو د دې خبرې اندازه د دې نه اولګوئ چه يو کرت د هغوى بيبى هغه ته اووې چه خلق د سيده عائشه رضي الله عنها په باره کښې خبرې کوې، د دې تاسو ته علم شته؟ سيدنا ابو ايوب رضي الله عنه زر جواب ورکړو! او ولې راته نشته! دا ټول دروغ دى، بيا ئې ترې تپوس اوکړو اې ام ايوب! که د عائشې رضي الله عنها په ځائې ته وې نو آيا دا فعل ستا نه کيدې شي؟ بى بى ورته اووې : ﴿لاوالله﴾ کله هم نه! وې فرمائيل : قسم په الله! عائشه ستا نه ډيره غوره ده! د هغې نه دا حرکت څنګه کيدې شي! پس الله پاك د ابو ايوب رضي الله عنه په شان حضراتو په باره کښې فرمائى : ﴿ لَوْلَا إِذْ سَمِعْتُمُوهُ ظَنَّ الْمُؤْمِنُونَ وَالْمُؤْمِنَاتُ بِأَنْفُسِهِمْ خَيْرًا وَقَالُوا هَٰذَا إِفْكٌ مُبِينٌ ﴾ (۱) (يعني مومنانو سړو او مومنانو ښځو په دې اوريدلو سره په خپلو ځانونو باندې د خير ګمان ولې اونکړو او دا ئې ولې او نه وئيل چه دا ښکاره بهتان دې. (۲)

د سيدنا ابو ايوب انصارى رضي الله عنه نه يو نيم سل احاديث روايت شوې دى، د هغې نه اووه احاديث متفق عليه دى، او امام بخارى رحمه الله په يو حديث سره او امام مسلم رحمه الله په پنځه احاديثو سره متفرد دى. (۳)

په ۵۰ هجرى، ۵۱ هجرى يا ۵۲ هجرى کښې د جهاد په حالت کښې وفات شو، د اکثر حضراتو په نزد دا اخرى قول راجح دې. (٤) والله اعلم ... رضى الله عنه وارضاه، واجزل مثوبته

**په ذکر شوې مسئله کښې د امام بخارى رحمه الله رجحان**: د استقبال او استدبار مسئله مختلف فيه ده، وړاندې به ان شاء الله تفصيل راشى.

خو دلته په يوه خبره باندې ځان پوهه کول پکار دى چه د امام بخارى رحمه الله په دې سلسله کښې رجحان کوم طرف ته دې؟

د ترجمة الباب د الفاظو نه معلوميږى چه د هغوى په نزد دلته د قضاء حاجت په وخت استقبال في الفضاء ممنوع دې، او استقبال فى البناء وعند الساتر جائز دې، د استدبار سره بخارى هيڅ تعرض نه دې کړې.

او! که د مفهوم مخالف اعتبار اوکړې شى، لکه چه د جمهورو رائې ده، نو دا به وائى چه امام بخارى رحمه الله استدبار ته هم جائز وائى. والله اعلم

**مسئله استقبال واستدبار قبله**: په دې مسئله کښې علماء د علماء کرامو اته اقوال دى، د دې نه مشهور درې اقوال دى، اول هغه څلور مشهور اقوال بيانولې شى.

---

۱) النور : ۱۲

۲) تهذيب الكمال ج ۸ ص ۶۸، ۶۹

۳) اوګورئ : تهذيب الاسماء واللغات ج ۲ ص ۱۷۷، وعمدة القارى ج ۲ ص ۲۷۶، وخلاصة الخزرجى ص ۱۰۰، وسير اعلام النبلاء ج ۲ ص ۴۰۳، خو په سير اعلام النبلاء کښې د ټولو احاديثو تعداد د يو نيم سلو په ځائې يو سل پنځه پنځوس ذکر دې. والله اعلم

٤) اوګورئ : الاصابة ج ۱ ص ۴۰۵

① **المنع مطلقا** : يعنى استقبال قبله او استدبار قبله، كه په بنيان كښ وى يا په صحرا كښ وى، بهر صورت ممنوع او ناجائز دى.
سيدنا ابو ايوب انصارى، سيدنا ابوهريره، سيدنا عبدالله بن مسعود، سيدنا سراقة بن مالك رضي الله عنهم نه علاوه عطاء، مجاهد، ابراهيم نخعى او امام اوزاعى رحمهم الله هم د دې قائل دى.
د امام ابوحنيفه، سفيان الثورى او د يو روايت مطابق د امام احمد رحمه الله هم مذهب دا دې!
په شافعيه كښ ابوثور، په مالكيانو كښ ابن العربى، په حنابله كښ ابن القيم او په ظاهريه كښ ابن حزم رحمه الله هم دا مذهب راجح كړې دې او هم دا ئې اختيار كړې دې. (١)
② **الجواز مطلقا** : يعنى استقبال او استدبار قبله، كه په صحرا كښ وى يا په بنيان كښ، مطلقا جائز دې. د عروه بن الزبير، ربيعه الرائى او داؤد ظاهرى هم دا مسلك دې. (٢)
③ **التفرقة بين الصحارى والبنيان** : يعنى په ښكاره فضاء كښ چرته چه يو څيز ساتر او حائل نه وى، ممنوع دې او چرته چه ابادى وى، يا يو څيز ساتر او حائل وى نو ممنوع نه دې.
د امام شافعى، امام مالك او د يو روايت مطابق امام احمد بن حنبل رحمه الله هم دا مذهب دې، د ابن عباس. ابن عمر رضي الله عنهما، امام شعبى او امام اسحاق بن راهويه رحمهما الله تعالى نه هم دا مذهب روايت شوې دې. (٣)
بيا د ساتر او حائل په باره كښ د شوافع په نزد باندې تفصيل دا دې چه قضاء حاجت كونكې سړې ساتر وغيره سره دومره نزدې كيناستلو چه د هغه او د ديوال ترمينځه ذراع يا د دې نه كمه فاصله وى او د هغې اوچت والې كم از كم د موخرة الرحل برابر وى.
كه قضاء حاجت كونكې او حائل د ديوال ترمينځه د درې ذراع نه زياته فاصله وى، يا د حائل اوچتوالې ﴿موخرة الرحل﴾ نه كم وى نو په دې صورت كښ استقبال او استدبار قبله حرام دې، خو كه يو ځائې د قضاء حاجت دپاره مستقلا جوړكړې شوې وى نو په دې كښ هيڅ شرط نشته، فقهاء شافعيه وائى چه كه قضاء حاجت صحرا كښ وى او دې سړى يو څيز ساتر جوړ كړې وى نو د ذكر شوې شرطونو (يعنى ساتر او قضاء حاجت كونكې ترمينځه د

---

١) اوګورئ: البحر الرائق ج ٢ ص ٥٩، كتاب الصلاة، فصل كره استقبال القبلة بالفرج، والبناية ج ٢ ص ٤٦٦ - ٤٦٨، والدر المختار مع رد المحتار ج ١ ص ٢٥١، والمغنى لابن قدامة ج ١ ص ١٠٧، فصول فى اداب التخلى، والانصاف للمرداوى ج ١ ص ١٠٠، ١٠١، وعمدة القارى ج ٢ ص ٢٧٧، وعارضة الاحوذى ج ١ ص ٢٧، كتاب الطهارة، باب الرخصة، فى ذلك، وزاد المعاد ج ٢ ص ٣٨٤ – ٣٨٦، فصل فى هديه صلى الله عليه وسلم فى الذكر عند دخوله الخلاء، والمحلى لابن حزم ج ١ ص ١٩٣ – ١٩٩، كتاب الطهارة رقم ١٤٦.
٢) اوګورئ: المحلى ج ١ ص ١٩٤، والمجموع شرح المهذب ج ٢ ص ٨١، فرع فى المذاهب العلماء فى استقبال القبلة واستدبارها، والمغنى لابن قدامة ج ١ ص ١٠٧
٣) اوګورئ: المجموع شرح المهذب ج ٢ ص ٨١، والمغنى ج ١ ص ١٠٧، ومواهب الجليل ج ١ ص ٤٠٤، فصل : اداب قضاء الحاجة، وبداية المجتهد ج ٢ ص ٩٥- ٩٩، الباب السادس فى اداب الاستنجاء (اخر كتاب الطهارة قبيل كتاب الصلاة.

دريږ ذراع نه زیاته فاصله نه وی او اوچتوالې د ﴿موخرة الرحل﴾ سره برابر وی، موندلې کیدو په صورت کښې به حرمت نه وی.
ګویا اصل مدار ساتر باندې دې، چرته چه د دوارو شرطونو سره ساتر اوموندلې شو، که ابادی وی او که صحرا، حرمت به نه وی او چرته چه په دې دوارو شرطونو کښې یو شرط فوت کیږی نو حرمت به وی، که صحرا وی یا بنیان.
البته په شافعیه کښې علامه ماوردی او رویانی دوه وجوه ذکر کړې دې، یو خو هم دا وجه ده، کومه چه مونږ ذکر کړې ده، دویمه وجه دا ده چه په بنیان کښې مطلقا بغیر د شرط نه جائز دې، او په صحرا کښې اګر چه ساتر ته نزدې ولې نه کینی، مطلقا حرام دې.
امام نووی رحمه الله فرمائی چه اوله وجه صحیح ده. (۱)
د ساتر په باره کښې چه کوم تفصیل شوافع ذکر کړې دې، د مالکیانو او حنابله په نزد دلته هم فی الجمله ملحوظ دې، خو څومره په تفصیل سره چه امام نووی رحمه الله ذکر کړې دې، دومره تفصیل د هغوی په نزد نه ملاویږی. (۲)

④ **عدم جواز الاستقبال مطلقا وجواز الاستدبار مطلقا** : یعنی استقبال قبله صحرا کښې وی یا په آبادئ کښې، مطلقا ناجائز دې او استدبار مطلقا یعنی په دوارو ځایونو کښې جائز دې. دا د امام ابوحنیفه او امام احمد رحمهما الله یو یو روایت دې. (۳)

⑤ **النهی للتنزیه** : یعنی د استقبال او استدبار قبله نه ممانعت تنزیها دې، تحریما نه دې، دا دامام ابوحنیفه، امام احمد او د ابو ثور یو روایت دې. (٤)

⑥ **جواز الاستدبار فی البنیان فقط** : یعنی په آبادئ کښې دننه صرف استدبار جائز دې، استقبال جائز نه دې، هم دغه شان په صحرا کښې نه استقبال جائز دې او نه استدبار، دا د امام ابویوسف رحمه الله نه روایت دې. (۵)

⑦ **التحریم مطلقا حتی فی القبلة المنسوخة** : یعنی استقبال او استدبار نه صرف د کعبې طرف ته جائز نه دې، بلکه دقبله منسوخه بیت المقدس استقبال او استدبار هم ناجائز دې.

دا دابراهیم نخعی او ابن سیرین رحمهما الله تعالی نه منقول دې. (۶)

---

۱) د ټولو تفصیلاتو دپاره اوګورئ: المجموع شرح المهذب ج ۲ ص ۷۸، ۷۹
۲) اوګورئ: الشرح الکبیر للدردیر ج ۱ ص ۱۰۸، ۱۰۹، وحاشیة الدسوقی علی الشرح الکبیر ج ۱ ص ۱۸۰، ۱۸۱، ومواهب الجلیل ج ۱ ص ٤۰۳، ٤۰٤، والانصاف للمرداوی ج ۱ ص ۱۰۱، ۱۰۲، هم دغه شان اوګورئ: اوجز المسالک ج ٤ ص ۱۶۳، کتاب القبلة، باب النهی عن استقبال القبلة والانسان علی حاجته.
۳) اوګورئ: البنایة للعینی ج ۲ ص ٤۶۶، والانصاف للمرداوی ج ۱ ص ۱۰۱
٤) اوګورئ: البنایة للعینی ج ۲ ص ٤۶۸، والانصاف للمرداوی ج ۱ ص ۱۰۱، واوجز المسالک ج ٤ ص ۱۶۲، ونیل الاوطار ج ۱ ص ۸۹، باب نهی المتخلی عن استقبال القبلة واستدبارها.
۵) اوګورئ: نیل الاوطار ج ۱ ص ۸۹، باب نهی المتخلی عن استقبال القبلة واستدبارها، واجز المسالک ج ٤ ص ۱۶۲
۶) پورته حواله جات

⑧ **اختصاص التحريم باهل المدينة** : يعنى دا حكم چه استقبال او استدبار د كعبې دې اونكړې شى، د اهل مدينه او په دې جهت كښې د أوسيدونكو سره مختص دې، د كومو خلقو قبله چه د مشرق يا مغرب طرف ته وى د هغوى دپاره استقبال او استدبار جائز دې، دا : ابو عوانه رحمه الله قول دې (۱)

**د احنافو وغيره استدلال** : د اول مذهب والو د سيدنا ابو ايوب انصارى رضي الله عنه د روايت الباب وغيره نه استدلال كړې دې.

② په صحيح مسلم كښې د ابوهريره رضي الله عنه نه مرفوعا روايت دې ﴿ اذا جلس احدكم على حاجته، فلا يستقبل القبلة ولا يستدبرها ﴾(۲)

يعنى چه كله په تاسو كښې څوك د قضاء حاجت دپاره كينى نو نۀ دې قبلې ته مخ كوى او نه دې ورته شا كوى.

③ هم دغه شان احنافو وغيره په خپل مذهب باندې د سيدنا ابوهريره رضي الله عنه په روايت مرفوعه باندې هم استدلال كړې دې، كوم چه امام نسائى، امام ابوداؤد، امام ابن ماجه او امام احمد رحمهم الله وغيره تخريج كړې دې.

﴿ انما انا لكم مثل الوالد، اعلمكم اذا ذهب احدكم الى الخلاء فلا يستقبل القبلة ولا يستدبرها ﴾(۳)

يعنى زه ستاسو د پلار په شان يم، د پلار په شان درته ښودنه كوم، چه كله په تاسو كښې څوك د قضاء حاجت دپاره ځى نو نه دې قبلې ته مخ كوى او نه د ورته شا كوى.

④ دې حضراتو د سيدنا سهل بن حنيف رضي الله عنه د روايت نه هم استدلا ل كړې دې، كوم چه امام دارمى، امام احمد او امام حاكم رحمهم الله تخريج كړې دې.

﴿ قَالَ لِي رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : أَنْتَ رَسُولِي إِلَى مَكَّةَ فَأَقْرِئْهُمْ مِنِّي السَّلَامَ، وَقُلْ لَهُمْ : إِنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَأْمُرُكُمْ بِثَلَاثٍ : لَا تَحْلِفُوا بِآبَائِكُمْ، وَإِذَا خَلَوْتُمْ فَلَا تَسْتَقْبِلُوا الْقِبْلَةَ، وَلَا تَسْتَدْبِرُوهَا، وَلَا تَسْتَنْجُوا بِعَظْمٍ وَلَا بِبَعْرٍ ﴾ (اللفظ للحاكم) (٤)

يعنى : ماته رسول الله صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل چه ته د مكې والو طرف ته زما استاذې ئې، هغوى ته

---

۱) پورته حواله جات

۲) صحيح مسلم، كتاب الطهارة، باب الاستطابة رقم ۶۱۰

۳) سنن النسائى، كتاب الطهارة، باب النهى عن الاستطابة بالروث، رقم ٤۰، وسنن ابى داؤد، كتاب الطهارة، باب كراهية استقبال القبلة عندقضاء الحاجة، رقم ۸ وسنن ابن ماجة، كتاب الطهارة، باب الاستنجاء بالحجارة، والنهى عن الروث والرمة، رقم ۳۱۳، ومسند احمد: ۲\۲٤۷، رقم (۷۳۶۲)، و: ۲\۲۵۰، رقم (۷٤۰۳)

٤) المستدرک للحاكم ج ۳ ص ٤۱۲، طبع قديم ج ۳ ص ٤۶۶، طبع جديد، كتاب معرفة الصحابة، باب ذكر مناقب سهل بن حنيف الانصارى، وكنيته ابو ثابت رضى الله عنه، رقم ۵۷٤۳، وسنن الدارمى ج ۱ ص ۱۷۸، كتاب الطهارة، باب النهى عن استقبال القبلة بغائط او بول، رقم ۶۶٤، ومسند احمد ج ۳ ص ٤۸۷، رقم ۱۶۰۸۰.

زما سلام اورسوه او ورته اوايه چه رسول اللهﷺ تاسو ته د درې خبرو حکم درکوی، په خپلو پلارانو نيکونو قسمونه مه خورئ، چه کله د حاجت دپاره ځائې نو د قبلې طرف ته استقبال او استدبار مه کوئ او په هډوکی يا خشنړو سره استنجاء مه کوئ.
د دې روايت په سند کښې عبدالکريم بن ابي المخارق دې، کوم چه متفق عليه ضعيف دې.
(۱) اګرچه امام مالك (رح) دهغوی نه په مؤطا کښې روايت کړې دې.(۲)
خو چونکه دا د حديث ابی ايوبؓ دپاره د شاهد په درجه کښې دې په دې وجه دا ضعف قابل تحمل دې، هم دا وجه ده چه حافظ ذهبیؒ په دې حديث باندې سکوت اختيار کړې دې. (۳)
⑤ امام طبرانیؒ په المعجم الکبير کښې د سيدنا سهل بن سعدؓ مرفوع حديث نقل کړې دې: ﴿إِذَا ذَهَبَ أَحَدُكُمُ الْخَلَاءَ، فَلَا يَسْتَقْبِلِ الْقِبْلَةَ وَلَا يَسْتَدْبِرْهَا﴾(٤)
يعنی په تاسو کښې چه څوك د خپل حاجت دپاره ځی نو نه دې د قبلې طرف ته مخ کوی او نه دې ورته شا کوی.
په دې روايت کښې د واقدی واسطه ده، چه ضعيف دې، خو د شاهد جوړيدو دپاره کافی دې.(۵)
**د مجوزينو دلائل او د هغې جوابات**: د مجوزينو د ټولو نه اهم دليل د سيدنا عبدالله بن عمرؓ روايت دې. هغه فرمائی ﴿لَقَدِ ارْتَقَيْتُ يَوْمًا عَلَى ظَهْرِ بَيْتٍ لَنَا فَرَأَيْتُ رَسُولَ اللهِ صلى الله عليه وسلم عَلَى لَبِنَتَيْنِ مُسْتَقْبِلًا بَيْتَ الْمَقْدِسِ لِحَاجَتِهِ﴾ اللفظ للبخاری (۶)
يعنی زه يوه ورځ د خپل کور چهت باندې اوختلم، ما رسول اللهﷺ په دوه ښختو باندې د حاجت دپاره د بيت المقدس طرف ته مخ کولو سره ناست اوليدو.

---

۱) اوګورئ: تقريب التهذيب ص ۳۶۱، رقم ٤١٥٦
۲) قال يحيٰ بن معين: كل من روى عنه مالك بن أنس فهو ثقة، الا عبدالكريم البصرى أبو أمية، اوګورئ اسعاف المبطأ، ص:۹، وانظر التعليق الممجد: ۱۲\۱۳، باب تأخير الوتر.
۳) اوګورئ: تلخيص المستدرک المطبوع مع المستدرک للحاكم ج ۳ ص ٤١٢، كتاب معرفة الصحابة. باب ذكر مناقب سهل بن حنيف الانصارىؓ
٤) المعجم الكبير للطبرانى ج ٦ ص ١٢٨، رقم ٥٧٣٥
٥) اوګورئ مجمع الزوائد ج ١ ص ٢٥٤، رقم ١٠١١
٦) صحيح البخارى ج ١ ص ٢٦، كتاب الوضوء باب من تبرز على لبنتين، رقم ١٤٥، و ج ١ ص ٢٧، كتاب الوضوء، باب التبرز فى البيوت رقم ١٤٨، وباب بدون ترجمة (بعد الباب المذكور) رقم ١٤٩، و ج ١ ص ٤٣٧، كتاب فرض الخمس، باب ما جاء فى بيوت ازواج النبىﷺ، وما نسب من البيوت اليهن، رقم ٣١٠٢، وصحيح مسلم، كتاب الطهارة، باب الاستطابة، رقم ٦١١، ٦١٢، وسنن النسائى، كتاب الطهارة، باب الرخصة فى ذلک فى البيوت، رقم ٢٣، وسنن ابى داؤد، كتاب الطهارة، باب الرخصة فى ذلک، رقم ١٢، وجامع الترمذى، كتاب الطهارة، باب ما جاء من الرخصة فى ذلک، رقم ١١، وسنن ابن ماجة، كتاب الطهارة، باب الرخصة فى ذلک فى الكنيف، واباحته، دون الصحارى، رقم ٣٢٢، ٣٢٣

ددې روايت نه قائلين جوازاستقبال واستدبار مطلقا ، قائلين جواز فى البنيان، قائلين جواز استدبار مطلقا ،قائلين جوازاستدبارفى البنيان اوقائلين كراهت تنزيهيه استدلال كوى.
خو د دې روايت نه استدلال د سيدنا ابوايوب انصارى رضی اللہ عنہ د روايت په مقابله كښې كمزورې دې. د دې وجه دا ده چه په دې حديث كښې باوجود د صحيح كيدو نه د مختلفو احتمالاتو گنجائش دې.
يو احتمال خو دا دې چه رسول الله ﷺ په اصل كښې مستدبر قبله نه وى، خو د ابن عمر رضی اللہ عنہما په ليدو باندې د حياء د تقاضه د وجې نه ئې خپل هيئت بدل كړې وى، د دې هنگامى بدلون د وجې نه معمولى استدبار متحقق شو
دويم احتمال دادې چه رسول الله ﷺ مكمل طور باندې مستدبر الى القبله نه وى، بلكه د كعبې نه ئې معمولى انحراف كړې وى چه دغه انحراف حضرت ابن عمر رضى الله عنهما د لرې نه معلوم نه كړې شو.
دريم احتمال دادې چه دا د رسول الله ﷺ خصوصيت وى، د دې خبرې تائيد د دې نه كيږى چه د علماء كرامو يو جماعت تصريح كړې ده چه د رسول الله ﷺ فضلات پاك وو. (۱) لهذا بعيده نه ده چه رسول الله ﷺ د دې حكم نه مستثنى وى.
دلته دا خبره هم قابل غور ده چه كه په دې عمل سره د رسول الله ﷺ مقصود د استدبار اجازت وركول وې نو د يو پټ عمل په ذريعه د هغې د تعليم په ځائې به ئې په واضح الفاظو كښې د ټول امت مخكښې دا حكم بيان فرمائيلې وې لكه چه د سيدنا ابو ايوب انصارى رضی اللہ عنہ وغيره نورو حضراتو صحابو رضی اللہ عنہم په روايت كړې شوې دې.
د دې نه معلومه شوه چه د حديث ابن عمر نه د سيدنا ابو ايوب انصارى رضی اللہ عنہ د روايت خلاف څه تشريعى حكم مستنبط كول صحيح نه دى. (۲)
بيا دابن عمر رضی اللہ عنہما په حديث كښې صرف دومره خبره ده چه ما رسول الله ﷺ د بيت المقدس طرف ته رخ كولو سره ناست اوليدو، په دې كښې د بنيان او صحرا تفريق نه معلوميږى، لهذا كوم حضرات چه د بنيان او صحرا په بنياد باندې فرق كوى دهغوى استدلال ددې نه نه تأم كيږى.

---

۱) اوگورئ : اعانة الطالبين ج ۱ ص ۹۹

۲) قال ابن العربى فى عارضة الاحوذى ج ۱ ص ۲۷، ابواب الطهارة، باب الرخصة فى ذلک، وحديث ابن عمر لا يعارضه، ولا حديث جابر لاربعة اوجه : احدها : انه قول وهذان فعلان ولا معارضة بين القول والفعل، الثانى : ان الفعل لا صيغة له، وانما هو حكاية حال، وحكايات الاحوال معرضة للاعذار والاسباب، والاقوال لا محتمل فيها من ذلک، الثالث: ان القول شرع مبتدا، وفعله عادة، والشرع مقدم على العادة، الرابع ان هذا الفعل لو كان شرعا لما تستر به.

وقال ابن القيم فى زاد المعاد ج ۲ ص ۳۸۶، فصل فى هديه ﷺ فى الذكر عند دخول الخلاء : وهذا يحتملُ وجوهاً ستة: نسخُ النهى به، وعكسه، وتخصيصه به صَلّى اللهُ عَلَيْه وَسَلَّمَ، وتخصيصه بالبنيان، وأن يكونَ لعذر اقتضاه لمكان أو غيره، وأن يكون بياناً، لأنّ النهى ليس على التحريم، ولا سبيلَ إلى الجزم بواحد من هذه الوجوه على التعيين.

د دي په جواب كښې شوافع وغيره، كوم چه د تفريق قائل دی د سيدنا ابن عمر رضي الله عنهما يو اثر پيش كوی. ﴿عَنِ الْحَسَنِ بْنِ ذَكْوَانَ، عَنْ مَرْوَانَ الْأَصْفَرِ، قَالَ: رَأَيْتُ ابْنَ عُمَرَ أَنَاخَ رَاحِلَتَهُ مُسْتَقْبِلَ الْقِبْلَةِ، ثُمَّ جَلَسَ يَبُولُ إِلَيْهَا، فَقُلْتُ: يَا أَبَا عَبْدِ الرَّحْمٰنِ، أَلَيْسَ قَدْ نُهِيَ عَنْ هٰذَا؟ قَالَ: بَلَىٰ إِنَّمَا نُهِيَ عَنْ ذٰلِكَ فِي الْفَضَاءِ، فَإِذَا كَانَ بَيْنَكَ وَبَيْنَ الْقِبْلَةِ شَيْءٌ يَسْتُرُكَ فَلَا بَأْسَ﴾ (١)

يعنی ما سيدنا ابن عمر رضي الله عنهما اوليدو چه هغه خپله سورلۍ قبلې ته مخامخ كينوله او بيا ئې د هغې طرف ته بتيازې اوكړې، ما عرض اوكړو اې ابو عبدالرحمن! ايا دا كار منع كړې شوې نه دی؟ هغوی اوفرمائيل: ولې نه! خو دا ممانعت په ښكاره فضاء كښې دی، كه ستا او د قبلې ترمينځه يو څيز وی نو بيا هيڅ باك نشته.

د مانعين د طرف نه د دې مختلف جوابات كړې شوې دی.

خليل احمد سهارنپوری رحمه الله د دې دا جواب كړې دې چه دا روايت ضعيف دې، ځكه چه د دې راوی حسن بن ذكوان دې، چاته چه محدثينو ضعيف وئيلې دې. (٢) لهذا دا روايت قابل استدلال نه دې. (٣)

خو دا جواب تسلی بخش نه دې ځكه چه حسن بن ذكوان يو مختلف فيه راوی دې، د هغه چه يو طرف ته علماء كرامو تضعيف كړې دې نو بل طرف ته ئې توثيق هم كړې دې، هم ددې اقوالو د وجې نه حافظ ذهبی رحمه الله فرمائی: ﴿وهو صالح الحديث﴾ (٤)

ابن عدی رحمه الله فرمائی: ﴿يروی أحاديث لا يرويها غيره، على أن يحيى بن سعيد وابن المبارك قد رويا عنه كما ذكرته، وناهيك للحسن بن ذكوان من الجلالة أن يرويا عنه، وأرجو أنه لا بأس به﴾ (٥)

يعنی حسن بن ذكوان داسې روايتونه نقل كوی كوم چه بل څوك نه روايت كوی، د دې باوجود د يحيى بن سيعد او عبدالله بن مبارك رحمهما الله په شان بزرګانو د هغه نه حديث روايت كړې دې، هم دا د هغه د جلالت شان دپاره كافی ده، زما اميد دې چه هغه ﴿لا بأس به﴾ دې.

علامه ابن حبان رحمه الله هغه په كتاب الثقات كښې ذكر كړې دې. (٦)

---

١) السنن لابی داؤد، كتاب الطهارة، باب كراهية استقبال القبلة عند قضاء الحاجة، رقم ١١، والمستدرك للحاكم ج ١ ص ١٥٤، طبع قديم ج ١ ص ٢٥٦، طبع جديد، كتاب الطهارة، رقم ٥٥١، والسنن الكبرى للبيهقی ج ١ ص ٩٢، طبع قديم و ج ١ ص ١٤٩، كتاب الطهارة، باب الرخصة فی ذلك فی الابنية رقم ٤٣٨، وسنن الدارمی ج ١ ص ٥٨، كتاب الطهارة، باب استقبال القبلة فی الخلاء.

٢) د حسن بن ذكوان په باره كښې د محدثينو د اقوالو دپاره اوګورئ: تهذيب التهذيب ج ٢ ص ٢٤١

٣) اوګورئ: بذل المجهود ج ١ ص ٢٠١، كتاب الطهارة، باب كراهية استقبال القبلة عند قضاء الحاجة.

٤) ميزان الاعتدال ج ١ ص ٤٨٩، رقم ١٨٤٤

٥) الكامل لابن عدی ج ٢ ص ٣١٧

٦) الثقات لابن حبان ج ۶ ص ۱۶۳، رقم ۷۱۶۹

هم په دې وجه باندې حافظ ابن حجرؒ په التلخيص الحبير کښې په دې باندې سکوت فرمائيلې دې، کوم چه د دې د حسن کيدو دليل دې، (۱) امام دارقطنيؒ فرمائي : ﴿ هذا صحيح كلهم ثقات ﴾ يعنی دا روايت صحيح دې، او د دې ټول راويان ثقه دی، فرمائيلې دی.

(۲) امام ابن الجارودؒ دا په المنتقی کښې تخريج کړې دې. (۳) او دا خبره معروف ده چه ابن الجارودؒ په دې خپل کتاب کښې صحيح احاديث نقل کوی.

د دې صحيح جواب هم دا دې چه دا د ابن عمرؓ خپل عمل دې، کوم چه د احاديث مرفوعه په مقابله کښې حجت نه دې. په احاديث مرفوعه کښې د دې تفريق هيڅ بنياد نه دې ذکر شوې.

البته د ابن عمرؓ د حديث ﴿ لَقَدِ ارْتَقَيْتُ يَوْمًا عَلَى ظَهْرِ بَيْتٍ لَنَا ... ﴾ د معروف طرق نه خو تفريق نه مفهوم کيږی، خو هم د دې حديث د طحاوی او ابن خزيمه په روايت کړې شوې طرق کښې د ﴿ بناء ﴾ او ﴿ ساتر ﴾ کيدل په فهم کښې راځی، پس د امام طحاویؒ الفاظ دی چه ﴿ يقضى حاجته محجوبا عليه بلبن ﴾ (۴) يعنی رسول اللهﷺ په پښختو سره کړې شوې حجاب کښې قضاء حاجت فرمائيلو، او د ابن خزيمه الفاظ داسې دی : ﴿ فاشرفت على النبىﷺ وهو على خلائه ﴾ يعنی ما رسول اللهﷺ په بيت الخلاء کښې اوليدو. که تفريق بين البنيان والصحاری ثابت هم شی نو بيا هم د دې احتمالاتو د وجې نه کوم چه مونږ مخکښې ذکر کړې دی، د سيدنا ابن عمرؓ دا حديث د سيدنا ابو ايوب انصاریؓ د حديث په مقابله کښې مرجوح دې. په وړاندې باب کښې د دې څه تفصيل راروان دې

د دې نه علاوه که په دې جهت کښې غور اوکړې شی چه د سيدنا ابن عمرؓ د اجتهاد مطابق که د استقبال قبله ممانعت په دې خبره باندې موقوف وی چه د متخلی او کعبې ترمينځه څوک حائل موجود نه وی نو دا قسم استقبال خو صرف په حرم شريف کښې ناست ممکن دې، ځکه چه څه نه څه آبادی يا غر وغيره خو په مينځ کښې ضرور حائل کيږی، لهذا د دې تقاضه دا ده چه په صحرا وغيره کښې هم استقبال جائز وی، او حال دا چه دا خبره خپله د شوافع وغيره د مسلك خلاف ده.

د دې په جواب کښې بعض شوافع وائی چه دا دې حکم علت احترام کعبه نه دې بلکه احترام مصلين دې، پس ابو اسحاق شيرازی په ابادئ کښې جواز ثابتولو سره فرمائی : ﴿ ولان فى

---

۱) التلخيص الحبير ج ۱ ص ۱۰٤، كتاب الطهارة، باب الاستنجاء رقم ۱۲۹

۲) سنن الدارقطنى ج ۱ ص ۵۸، كتاب الطهارة، باب استقبال القبلة فى الخلاء.

۳) المنتقى ج ۱ ص ۲۱، كتاب الطهارة، باب استقبال القبلة للغائط والبول والاستنجاء. رقم ۳۲

٤ ) شرح معانى الاثار للطحاوى: ۱۲ \ ۳۷۰، كتاب الكراهة، باب استقبال القبلة ۱ \ ۳۰۱ بالفروج للغائط والبول.

الصحراء خلقا من الملائكة والجن يصلون، فيستقبلهم بفرجه وليس ذلك في البنيان ﴾(١) يعني چونكه په صحرا كښې د ملائكو او جناتو نه ډير مخلوق وي او هغوی مونځ كوي، د هغوی طرف ته به د شرمگاه رخ كول لازم شي او دا خبره په بنيان كښې نشته.

خو دا خبره صحيح نه ده او دا علت محل نظر دې، ځكه چه د ممانعت په ټولو احاديثو كښې د قبله لفظ راغلې دې، چه د هغې نه ظاهره هم دا ده چه دا حكم د احترام قبله په بنياد باندې وركولې شي.

دويم كه د احترام مصلين اعتبار اوكړې شي نو په يو طرف كښې به هم د قضاء حاجت اجازت نه وي ځكه چه په هر طرف كښې د مصلين د وجود امكان شته.

دريم كه دا حكم صحيح اومنلې شي نو بيا هم د امام شافعي رحمه الله په مسلك باندې د دې علت تطبيق نه كيږي. ځكه چه په آبادئ كښې د مصلين موجودگي د صحرا په نسبت زياته محتمل ده. لهذا په آبادئ كښې هم استدبار او استقبال جائز كيدل نه دي پكار

هم دا وجه ده چه امام نووي رحمه الله دا علت ضعيف كولو سره رد كړې دې، پس هغه فرمائي:

﴿ قول المصنف ولان في الصحراء خلقا من الملائكة والجن يصلون هكذا قاله اصحابنا واعتمدوه ورواه البيهقي باسناد ضعيف عن الشعبي التابعي من قوله وهو تعليل ضعيف فانه لو قعد قريبا من حائط واستقبله ووراءه فضاء واسع جاز بلا شك صرح به امام الحرمين والبغوي وغيرهما ويدل عليه ما قدمناه عن ابن عمر انه أناخ راحلته وبال إليها فهذا يبطل هذا التعليل فانه لو كان صحيحا لم يجزئ هذه الصورة فانه مستدبر الفضاء الذي فيه المصلون ولكن التعليل الصحيح أن جهة القبلة معظمة فوجب صيانتها في الصحراء ورخص فيها في البناء للمشقة وهذا التعليل، اعتمده القاضي حسين والبغوي والروياني وغيرهم والله أعلم ﴾(٢)

يعني د مصنف دا وينا چه په صحرا كښې ملائك او جنات وي، كوم چه مونځ كوي، پس هم دا خبره زمونږ نورو اصحابو كړې ده او په دې باندې هغوی اعتماد كړې دې، بيهقي هم د امام شعبي رحمه الله نه د هغه قول په ضعيف سند سره نقل كړې دې، خو دا علت ضعيف دې، ځكه چه امام الحرمين او امام بغوي تصريح كړې ده چه كه څوك يو ديوال ته نزدې د هغې طرف ته رخ كولو سره كيني او په هغه ديوال پسې وسيع فضاء وي نو دا صورت بيشكه جائز دې، د ابن عمر رضي الله عنهما واقعه هم په دې باندې دلالت كوي چه هغه خپله سورلئ كينوله او د هغې طرف ته مخ كولو سره ئې متيازې اوكړې. په دې سره مذكوره علت بالكل باطل كيږي، ځكه چه كه دا علت صحيح وې نو ذكر شوې صورت اختيارول به صحيح نه وې، ځكه چه هغه د فضاء طرف ته شا كړې وه، چرته چه يقينا مصلين موجود وو.

په دې سلسله كښې صحيح او برابر تعليل دا كيدې شي چه خپله جهت د قبلې معظم او محترم دې.په دې وجه په صحرا كښې د هغې خيال ساتل واجب شو، خو په بنيان او ابادئ

---

١) اوگورئ المهذب مع شرح المجموع ج ٢ ص ٧٨

٢) المهذب ج ٢ ص ٨٣

كښې چونكه د دې اهتمام ساتل د مشقت باعث دى په دې وجه هلته رخصت وركړې شو، په دې علت باندې قاضى حسين، بغوى او رويانى وغيره اعتماد كړې دې. والله اعلم

④ د مجوزينو دويم دليل د سيدنا جابر رضي الله عنه حديث دې!

《سَمِعْتُ مُحَمَّدَ بْنَ إِسْحَاقَ يُحَدِّثُ عَنْ أَبَانَ بْنِ صَالِحٍ عَنْ مُجَاهِدٍ عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللهِ قَالَ نَهَى نَبِيُّ اللهِ صلى الله عليه وسلم أَنْ نَسْتَقْبِلَ الْقِبْلَةَ بِبَوْلٍ فَرَأَيْتُهُ قَبْلَ أَنْ يُقْبَضَ بِعَامٍ يَسْتَقْبِلُهَا ... اللفظ لابى داود》(١)

يعنى: رسول الله صلى الله عليه وسلم مونږ د دې خبرې نه منع اوفرمائيلو چه مونږ د متيازو په موقع باندې قبلې ته مخ كولو سره كينو، بيا ما هغوى د وفات نه يو كال مخكښې اوليدل چه رسول الله صلى الله عليه وسلم قبلې ته مخ كولو سره ناست وو.

د دې روايت نه مطلقا اجازت وركونكو حضراتو استدلال كړې دې، هم دغه شان هغه حضراتو هم كوم چه صرف په بنيان كښې د جواز قائل دى.

بعض حضراتو دا روايت هم سندا كلام كولو سره د رد كولو كوشش كړې دې، پس حافظ ابن عبدالبر او ابن حزم رحمهما الله تعالى فرمائى چه په دې روايت كښې ابان بن صالح نومې راوى دې او هغه ضعيف دې. (٢)

هم دغه شان په دې روايت كښې محمد بن اسحاق هم دې، په چا چه امام مالك رحمه الله كلام كړې دې! (٣)

خو دا دواړه خبرې صحيح نه دى! هر چه د ابان بن صالح تعلق دې، نو د ابن حزم او ابن عبدالبر نه مخكښې چا هم په هغه باندې كلام نه دې كړې بلكه ټولو د هغه توثيق كړې دې. (٤)

پس يحيى بن معين، امام عجلى، يعقوب بن شيبه سدوسى، ابو زرعه رازى، ابو حاتم رازى او امام نسائى رحمهم الله هغه ته ثقه وئيلې دې. (٥)

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى: 《وثقه الائمة، ووهم ابن حزم فجهله، وابن عبد البر فضعفه》(٦)

يعنى ائمه كرامو د هغه توثيق كړې دې، ابن حزم ته وهم راغلې دې چه هغه ورته مجهول

---

١) سنن ابى داؤد، كتاب الطهارة، باب الرخصة فى ذلك، رقم ١٣، وجامع الترمذى، ابواب الطهارة، باب ما جاء من الرخصة فى ذلك، رقم ٩، وسنن ابن ماجة، كتاب الطهارة، باب الرخصة فى ذلك فى الكنيف، واباحته دون الصحارى رقم ٢٢٥

٢) ابن عبدالبر په التمهيد ج ١ ص ٣١٢ كښې فرمائى: لان ابان بن صالح الذى يرويه ضعيف. هم دغه شان ابن حزم رحمه الله په المحلى ج ١ ص ١٩٨، مسالة: ولا يجوز استقبال القبلة ولا استدبارها للغائط والبول كښې فرمائى: واما حديث جابر فانه من رواية ابان بن صالح وليس بالمشهور.

٣) قال ابن حبان: وقد تكلم فى ابن اسحاق رجلان هشام بن عروة و مالك بن انس. واما مالك فال هذا دجال من الدجاجلة، يروى عن اليهود. الثقات لابن حبان ج ٧ ص ٣٨٢

٤) اوګورئ: تعليقات الشيخ احمد شاكر رحمه الله تعالى على المحلى ج ١ ص ١٩٨

٥) اوګورئ: تهذيب الكمال ج ٢ ص ١٠، ١١

٦) تقريب التهذيب ص ٨٧، رقم ١٣٧

وثيلې دې او د ابن عبدالبر نه غلطي شوې ده چه هغه ورته ضعيف وئيلې دې.
هر چه د محمد بن اسحاق تعلق دې نو اول خو د امام مالک رحمه الله قول علماءکرامو په معاصرتي اختلاف باندې محمول کړې دې او چا هم نه دې قبول کړې، د دې نه علاوه روستو د دواړو خپل مينځ کښې منافرت هم ختم شوې وو. (۱)
خو په هغه باندې چه کوم کلام کړې شوې دې د هغې حاصل دا راوځی چه هغه کم از کم په حسان راويانو کښې دې، چونکه هغه به تدليس هم کولو په دې وجه د هغه عنعنه قبول نه ده.(۲)
دلته اګر چه حديث په عنعنه سره راغلې دې خو د بيهقي په بعض طرق کښې د تحديث په صيغې سره راغلې دې. په دې وجه د تدليس احتمال هم باقي نه پاتې کيږي. (۳)
هم دا وجه ده چه امام ترمذی رحمه الله د امام بخاري رحمه الله نه د دې حديث په باره کښې تپوس اوکړو نو هغوی اوفرمائيل: ﴿حديث صحيح﴾(٤)

---

۱) اوګورئ: الثقات لابن حبان ج ۷ ص ۳۸۲، وقال الذهبی فی تذكرة الحفاظ ج ۱ ص ۷۳ : وكان احد اوعية العلم، حبرا فی معرفة المغازی والسير، وليس بذاک المتقن، فانحط حديثه عن رتبة الصحة، وهو صدوق فی نفسه، مرضی، وقال احمد بن حنبل : حسن الحديث.
وقال الخطيب فی تاريخ بغداد ج ۲ ص ۲۱ : وقد امسک عن الاحتجاج بروايات ابن اسحاق غير واحد من العلماء لاسباب منها : انه كان يتشيع وينسب الى القدر، ويدلس فی حديثه، فاما الصدق فليس بمدفوع عنه.
۲) قال صاحبا التحرير : اما التشيع والقدر فلا يؤثر فی عدالته، واما التدليس فيؤثر فما رواه بالعنعنة ضعيف، وما صرح فيه بالتحديث فقوی. تحرير تقريب التهذيب ج ۳ ص ۲۱۲.
۳) السنن الكبرى للبيهقی ج ۱ ص ۹۲، قال الزيلعی فی نصب الراية ج ۲ ص ۱۰۵ : وأخرجه ابن حبان فی "صحيحه" فی القسم الثانی، والحاكم فی "المستدرک"، والدارقطنی، ثم البيهقی فی "سننهما"، وعندهم الأربعة: حدثنی أبان بن صالح، فزالت تهمة التدليس، وانظر المستدرک للحاكم ج ۱ ص ۲۵۷، كتاب الطهارة، والمنتقى لابن الجارود ج ۱ ص ۲۰، باب القول عند دخول الخلاء رقم ۳۱، وصحيح ابن حبان ج ٤ ص ۲۶۹، ذكر الخبر الدال على ان الزجر من استقبال القبلة واستدبارها ... رقم ۱٤۲۰، وسنن الدارقطنی ج ۱ ص ۵۸، باب استقبال القبلة فی الخلاء رقم ۲، مسند احمد ج ۳ ص ۳۶۰، رقم ۱٤۹۱۵
٤) كذا فی نصب الراية ج ۲ ص ۱۰۵، رقم ۲۳۰٤، وفی علل الترمذی ج ۱ ص ۲۳ : حدثنا قتيبة ، حدثنا ابن لهيعة ، عن أبی الزبير ، عن جابر ، عن أبی قتادة ، أنه رأى النبی صلى الله عليه وسلم يبول مستقبل القبلة، حدثنا محمد بن بشار ، حدثنا وهب بن جرير ، حدثنا أبی ، عن محمد بن إسحاق ، عن أبان بن صالح ، عن مجاهد ، عن جابر ، قال : نهى النبی صلى الله عليه وسلم أن نستقبل القبلة ببول ، فرأيته قبل أن يقبض بعام يستقبلها.سألت محمدا عن هذا الحديث،فقال:رواه غير واحد،عن محمدبن إسحاق، قال أبو عيسى : والحديث الأول حديث جابر ، عن أبی قتادة ليس بمحفوظ، قلت : لم ينقل عن البخاری تصحيح حديث جابر صريحا، وانما قال : رواه غير واحد عن محمد بن اسحاق، وكذلک الترمذی انما رجح حديث محمد بن اسحاق على حديث ابن لهيعة، ولم يصحح الحديث، بل قال فی جامعه : حسن غريب ... وقال ايضا : حديث جابر عن النبی صلى الله عليه وسلم اصح من حديث ابن لهيعة، انظر جامعه، ابواب الطهارة، باب من الرخصة فی ذلک رقم ۹، ۱۰

هم دغه شان حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی د سیدنا جابر رضی الله عنه دا روایت امام احمد، بزار، ابوداؤد، ترمذی، ابن ماجه، ابن الجارود، ابن خزیمه، ابن حبان، حاکم او دارقطنی رحمهم الله تخریج کړې دې، امام بخاری رحمه الله ورته صحیح ونیلې دې لکه امام ترمذی رحمه الله د هغه نه نقل کړل، خپله امام ترمذی او امام بزار د دې تحسین کړې دې، ابن السکن دې ته صحیح وئیلې دې، خو د محمد بن اسحاق د عنعنه د وجې نه امام نووی رحمه الله توقف کړې دې، حال دا چه د امام احمد رحمه الله وغیره په روایاتونو کښې د تحدیث صراحت موجود دې، ابن عبدالبر د ابان بن صالح د وجې نه دې حدیث ته ضیعف وئیلې دې، دا د هغه وهم دې، ځکه چه ابان بالاتفاق ثقه دې او ابن حزم د ابان د مجهول کیدو دعوی کړې ده چه غلطه ده. (۱)
د پورته ټولو تفصیلاتو نه دا خبره معلومه شوه چه د سند په بنیاد باندې دا حدیث رد کول صحیح نه دی.
خو د دې په راویانو باندې د کلام کیدو د وجې نه په سند کښې د یوې درجې ضعف پیدا شوې دې. او د ناسخ دپاره دا ضروری ده چه هغه د قوت په اعتبار سره د منسوخ برابر وی یا د هغه نه زیات وی، دلته د سیدنا ابو ایوب انصاری رضی الله عنه حدیث د هغې په مقابله کښې ډیر اوچت دې، لهذا حدیث جابر د حدیث ایوب دپاره ناسخ نه شی جوړیدې.
د دې نه علاوه دلته هم هغه ټول احتمالات موجود دی، کوم چه د سیدنا ابن عمر رضی الله عنهما د روایت د لاندې بیان شوې دی؛

هم دا وجه ده چه خپله حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی : ﴿ فی الاحتجاج به نظر، لانها حکایة فعل لاعموم لها، فیحتمل ان یکون لعذر، ویحتمل ان یکون فی بنیان ونحوه ﴾(۲)
یعنی د دې حدیث نه دلیل نیول محل نظر دی، ځکه چه دا یوه واقعه جزئیه ده چه د هغې څه عام حکم نه وی، په دې کښې دا احتمال هم کیدې شی چه رسول الله صلی الله علیه وسلم د څه عذر د وجې نه داسې کړې وی او دا احتمال هم ممکن دې چه رسول الله صلی الله علیه وسلم په آبادئ کښې دننه وو.
حافظ ابن القیم رحمه الله د دې حدیث په احتمالاتو باندې هم ډیر په تفصیل سره کلام کړې دې او په دې خبره ئې جزم کړې دې چه د داسې محتمل روایاتو په بنیاد باندې د نهی صحیح او صریح احادیث نه شی پریخودلې کیدې. (۳)
③ د مجوزینو دریم دلیل د سیده عائشه رضی الله عنها روایت دې؛
﴿ قَالَتْ : ذُكِرَ عِنْدَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَوْمٌ يَكْرَهُونَ أَنْ يَسْتَقْبِلُوا بِفُرُوجِهِمُ الْقِبْلَةَ، فَقَالَ : أُرَاهُمْ قَدْ فَعَلُوهَا، اسْتَقْبِلُوا بِمَقْعَدَتِي الْقِبْلَةَ ﴾(٤)
یعنی: د رسول الله صلی الله علیه وسلم وړاندې د څه خلقو تذکره اوکړې شوه چه هغوی په خپلو شرمګاهونو

۱) التلخیص الحبیر ج ۱ ص ۱۰۴، کتاب الطهارة، باب الاستنجاء رقم ۱۲۸
۲) التلخیص الحبیر ج ۱ ص ۱۰۴، کتاب الطهارة، باب الاستنجاء رقم ۱۲۸
۳) اوګورئ: زادالمعاد فی هدی خیر العباد ج ۲ ص ۳۵۸، فصل فی هدیه صلی الله علیه وسلم فی الذکر عند دخوله الخلاء
٤) سنن ابن ماجة، کتاب الطهارة، باب الرخصة فی ذلک فی الکنیف واباحته، دون الصحاری رقم ۳۲٤

سره قبلې ته مخامخ کیناستل مکروه گنړل، رسول الله ﷺ اوفرمائیل : ښه چه هغه خلقو داسې کړې دی؟ زما مقعد قبلې ته مخامخ کړئ.
د دې حدیث نه د استقبال او استدبار مطلقا مجوزین استدلا ل کوی، هم دغه شان صرف په بنیان کښې د جواز قائلین هم ترې استدلال کوی.
خو د دې په سند او متن دواړو کښې کلام کړې شوې دې، پس علماء کرامو دا روایت معلول کړې دې او وئیلې ئې دی چه په دې کښې اضطراب، وقف، ضعف راوی، نکارت او د انقطاع علتونه موندلې شی، بیا د دې ټولو نه علاوه د نسخ هم احتمال دې.
هر چه د اضطراب تعلق دې نو امام ترمذی رحمه الله فرمائی !

﴿ فسألت محمدا عن هذا الحديث فقال : هذا حديث فيه اضطراب .... ﴾
یعنی ما د امام بخاری رحمه الله نه د دې حدیث په باره کښې تپوس اوکړو نو هغه اوفرمائیل چه دا داسې حدیث دې چه په دې کښې اضطراب دې.
د دې لړ شان تفصیل دا دې چه دا روایت په لاندې ذکر شوې طریقو سره روایت دې!

① ﴿ عن خالد الحذاء، عن عراك، عن عائشة موقوفا ﴾

② ﴿ عن خالد الحذاء، عن خالد بن ابي الصلت، عن عراك، عن عائشة ﴾

③ ﴿ عن خالد الخذاء، عن خالد بن ابي الصلت عن عراك، عن عمر بن عبد العزيز، عن عائشة ﴾

④ په بعض طرق کښې د دې برعکس ﴿ عن عمر بن عبد العزيز عن عراك عن عائشة ﴾ ذکر دې.

⑤ ﴿ عن عراك، عن عروة، عن عائشة ﴾

⑥ ﴿ عن عراك، عن عمرة، عن عائشة ﴾(۱)

**وقف** : بیا په دې طرق کښې بعض طرق مرفوع دی او بعض پکښې موقوف دی.
بیا د وقف په باره کښې امام بخاری رحمه الله فرمائی : ﴿ والصحيح عن عائشة من قولها ﴾(۲) یعنی د دې حدیث موقوف کیدل صحیح دی.
هم دغه شان امام ابن ابی حاتم رحمه الله په کتاب العلل کښې فرمائی : ﴿ عراك بن مالك عن عروة عن عائشة موقوف وهذا اشبه ﴾(۳)
یعنی د دې روایت موقوف کیدل اشبه او اقرب الی الصواب دې.
**ضعف راوی** : په دې روایت کښې خالد بن ابی الصلت راوی دې، د هغه په باره کښې عبد الحق رحمه الله فرمائی : ﴿ ضعيف ﴾(٤)

---

۱) د دې ټولو طرقو د تفصیل دپاره اوگورئ: تعلیقات نصب الرایة ج ۲ ص ۱۰۶
۲) علل الترمذی ج ۱ ص ۲٤، الرخصة فی استقبال القبلة بغائط او بول
۳) کتاب العلل لابن ابی حاتم ج ۱ ص ۲۲۷، علل اخبار رویت فی الطهارة
٤) اوگورئ : تعلیقات نصب الرایة ج ۲ ص ۱۰۶

ابن القیم رحمه الله هم هغه ته ضعیف وئیلې دې. (۱)

ابن حزم رحمه الله فرمائی : ﴿ مجهول لایدری من هو ﴾ (۲)

حافظ ذهبی رحمه الله فرمائی : ﴿ لایکاد یعرف ﴾ (۳)

**نکارت** : حافظ ذهبی رحمه الله دې حدیث ته منکر وئیلې دې. (٤)

**انقطاع** : د دې حدیث سند منقطع دې، پس د امام احمد رحمه الله مخکښې چه کله دا بیان کړې شو چه عراك بن مالك دا حدیث ﴿ سمعت عائشة ﴾ وئیلو سره اوروی نو هغوی په دې نکیر اوفرمائیلو او وې فرمائیل : ﴿ من این سمع عراك من عائشة؟ انما یروی عن عروة عنها ﴾ یعنی عراك د عائشې رضی الله عنها نه چرته واوریدو؟ هغه خو د عروة رحمه الله په واسطې د عائشې رضی الله عنها نه روایت کوی. (۵)

هم دغه شان د ابن القیم رحمه الله تحقیق هم دا دې چه د عراك او د عائشې رضی الله عنها ترمینځه سند دا انقطاع ده. (۶)

موسی بن هارون رحمه الله فرمائی : ﴿ لانعلم لعراك سماعا من عائشة ﴾ (۷)

**نسخ** : هر چه د نسخ د احتمال تعلق دې، پس ابن حزم رحمه الله فرمائی چه د دې حدیث د سیاق نه صفا معلومیږی چه دا حدیث د سیدنا ابو ایوب انصاری رضی الله عنه د حدیث نه مقدم دې، ځکه چه په دې حدیث کښې دا منقول دی چه کله د رسول الله صلی الله علیه وسلم ته ذکر کړې شو چه صحابه کرام استقبال قبله بالفرج مکروه ګنړی نو رسول الله صلی الله علیه وسلم پرې د تعجب اظهار اوفرمائیلو، که د ممانعت حکم مخکښې راغلې وې نو د اظهار تعجب هیڅ معنی نه وه، لهذا دا حدیث منسوخ خو کیدې شی ناسخ هر ګز نه شی کیدې. (۸)

بعض حضراتو د دې ټولو اعتراضاتو د جواب ورکولو کوشش کړې دې او د دې ثابتولو کوشش ئې کړې دې چه د دې حدیث نه احتجاج کیدلې شی. (۹)

خو حقیقت دا دې چه په دې حدیث کښې ځومره کلام شوې دې، که هغه ټول کلام مرتفع هم شی نو بیا هم د دهٔ مقام د سیدنا ابو ایوب انصاری رضی الله عنه د مرفوع، صحیح او صریح حدیث په مقابله کښې کم وی، لهذا په دې حدیث باندې به عمل کول صحیح نه وی.

---

۱) قال ابن القیم : وله علة اخری وهی ضعف خالد بن ابی الصلت. زاد المعاد ج ۲ ص ۳۵۱

۲) المحلی لابن حزم ج ۱ ص ۱۹۶

۳) میزان الاعتدال ج ۱ ص ۶۳۲، رقم ۲٤۳۲

٤) پورته حواله

۵) نصب الرایة ج ۲ ص ۱۰۶

۶) زاد المعاد ج ۲ ص ۳۵۱

۷) تعلیقات نصب الرایه ج ۲ ص ۱۰۶

۸) اوګورئ : المحلی لابن حزم ج ۱ ص ۱۹۷، ۱۹۸

۹) د تفصیل دپاره اوګورئ : تعلیقات الشیخ احمد شاکر علی المحلی لابن حزم ج ۱ ص ۱۹۷

تنبيه : د سيدنا معقل بن ابى معقل اسدى رضي الله عنه نه روايت دې!

﴿ نهى رسول الله ﷺ ان نستقبل القبلتين ببول او غائط ﴾(۱) يعنى رسول الله ﷺ د بول او غائط په موقع باندې د دوارو قبلو طرف ته د مخ كولو نه منع فرمائيلې ده.

د دې حديث نه محمد بن سيرين رحمه الله استدلال كوى چه د كعبې نه علاوه د بيت المقدس طرف استدبار او استقبال هم مكروه دې. (۲)

جمهور د دې يو جواب دا وركوى چه د دوارو استقبال او استدبار په يو وخت ناجائز نه دې، بلكه په طريقه د بداية دې، چه كله بيت المقدس قبله وه نو د هغه د استدبار او استقبال ممانعت وو او چه كله كعبه شريفه قبله شوه نو د هغې د استدبار او استقبال ممانعت شو، هم د دې نه راوى په ﴿ قبلتين ﴾ سره تعبير كړې دې.

دويم جواب دا وركوى چه دا روايت د اهل مدينه سره خاص دې، ځكه چه د اهل مدينه دپاره د بيت المقدس استقبال د كعبې استدبار لره او د هغې استدبار د كعبې استقبال لره مستلزم وو ، ځكه چه د مدينې منورې نه بيت المقدس په شمال كښې دې او كعبه ترې په جنوب كښې ده. كه د مدينې منورې اوسيدونكو ته د بيت المقدس طرف ته د مخ كولو او شا كولو اجازت وركړې شوې وې نو د كعبې استدبار او استقبال به ضرور لازميدو. (۳)

د دې نه علاوه د سيدنا ابو ايوب انصارى رضي الله عنه روايت د سيدنا معقل رضي الله عنه د روايت په مقابله كښې اصح دې، بل هغه صريح او معلوم السبب هم دې، په دې وجه به ترجيح د سيدنا ابو ايوب انصارى رضي الله عنه روايت ته وى. والله اعلم

هر چه د ابو عوانه اسفرائنى رحمه الله تعلق دې، چه وائى چه د استقبال او استدبار قبله دا حكم د اهل مدينه او د هغې په جهت كښې د اوسيدونكو سره خاص دې، د باقى خلقو چه د هغوى قبله مشرق يا مغرب طرف ته وى د هغوى دپاره استقبال او استدبار جائز دې، پس د هغوى د سيدنا ابو ايوب انصارى رضي الله عنه د حديث الباب د يو طريق نه دې چه په هغې كښې ارشاد دې :

﴿ اذا اتى احدكم الغائط فلا يستقبل القبلة، ولا يولها ظهره، شرقوا او غربوا ﴾(٤)

---

۱) الحديث، اخرجه ابوداؤد، فى كتاب الطهارة، باب كراهية استقبال القبلة عند قضاء الحاجة رقم ۱۰، وابن ماجة، فى كتاب الطهارة، باب النهى عن استقبال القبلة بالغائط والبول رقم ۳۱۹.

۲) اوګورئ : بذل المجهود ج ۱ ص ۱۹۹، كتاب الطهارة، باب كراهية استقبال القبلة عند قضاء الحاجة

۳) پورته حواله

٤) صحيح البخارى، كتاب الوضوء، باب لا تستقبل القبلة بغائط ولا بول الا عند البناء ... رقم ۱٤٤، وكتاب الصلاة، باب قبلة اهل المدينة واهل الشام والمشرق ..... رقم ۳۹٤، وصحيح مسلم، كتاب الطهارة، باب الاستطابة رقم ۶۰۹، وسنن النسائى، كتاب الطهارة، باب النهى عن استدبار القبلة عند الحاجة، رقم ۲۱، وسنن ابى داؤد، كتاب الطهارة، باب كراهية استقبال القبلة عند قضاء الحاجة رقم ۹، وجامع الترمذى ابواب الطهارة، باب فى النهى عن استقبال القبلة بغائط او بول، رقم ۸، وسنن ابن ماجة كتاب الطهارة وسننها، باب النهى عن استقبال القبلة بالغائط والبول رقم ۳۱۸.

خو جمهور د حديث بنيادي حكم د استقبال او استدبار قبله ممانعت عام ګڼړي او ﴿شرقوا او غربوا﴾ لره د اهل مدينه سره خاص كوي، ځكه چه د اهل مدينه قبله په جنوب كښ ده، د مشرق او مغرب طرف ته نه ده.

**قوله: قال رسول الله ﷺ اذا اتى احدكم الغائط، فلا يستقبل القبلة ولا يولها ظهره:** رسول الله ﷺ فرمائي : چه كله په تاسو كښ څوك د قضاء حاجت دپاره راشي نو هغه دې د قبلې طرف ته رخ نه كوي او نه دې د هغې طرف ته خپله شا راړوي.

﴿ولايستقبل﴾ كښ ﴿لا﴾ ناهيه ده او ﴿القبلة﴾ كښ الف لام عهدي دې، د دې منه مراد كعبه ده. (۱)

په ﴿لايولها﴾ كښ ﴿لايول﴾... ولى يولى تولية د نهي صيغه ده، چه د هغې معنى د شا اړولو ده.

په مسلم شريف كښ د ﴿ولايولها ظهره﴾ په ځائې ﴿ولاتستدبروها﴾ الفاظ دي. (۲)

په مسلم شريف كښ د دې نه روستو د ﴿ببول ولاغائط﴾ اضافه هم ده. (۳) د دې ﴿غائط﴾ نه به نجاست خارجه مراد كولې شي او د ﴿اذا اتى احدكم الغائط﴾ نه مراد به بيت الخلاء او د قضاء حاجت ځائې وي. (٤)

بيا د ﴿ببول او غائط﴾ د قيد نه د سبب نهي پته لګي چه د دې علت احترام قبله ده، ګويا د قبلې اكرام دا دې چه د هغې طرف ته په نجاست سره مواجهت او نه موندلې شي، د دې تائيد د سيدنا جابر رضي الله عنه د حديث نه هم كيږي چه د هغې الفاظ داسې دي : ﴿اذا اهرقنا الماء﴾ (۵)
بعض حضراتو د نهي علت كشف عورت وئيلې دې، كه دا علت اومنلې شي نو بيا به په يو حال كښ هم د قبلې طرف ته كشف عورت جائز نه وي، پس د ببيى سره د وطى په صورت كښ به هم قبلې ته مخ كول جائز نه وي. (۶)

د كشف عورت د علت كيدو يو قول د مالكيانو دې، كوم چه ابن شاش مالكي رحمه الله نقل كړې دې. (۷) كيدې شي چه د دې حضراتو دليل هغه روايت وي په كوم كښ چه ارشاد دې؛

---

۱) اوګورئ : فتح البارى ج ۱ ص ۲٤۶
۲) اوګورئ : صحيح مسلم، كتاب الطهارة، باب الاستطابة رقم ۶۰۹
۳) پورته حواله
٤) فتح البارى ج ۱ص ۲٤۶
۵) پوره حديث داسې دې : ﴿عن جابر بن عبد الله الأنصاري قال : كان رسول الله صلى الله عليه و سلم قد نهانا عن أن نستدبر القبلة أو نستقبلها بفروجنا إذا أهرقنا الماء قال ثم رأيته قبل موته بعام يبول مستقبل القبلة. مسند احمد ج ۳ ص ۳۶۰، رقم ۱٤۹۳۳
۶) فتح البارى ج ۱ص ۲٤۶
۷) پورته حواله

﴿ لا تستقبلوا القبلة بفروجكم، ولا تستدبروها ﴾(۱)
يعنى په خپلو شرمګانو سره نه د قبلې طرف ته مه مخ کوئ او مه ورته شا کوئ.
خو حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى چه دا حديث هم د قضاء حاجت په حال باندې محمول کول پکار دى، چه په دواړو روايتونو کښې تطبيق پيدا شى. (۲) والله اعلم

# ⑫ بَاب مَنْ تَبَرَّزَ عَلَى لَبِنَتَيْنِ

**په دوه ښختو باندې د قضاء حاجت کولو حکم:** ﴿ تبرز ﴾ د باب تفعل نه د ﴿ تغوط ﴾ يعنى قضاء حاجت کولو په معنى کښې دې. اصل کښې ﴿ تبرز ﴾ خروج الى البزار يعنى د وسيع فضاء طرف ته وتلو ته وئيلې شى، بيا مجازا د قضاء حاجت دپاره استعمال شو. (۳)

﴿ لبنتين ﴾ د ﴿ لبنة ﴾ تثنيه ده. ﴿ لبنة ﴾ د لام په فتحې او د باء په کسرې سره لوستلې شى. دا د لام په فتحې او د باء په سکون سره هم لوستل جائز دى، هم دغه شان ئې د لام په کسرې او د باء په سکون سره هم لوستل صحيح دى. (٤)
علامه عينى رحمه الله فرمائى چه کوم لفظ هم مفتوح الاول او مکسور الثانى وى په هغې کښې دا درې واړه لغات صحيح دى، هم دغه شان که د هغه دويم يا دريم حرف د حروف حلقى نه وى نو هغه د اول او ثانى په کسرې سره هم لوستلې شو لکه: ﴿ فَخِذ ﴾ لره ﴿ فَخْذ ﴾، ﴿ فِخِذ ﴾ او ﴿ فِخْذ ﴾ هم لوستلې شى. (۵) ﴿ لبنة ﴾ کچه ښختې ته وئيلې شى چه په اور کښې نه وى پخ کړې شوې، په اور کښې د پخولو نه پس ورته ﴿ آجر ﴾ وئيلې شى. (۶)
**د مخکښې باب سره مناسبت** په مخکښې باب کښې د استقبال او استدبار قبله مطلقا ممانعت ذکر وو. په دې باب کښې د هغې تخصيص ذکر دې، دغه شان په دواړو کښې مناسبت واضح دې. (۷)

**د ترجمة الباب مقصد:** شاه ولى الله رحمه الله فرمائى چه امام بخارى رحمه الله د ﴿ تبرز على لبنتين ﴾ جواز بيانول غواړى. (۸)

---

۱) اخرجه احمد فى مسنده من حديث ابى ايوب الانصارى رضى الله عنه ج ۵ ص ٤۱۹، رقم ۲۳۹۵۵، والطبرانى فى معجمه ج ٤ ص ۱٤۱، احاديث رافع بن اسحاق بن طلحة مولى الشفاء، رقم ۳۹۳۲
۲) فتح البارى ج ۱ ص ۲٤۶
۳) عمدة القارى ج ۲ ص ۲۷۹
٤) اوګورئ النهاية ج ۲ ص ۵۸۵، وتاج العروس ج ۳۶ ص ۸۷
۵) عمدة القارى ج ۲ ص ۲۷۹، وتاج العروس ج ۹ ص ٤٤۹، ٤۵۰، مادة : فخذ
۶) عمدة القارى ج ۲ ص ۲۷۹
۷) عمدة القارى ج ۲ ص ۲۷۹
۸) رسالة تراجم ابواب البخارى ص ۱۶

حضرت گنګوهي رحمه الله فرمائی چه د دې باب د لاندې چه کوم روایت راوړلې شوې دې دا په اصل کښې د باب سابق سره متعلق روایت دې، خو چونکه دا روایت یوې مستقل مسئلې لره هم متضمن دې هغه دا چه د قضاء حاجت په وخت په څه اوچت ځائې باندې کیناستل پکار دی، چه د نجاست د لګیدلو نه بچ شی، په دې مسئله باندې د تنبیه کولو دپاره ئې د ﴿باب من تبرز علی لبنتين﴾ باب قائم کړې دې. ګویا امام بخاری رحمه الله دا بیانول غواړی چه ذکر شوې روایت د مخکښې باب په مضمون او مقصود باندې د مشتمل کیدو نه علاوه د قضاء حاجت دپاره د کیناستلو په ادب باندې هم مشتمل دې، دا یوه لویه فائده ده او دغه شان امام بخاری رحمه الله اکثر کوی. (۱)

حاصل دا دې چه امام بخاری رحمه الله په اصل کښې د مخکښې باب تخصیص کول غواړی، هم دغه شان د هغې سره سره په یوه فائده جدیده باندې متنبه کول غواړی.

خو حضرت ګنګوهي رحمه الله دا د باب فی باب د قبیل نه منی او دا فرمائی چه لا د مخکښې باب مضمون نه دې ختم شوې، په اول باب کښې چه کوم تعمیم مقصود وو د هغې تخصیص د امام بخاری رحمه الله مقصود دې، خو چونکه دا حدیث یوې نوې فائدې لره هم متضمن دې، په دې وجه ئې په دې باندې نوې عنوان قائم کړو. والله اعلم

په مخکښې باب کښې دا خبره هم ذکر شوې ده چه ابن بطال رحمه الله فرمائی چه د عبدالله بن عمر رضی الله عنهما حدیث، هم دغه شان د دې قسم نور آثار مخې ته ږدلو سره امام بخاری رحمه الله د ﴿باب لا تستقبل القبلة بغائط او بول الا عند البناء جدار او نحوه﴾ استثناء کړې ده. (۲)

خو په دې باندې اشکال دا وو چه بیا د ځانله ځانله ترجمه قائمولو څه فائده نشته، ځکه چه دا تراجم خو دعاوی وی. د دې د لاندې چه کوم روایتونه راوړلې شی هغه د هغې دلیلونه وی، نو مطلب دا راوتلو چه دا ځانله ځانله مسائل دی، د دې ځانله ځانله دلائل ذکر کوی، حال دا چه د دې دلیل تعلق د مخکښې باب سره پیدا شو.

د دې جواب شاته ذکر شو چه ﴿باب من تبرز علی لبنتين﴾ مستقل ترجمه نه ده، بلکه د تنبیه علی الفائدة په طور ترجمه قائم کړې شوې ده او د سیدنا ابن عمر رضی الله عنهما دا روایت د ﴿لا تستقبل القبلة ...﴾ سره متعلق دې. والله اعلم

...

۱) لامع الدراری مع الکنز المتواری ج ۳ ص ۲۴، ۲۵

۲) شرح صحیح البخاری لابن بطال ج ۱ ص ۲۳۸

١٤٥: ﴿حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوسُفَ قَالَ أَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ يَحْيَى بْنِ سَعِيدٍ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ يَحْيَى بْنِ حَبَّانَ عَنْ عَمِّهِ وَاسِعِ بْنِ حَبَّانَ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ(١) أَنَّهُ كَانَ يَقُولُ إِنَّ نَاسًا يَقُولُونَ إِذَا قَعَدْتَ عَلَى حَاجَتِكَ فَلَا تَسْتَقْبِلِ الْقِبْلَةَ وَلَا بَيْتَ الْمَقْدِسِ فَقَالَ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ عُمَرَ لَقَدِ ارْتَقَيْتُ يَوْمًا عَلَى ظَهْرِ بَيْتٍ لَنَا فَرَأَيْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى لَبِنَتَيْنِ مُسْتَقْبِلًا بَيْتَ الْمَقْدِسِ لِحَاجَتِهِ وَقَالَ لَعَلَّكَ مِنَ الَّذِينَ يُصَلُّونَ عَلَى أَوْرَاكِهِمْ فَقُلْتُ لَا أَدْرِي وَاللّٰهِ قَالَ مَالِكٌ يَعْنِي الَّذِي يُصَلِّي وَلَا يَرْتَفِعُ عَنِ الْأَرْضِ يَسْجُدُ وَهُوَ لَاصِقٌ بِالْأَرْضِ﴾ [١٤٧، ١٤٨، ٢٩٣٥]

## رجال الحديث

① **عبد الله بن يوسف** : دا مشهور امام او محدث ابو محمد عبدالله بن يوسف تنيسى كلاعى دمشقى رحمه الله دې. د هغه حالات په كتاب بدء الوحى كښې د دويم حديث د لاندې مختصرا او په كتاب العلم كښې د باب ليبلغ العلم الشاهد الغائب د لاندې تفصيلا تير شوې دى. (٢)

② **مالك** : دا امام دار الهجرة مالك بن انس اصبحى مدنى رحمه الله دې، د هغوى حالات د كتاب بدء الوحى په دويم حديث كښې او په كتاب الايمان، باب من الدين الفرار من الفتن د لاندې تير شوې دى. (٣)

③ **يحيى بن سعيد** : دا مشهور تابعى محدث امام يحيى بن سعيد انصارى مدنى رحمه الله دې. د هغه حالات هم د بدء الوحى د اولنى حديث د لاندې مختصرا او په كتاب الايمان كښې د باب صوم رمضان احتسابا من الايمان د لاندې لږ په تفصيل سره ذكر شوې دى. (٤)

④ **محمد بن يحيى بن حبان** : دا محمد بن يحيى بن حبان (بفتح الحاء والباء الموحدة المشددة وبعدها الف ونون) بن منقذ انصارى نجارى مدنى رحمه الله دې، ابو عبدالله ئې كنيت دې. (٥) دا د سيدنا حبان بن منقذ رضي الله عنه نمسى دې، د چا په باره كښې چه راځى چه هغه به په بيوع كښې

---

١) قوله عن عبد الله بن عمر : الحديث اخرجه مسلم فى صحيحه فى كتاب الطهارة، باب الاستطابة رقم ٦١٢، والنسائى فى سننه، فى كتاب الطهارة، باب الرخصة فى البيوت رقم ٢٣، وابوداؤد فى سننه فى كتاب الطهارة باب الرخصة من ذلک رقم ١٢، والترمذى فى جامعه فى ابواب الطهارة باب ما جاء من الرخصة فى ذلک رقم ١١، وابن ماجة فى سننه، فى كتاب الطهارة باب الرخصة فى ذلک فى الكنيف واباحته دون الصحارى، رقم ٣٢٢، ٣٢٣.

٢) اوګورئ : كشف البارى ج ١ ص ٢٨٩، و ج ٤ ص ١١٣

٣) اوګورئ : كشف البارى ج ١ ص ٢٩٠، ج ٢ ص ٨٠

٤) اوګورئ : كشف البارى ج ١ ص ٢٣٨، و ج ٢ ص ٣٢١

٥) اوګورئ : تهذيب الكمال ج ٢٦ ص ٦٠٥ و ٦٠٦

نقصان كولو، رسول الله ﷺ هغه ته تلقين اوكړو چه كله هم يو څيز اخلې نو ﴿لاخلابة﴾(۱) وايه. (۲) په ۴۷ هجرى كښ وفات شوې دې. (۳)

دې د سيدنا ابن عمر، رافع بن خديج، انس بن مالك، عبدالله بن محيريز او دخپل تره واسع بن حبان رضي الله عنهم نه علاوه دا ډيرو حضراتو نه روايت حديث كوى.

د هغه نه په روايت كونكو كښ امام ربيعة الرائى، ليث بن سعد، محمد بن عجلان، عمرو بن يحيى المازنى، ابن اسحاق او امام مالك رحمهم الله وغيره دى. (٤)

امام ابن معين. امام ابو حاتم او امام نسائى رحمهم الله هغه ته ﴿ثقة﴾ وئيلې دې. (۵)

امام ابن حبان رحمه الله هغه په كتاب الثقات كښ ذكر كړې دې. (۶)

امام عجلى رحمه الله فرمائى: ﴿مدنى ثقة﴾(۷)

امام واقدى رحمه الله فرمائى: ﴿كانت له حلقة فى مسجد المدينة، وكان يفتى، وكان ثقة كثير الحديث﴾(۸) يعنى په مسجد نبوى ﷺ كښ به د هغه باقاعده حلقه وه، هغه به فتوې وركولې او ثقه وو، د هغه احاديث ډير زيات دى.

حافظ ذهبى رحمه الله فرمائى: ﴿الامام الفقيه الحجة...﴾ هم دغه شان هغه فرمائى: ﴿وهو امام مجمع على ثقته﴾(۹) حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى ﴿ثقة فقيه﴾(۱۰)

په ۱۲۱ هجرى كښ د ۷۴ كالو په عمر كښ وفات شوې دې. (۱۱) رحمه الله رحمة واسعة

⑤ **واسع بن حبان**: دا واسع بن حبان بن منقذ انصارى نجارى مدنى رحمه الله دې. امام بغوى رحمه الله هغه په صحابه كرامو رضي الله عنهم كښ شماركولو سره ليكلې دى:

---

۱) انظر صحيح البخارى ج ۱ ص ۲۸٤، كتاب البيوع، باب ما يكره، من الخداع فى البيع رقم ۲۱۱۷، وصحيح مسلم، كتاب البيوع، باب من يخدع فى البيع رقم ۳۸۶۰

۲) سير اعلام النبلاء ج ۵ ص ۱۸۶

۳) پورته حواله

٤) د شيوخ او تلامذه د تفصيل دپاره اوګورئ، تهذيب الكمال ج ۲۶ ص ۶۰۶، ۶۰۷، وسير اعلام النبلاء ج ۵ ص ۱۸۶، ۱۸۷

۵) الجرح والتعديل ج ۸ ص ۱٤۲، رقم (۵۳۹/۱۳۸۵۶)، وتهذيب الاسماء واللغات ج ۱ ص ۹٤، ۹۵، تهذيب الكمال ج ۲۶ ص ۶۰۷.

۶) الثقات لابن حبان ج ۵ ص ۳۷۶، ۳۷۷

۷) معرفة الثقات للعجلى ج ۲ ص ۲۵۶، رقم ۱۶۵۹، وتعليقات تهذيب الكمال ج ۲۶ ص ۶۰۷

۸) تهذيب الكمال ج ۲۶ ص ۶۰۷

۹) سير اعلام النبلاء ج ۵ ص ۱۸۶، ۱۸۷

۱۰) تقريب التهذيب ص ۵۱۲، رقم ۶۳۸۱

۱۱) هذيب الكمال ج ۲۶ ص ۶۰۷.

﴿فى صحبته مقال﴾(۱) يعنى د هغه په صحابى كيدو كښ كلام دې.

او عدوى رحمه الله فرمائى : ﴿ شهد بيعت الرضوان والمشاهد بعدها، وقتل يوم الحرة ﴾(۲)
يعنى د بيعت الرضوان (صلح حديبيه) په موقع باندې حاضر وو.
ابو موسى مدائنى رحمه الله هم هغه په صحابه كرامو كښ شمار كړې دې. (۳)

خو حافظ ابن حجر رحمه الله په تقريب التهذيب كښ اول جزما ﴿ صحابى ابن صحابى ﴾ فرمائيلې دى،

بيا فرمائى ﴿ بل ثقة ﴾(٤)

او خپله په الاصابة كښ د عدوى ترديد كولو سره ليكى : ﴿ قلت : وهذا خبر الراوى فيها اظن، لانه مشهور فى التابعين، وحديثه فى صحيح مسلم وقد فرق بينهما ابن فتحون فى ذيل الاستيعاب ﴾(۵)
يعنى عدوى چه د كوم سړى په باره كښ فرمائى هغه زما د خيال مطابق د دې راوى نه علاوه بل سړې دې، ځكه چه د هغه سړى په تابعينو كښ شمار كيدل مشهور دى، د هغه احاديث په صحيح مسلم كښ دى، ابن فتحون په﴿ذيل الاستيعاب﴾كښ د دواړو ترمينځه تفريق كړې دې.

هم دغه شان حافظ ابن حجر رحمه الله د واسع بن حبان رحمه الله تذكره په خپل كتاب الاصابة كښ په القسم الرابع كښ هم كړې ده، په دې كښ هغه په امام بغوى رحمه الله باندې رد كړې دې، هغوى چه كوم واسع بن حبان ته صحابى وئيلې دې، د هغه وهم ئې هلته بيان كړې دې. (۶)

علائى رحمه الله فرمائى : ﴿ ذكره الصغانى فيمن فى صحبته نظر، ولا وجه لذلك، فانه تابعى قطعا، قاله ابوزرعة والجماعة ﴾(۷)
يعنى هغه لره صغانى په هغه خلقو كښ شمار كړې دې چه د هغه په صحابى كيدو كښ كلام دې. او حال دا دې چه د دې هيڅ بنياد نشته، ځكه چه هغه قطعى طور سره تابعى دې، ابوزرعه او هم دغه شان يو جماعت دغه شان وئيلې دى.
دې د سيدنا جابر، سيدنا رافع بن خديج، سعد بن المنذر، عبدالله بن زيد بن عاصم مازنى، عبدالله بن عمر، قيس بن ابى صعصعه انصارى، وهب بن حذيفه غفارى او ابو سعيد خدرى رضى الله عنهم نه روايت كوى.

---

۱) اوګورئ : تهذيب التهذيب ج ۱۱ ص ۱۰۲
۲) الاصابة ج ۳ ص ۶۲۷، القسم الاول
۳) اكمال تهذيب الكمال لمغلطائى ج ۱۲ ص ۱۹۸، رقم ۵۰۰۰
٤) تقريب التهذيب ص ۵۷۹، رقم ۷۳۸۰
۵) الاصابة ج ۳ ص ۶۲۷، القسم الاول
۶) الاصابة ج ۳ ص ۶٤۶، القسم الرابع
۷) جامع التحصيل فى احكام المراسيل ص ۲۹۵، رقم ۸۵٤

د هغه نه د هغه خوئې حبان بن واسع بن حبان او ورارهٔ محمد بن یحیی بن حبان ﷺ روایت کوی (۱)

امام ابو زرعه رحمه الله فرمائی : ﴿ مدنی ثقة ﴾(۲)

امام عجلی رحمه الله فرمائی : ﴿ مدنی، تابعی، ثقة ﴾(۳)

حافظ ابن حبان رحمه الله هغه په کتاب الثقات کښې ذکر کړې دې. (٤)

حافظ ذهبی رحمه الله هم هغه ثقه شمار کړې دې. (۵)

د هغه احادیث د اصول ستهٔ ټولو حضراتو اخستلې دی. (۶) رحمه الله رحمة واسعة

⑥ **عبدالله بن عمر** : د سیدنا عبدالله بن عمر رضی الله عنهما حالات په کتاب الایمان کښې د باب الایمان وقول النبی ﷺ بنی الاسلام علی خمس د لاندې تیر شوې دی. (۷)

**قوله: عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ أَنَّهُ كَانَ يَقُولُ** : د سیدنا عبدالله بن عمر رضی الله عنهما نه روایت دې چه هغه فرمائی:

د ﴿ یقول ﴾ ضمیر د عبدالله بن عمر رضی الله عنهما طرف ته راجع دې نه د واسع بن حبان رحمه الله طرف ته، (۸) علامه کرمانی رحمه الله دا د واسع بن حبان رحمه الله طرف ته راجع کړې دې. (۹)

په صحیح مسلم کښې دی : ﴿ عَنْ عَمِّهِ وَاسِعِ بْنِ حَبَّانَ قَالَ كُنْتُ أُصَلِّي فِي الْمَسْجِدِ وَعَبْدُ اللّٰهِ بْنُ عُمَرَ مُسْنِدٌ ظَهْرَهُ إِلَى الْقِبْلَةِ فَلَمَّا قَضَيْتُ صَلَاتِي انْصَرَفْتُ إِلَيْهِ مِنْ شِقِّي فَقَالَ عَبْدُ اللّٰهِ يَقُولُ نَاسٌ ﴾(۱۰)

یعنې واسع بن حبان رحمه الله فرمائی چه ما په مسجد کښې مونځ کولو، او سیدنا عبدالله بن عمر رضی الله عنهما د قبلې طرف ته شا کولو سره ناست وو، چه کله ما مونځ پوره کړو نو زه د خپل طرف نه پاسیدم او د هغوی خواته ورغلم، سیدنا عبدالله بن عمر رضی الله عنهما او فرمائیل چه څه خلق وائی..

د دې نه صراحة معلومه شوه چه د بخاری په روایت کښې د ﴿ انه کان یقول ﴾ ضمیر سیدنا عبدالله بن عمر رضی الله عنهما طرف ته راجع دې، د واسع طرف ته نه دې، د دې نه روستو چه په ﴿ فقال

---

۱) د شیوخ او تلامیذ دپاره اوګورئ : تهذیب الکمال ج ۳۰ ص ۳۹۷
۲) تهذیب الکمال ج ۳۰ ص ۳۹۷
۳) معرفة الثقات للعجلی ج ۲ ص ۳۳۸، رقم ۱۹۲۵
٤) الثقات لابن حبان ج ۵ ص ٤۹۸
۵) الکاشف ج ۲ ص ۳٤۶، رقم ۶۰۲۶
۶) اوګورئ : تهذیب الکمال ج ۳۰ ص ۳۹۷
۷) کشف الباری ج ۱ ص ۶۳۷
۸) فتح الباری ج ۱ ص ۲٤۷
۹) شرح الکرمانی ج ۲ ص ۱۹۰
۱۰) صحیح مسلم، کتاب الطهارة، باب الاستطابة رقم ۶۱۱

عبدالله بن عمر لقد ارتقيت ﴾ كښ کومه فاء ده هغه د جواب دپاره نه ده بلکه سببيه ده، ګويا عبدالله بن عمر رضي الله عنهما د هغه حضراتو قول د انکار په طور نقل کړو، بيا ئې د انکار د سبب دپاره د ﴿ فقال عبدالله بن عمر: لقد ارتقيت ... ﴾ ذکر کړو.

**قوله:** إِنَّ نَاسًا يَقُولُونَ إِذَا قَعَدْتَ عَلَى حَاجَتِكَ فَلَا تَسْتَقْبِلِ الْقِبْلَةَ وَلَا بَيْتَ الْمَقْدِسِ: څه خلق وائی چه کله تاسو د خپل حاجت دپاره کينئ نو نۀ د قبلې طرف ته مخ کوئ او نه د بيت المقدس طرف ته.

سيدنا عبد الله بن عمر رضي الله عنهما په دې سره هغه خلق مراد کړي دی کوم چه د عموم نهی قائل دی، لکه سيدنا ابو ايوب انصاری، سيدنا ابوهريره او سيدنا معقل اسدی رضي الله عنهم وغيره. (۱)

دې حضراتو به وئيل چه د قضاء حاجت په وخت کښ د کعبې استدبار او استقبال مطلقا ناجائز دې، سيدنا ابن عمر رضي الله عنهما د هغوی په مطلق دعوی باندې نکير اوکړو او دليل ئې دا پيش کړو چه ما خپله رسول الله صلى الله عليه وسلم په کور کښ ناست د کعبې طرف ته شا کولو سره په قضاء حاجت کولو باندې ليدلې دې. معلومه شوه چه ممانعت مطلق او عام نه دې بلکه په دې کښ خصوصيت او قيد دې، پس د ابن عمر رضي الله عنهما شمير د تفصيل مذهب په قائلينو کښ کيږی، لکه چه په مخکښ باب کښ تفصيل تير شو.

**قوله:** لَقَدْ ارْتَقَيْتُ يَوْمًا عَلَى ظَهْرِ بَيْتٍ لَنَا: زه يوه ورځ د خپل کور په چهت باندې اوختلم

د دې نه معلومه شوه چه ابن عمر رضي الله عنهما د خپل کور چهت ته ختلې وو، او وړاندې په حديث (باب التبرز فی البيوت) کښ هم دا حديث راروان دې، په هغې کښ دی ﴿ ارتقيت فوق ظهر بيت حفصة ﴾ (۲) يعنی زه د سيده حفصه رضي الله عنها د کور په چهت باندې اوختلم، د دې نه معلومه شوه چه کور د سيده حفصه رضي الله عنها وو، نه د سيدنا ابن عمر رضي الله عنهما.

حافظ ابن حجر او د هغه په اتباع کښ شيخ الاسلام زکريا انصاری او قسطلانی رحمهم الله فرمائی چه کيدې شي چه د مختلف زمانو په اعتبار سره دا نسبت کړې شوې وی، اول دا کور د سيده حفصه رضي الله عنها په قبضه کښ وو، روستو د سيدنا ابن عمر رضي الله عنهما په قبضه کښ راغلې وو، ځکه چه هغه د سيده حفصه رضي الله عنها حقيقی رور وو، د څه حاجب د نه کيدو د وجې نه به د سيده حفصه رضي الله عنها ميراث د هغه طرف ته منتقل شوې وو، ګويا د ماضی په نسبت سره د سيده حفصه رضي الله عنها طرف ته نسبت اوکړې شو او د مآل په اعتبار سره ئې خپل ځان طرف ته نسبت اوکړو. (۳)

---

۱) فتح البارى ج ۱ ص ۲۴۷

۲) صحيح البخارى ج ۱ ص ۲۷، رقم ۱۴۸

۳) اوګورئ: فتح البارى ج ۱ ص ۲۴۷، وتحفة البارى ج ۱ص ۱۵۸، کتاب الوضوء، باب التبرز فی البيوت، وارشاد السارى ج ۱ ص ۲۳۸، کتاب الوضوء، باب التبرز فی البيوت.

خو په دې کښې اشکال دا دې چه دې تولو شارحينو په ابواب الخمس کښې تلو سره دا تصريح کړې ده چه رسول اللهﷺ چه ازواج مطهرات ته کوم کورونه ورکړې وو هغه ئې د سکنې په طور ورکړې وو، هم دا وجه ده چه د هغوى د وفات نه پس دا کورونه د هغوى د وارثانو طرف ته منتقل نه شو. (۱)

لهذا صحيح جواب دا دې چه سيدنا ابن عمرﷺ چه د بيت اضافت سيده حفصهﷺ ته کړې دې هغه په حقيقت باندې حمل دې او چه خپل طرف ته ئې کړې دې نو هغه په مجاز باندې محمول دې، ګويا خپل طرف ته ئې نسبت په دې وجه اوکړو چه د خپلو خپلوانو ځيز مجازا خپل طرف ته منسوب کولې شي. والله سبحانه وتعالى اعلم

**قوله: فَرَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى لَبِنَتَيْنِ مُسْتَقْبِلًا بَيْتَ الْمَقْدِسِ لِحَاجَتِهِ:** ما رسول اللهﷺ اوليدو چه هغه د خپل حاجت دپاره په دوه ښختو باندې د بيت المقدس طرف ته مخ کړې ناست دې.

بعض حضرات د دې حديث نه د استقبال او استدبار قبله په مطلقا جواز باندې استدلال کړې دې، پس د هغوى وينا ده چه په دې حديث کښې دا احتمال دې چه هغه رسول اللهﷺ په ښکاره فضاء کښې ليدلې وى، او هر چه په ﴿لبنتين﴾ باندې د ليدلو تعلق دې، پس دا د ﴿بناء﴾ په موجود کيدو باندې دال نه دې، ځکه چه عين ممکنه ده چه رسول اللهﷺ په ﴿لبنتين﴾ باندې د زمکې نه د مرتفع کيدو دپاره ناست وى. (۲)

خو دا استدلال د څو وجو نه کمزورې دې، اول په دې وجه د شرح معانى الاثار په يو روايت کښې ﴿يقضى حاجته محجوبا عليه بلبن﴾(۳) (يعنى ما رسول اللهﷺ اوليدو چه قضاء حاجت ئې فرمائيلو په داسې طريقه چه په ښختو سره ئې پرده کړې وه،) الفاظ راغلې دى.

هم دغه شان حکيم ترمذىﷺ په صحيح سند سره هم دا حديث نقل کړې دې، چه د هغې الفاظ داسې دى: ﴿فرايته فى كنيف﴾(٤) ما رسول اللهﷺ په بيت الخلاء کښې اوليدو.

۱) اوګورئ: فتح البارى ج ۶ ص ۲۱۱، كتاب فرض الخمس، باب ما جاء فى بيوت ازواج النبىﷺ وما نسب من البيوت اليهن، وتحفة البارى ج ۳ ص ۵۳۷، وارشاد السارى ج ۷ ص ۱۷، طبعة دار الكتب العلمية

۲) اوګورئ: فتح البارى ج ۱ ص ۲٤۷

۳) شرح معانى الاثار ج ۲ ص ۳۷۰، كتاب الكراهة، باب استقبال القبلة بالفروج للغائط والبول

تنبيه حافظ رحمه الله دا حديث د ابن خزيمه په حوالې سره نقل کړې دې، ليکن احقر ته د تتبع او تلاش باوجود په صحيح ابن خزيمه کښې دا حديث ملاؤ نه شو اوګورئ: فتح البارى: ۱/ ۲٤۷.

٤) نقله الحافظ عنه فى الفتح ج ۱ ص ۲٤۷، ولكنى لم اجده فى نوادر الاصول له، الا ان البيهقى اخرج عن ابن عمر: دخلت بيت حفصة، فحانت منى التفاتة، فرايت كنيف رسول اللهﷺ مستقبلا القبلة ..... انظر السنن الكبرى ج ۱ ص ۱۵۱، من الطبعة الجديدة، و ج ۱ ص ۹۳، من الطبعة القديمة، كتاب الطهارة، باب الرخصة فى ذلك فى الابنية، رقم ٤٤۲.

د ابن خزيمه په روايت کښې دی ﴿ فاشرفت على النبي ﷺ وهو على خلائه ﴾(۱)
د دې رواياتو نه معلومه شوه چه رسول الله ﷺ بالکل په ښکاره فضاء کښې نه وو ناست بلکه په ابادئ کښې د ننه ناست وو.
دويم : سيدنا عبدالله بن عمر رضي الله عنهما خپله په ښکاره فضاء د استقبال قبله د ممانعت قائل دې، مګر دا چه څۀ ساتر وی، لکه چه د ابوداؤد وغيره په روايت کښې تصريح ده. (۲) لهذا که رسول الله ﷺ په ښکاره فضاء کښې وې نو عبدالله بن عمر رضي الله عنهما به هم د مطلقا جواز قائل وې، د استقبال د ممانعت قول به ئې نه اختيارولې. (۳)
ابن القصار رحمه الله فرمائي چه دلته دا سوال پيدا کيدې شي چه سيدنا عبدالله بن عمر رضي الله عنهما قصدا رسول الله ﷺ ته څنګه اوکتل؟ د دې د جواز څه صورت دې؟
خو د دې جواب دا دې چه ابن عمر رضي الله عنهما قصدا رسول الله ﷺ ته نه دی کتلی، بلکه ناڅاپې ئې پرې نظر پريوتلې دې، لکه چه د بيهقی په روايت کښې دی : ﴿ فحانت منى التفاتة ﴾ (٤) يعنی زما توجه اتفاقی هغه طرف ته لاړه. خو چه کله ئې بغير د قصد نه په دې حال کښې اوليدو نو هغوی اوغوښتل چه دا کتل هم د شرعی فائدې نه خالی نه وی، دغه شان هغه دا حکم شرعی مستنبط کولو سره بيان کړو او دغه شان کتل په دې وجه ممکن شو چه هغه د رسول الله ﷺ شا ته کتل، د دې نه د هغه د اتباع سنت سخت شوق معلوميږی. (۵)
**د ائمه ثلاثه استدلال او د احنافو جواب** : د سيدنا ابن عمر رضي الله عنهما د دې حديث نه ائمه ثلاثه په دې خبره باندې استدلال کړې دې چه که يو سړې په آبادئ کښې قضاء حاجت کوی نو د هغه دپاره د استقبال او استدبار ګنجائش شته، که په ښکاره فضاء کښې وی نو بيا ورله ګنجائش نشته.
په مخکښې باب کښې په دې حديث باندې کافی کلام تير شوې دې، خو دلته د خلاصې په طور د احنافو د ترجيح وجوه ذکر کولې شی.
① د سيدنا ابن عمر رضي الله عنهما دا روايت مبيح دې، او د سيدنا ابو ايوب انصاری رضي الله عنه روايت محرم دې، د مبيح او محرم د تعارض په صورت کښې محرم ته ترجيح حاصله وی.

---

۱) صحيح ابن خزيمة ج ۱ ص ٤۶، کتاب الوضوء، باب ذکر الخبر المفسر للخبرين، انما نهى عن استقبال القبلة رقم ۵۹
۲) عَنْ مَرْوَانَ الأَصْفَرِ ، قَالَ : رَأَيْتُ ابْنَ عُمَرَ أَنَاخَ رَاحِلَتَهُ مُسْتَقْبِلَ الْقِبْلَةِ ، ثُمَّ جَلَسَ يَبُولُ إِلَيْهَا ، فَقُلْتُ : يَا أَبَا عَبْدِ الرَّحْمَنِ ، أَلَيْسَ قَدْ نُهِيَ عَنْ هَذَا ؟ قَالَ : بَلَى إِنَّمَا نُهِيَ عَنْ ذَلِكَ فِي الْفَضَاءِ ، فَإِذَا كَانَ بَيْنَكَ وَبَيْنَ الْقِبْلَةِ شَيْءٌ يَسْتُرُكَ فَلاَ بَأْسَ. السنن لابی داؤد، کتاب الطهارة، باب كراهية استقبال القبلة عند قضاء الحاجة، رقم ۱۱، وانظر المستدرک للحاكم ج ۱ ص ۲۵۶، کتاب الطهارة، رقم ۵۵۱
۳) فتح الباری ج ۱ ص ۲٤۷
٤) السنن الکبری ج ۱ ص ۱۵۱، من الطبعة الجديدة، و ج ۱ ص ۹۳، من الطبعة القديمة، کتاب الطهارة، باب الرخصة فی ذلک فی الابنية، رقم ٤٤۲
۵) اوګورئ : شرح ابن بطال ج ۱ ص ۲۳۸، فتح الباری ج ۱ ص ۲٤۷، ۲٤۸

④ د ابن عمر رضي الله عنهما دا روايت فعلي دې، د ابو ايوب انصاري رضي الله عنه روايت قولي دې، د قولي او فعلي روايتونو په تعارض كښې قولي ته ترجيح حاصله وي.
③ د ابن عمر رضي الله عنهما په نقل كړې روايت كښې د رسول الله ﷺ د يو فعل خاص ذكر دې، او قول عام دې، په فعل خاص كښې احتمالات كيدې شي، لهذا د هغې په مقابله كښې قول عام ته چه حيثيت ئې د قاعده كليه په شان دې، هغې ته به ترجيح وركولې شي.
④ حجت افعال تشريعيه دي، نه عمومي افعال، افعال تشريعيه د ستر او خفاء سره نه شي ادا كيدلې، د ابن عمر رضي الله عنهما د بيان مطابق د رسول الله ﷺ دا فعل د ستر سره وو، معلومه شوه چه دا تشريعي فعل نه دې.
⑤ په دغه شان روايت كولو كښې سيدنا ابن عمر رضي الله عنهما متفرد دې، او د هغوى په مقابله كښې تقريبا د ټولو صحابه كرامو عمل هم هغه وو كوم چه سيدنا ابو ايوب انصاري رضي الله عنه بيان فرمائي، پس دهغوى په يو روايت كښې دې!

﴿ فوجدنا مراحيض قد بنيت قبل الكعبة، فكنا ننحرف عنها ونستغفر الله ﴾(۱)
يعني مونږ داسې بيوت الخلاء بيا موندلې كومې چه قبله رخ جوړې شوې وې، پس مونږ به په هغې كښې كاره كيناستلو او په دې به مو هم استغفار كولو.
⑥ د رسول الله ﷺ په فعل كښې دا هم احتمال دې چه د كشف په طور ئې بيت الله شريف مخې ته وي، په دې وجه هغه عين د جهت كعبه نه منحرف كيدو سره ناست وي، د كوم چه سيدنا ابن عمر رضي الله عنهما ادراك اونكړې شو.
⑦ كيدې شي چه د استقبال او استدبار قبله جواز د رسول الله ﷺ خصوصيت وي، چه د هغې دليل دا دې چه په ﴿ اذا اتيتم الغائط فلا تستقبلوا القبلة ولا تستدبروها ﴾ كښې خطاب امت ته دې، لهذا امت له په دې باندې عمل پكار دې، پاتې شو د رسول الله ﷺ فعل نو هغه د دې نه مستثنى دې.
⑧ حديث د ابو ايوب انصاري رضي الله عنه معلوم السبب دې، د ممانعت وجه احترام قبله ده، ﴿ فلا تستقبلوا القبلة ولا تستدبروها ﴾ په دې باندې دال دې، او د ابن عمر رضي الله عنهما حديث غير معلوم السبب دې، نو اعتبار به د معلوم السبب وي نه د غير معلوم السبب.
⑨ د رسول الله ﷺ فضلات طاهر دي، په داسې صورت كښې به احترام كعبه نه متاثر كيږي او اصل مناط هم دا احترام قبله ده.
⑩ د سيدنا ابن عمر رضي الله عنهما نظر پرې ناڅاپه پريوتلې وو او د لږ وخت دپاره وو، ځكه چه په دې صورت كښې ځوك په غور سره نه شي كتلې، نو په دې كتلو كښې غلطي ممكن ده، بله دا چه

۱) سنن ابى داؤد، كتاب الطهارة، باب كراهية استقبال القبلة عند قضاء الحاجة، رقم ۹، والاحسان بترتيب صحيح ابن حبان، بتحقيق الارنؤوط ج ٤ ص۲٦۳، كتاب الطهارة، باب الاستطابة رقم ۱٤۱٦، والسنن الكبرى للبيهقي ج ۱ ص ۹۱، كتاب الطهارة، باب النهى عن استقبال القبلة واستدبارها لغائط او بول، رقم ٤۳۳

په داسې حالت کښې یقینا چه کوم کس ته کتلې کیږی هغه په خپل وخت باندې برقرار نه شی پاتې کیدې، په دې وجه وئیلې کیدې شی چه رسول الله ﷺ به هم خپل هیئت بدل کړې وی.
چه د هغې نه ابن عمر رضی الله عنهما مخصوص جهت فهم کړلو.(۱) والله اعلم

**قوله:** وَقَالَ لَعَلَّكَ مِنَ الَّذِينَ يُصَلُّونَ عَلَى أَوْرَاكِهِمْ؟: کیدې شی چه ته د هغه خلقو نه ئې چه په خپلو کوناتو سره مونځ کوی.

د ﴿قال﴾ ضمیر د ابن عمر رضی الله عنهما طرف ته راجع دې او د ﴿لعلك﴾ خطاب د واسع بن حبان سره دې. (۲).

﴿اوراك﴾ د ﴿ورك﴾ جمع ده کوناټی ته وئیلې شی. (۳)
علامه کرمانی رحمه الله فرمائی چه د ابن عمر رضی الله عنهما مقصد دا دې چه کوم سړې په خپل اوراك باندې مونځ کوی یعنی په سجده کښې خپل کوناټی د زمکې نه نۀ اوچتوی، لکه چه هغه د سنت نه ناخبره دې هم دغه شان هغه سړې هم د سنت نه نۀ دې خبر کوم چه مطلقا د استدبار او استقبال نه منع کوی هغه هم د سنت نه ناخبره دې، حاصل دا شو چه آیا ته د هغه خلقو نه ئې کوم چه د سنت صلاۃ نه د ناخبرئ سره سره د سنت استنجاء نه هم ناخبره دی؟
خو حافظ ابن حجر رحمه الله د دې معنی تردید کړې دې، فرمائی چه اول خو په دې کښې تکلف دې، بیا واسع د ابن عمر رضی الله عنهما نه څۀ تپوس نه دې کړې چه د هغه طرف ته د ناخبرئ څه نسبت اوکړې شی، د دې نه علاوه دا څه ضروری ده چه کوم سړې د سنت صلاۃ نه ناخبره وی هغه دې د سنت خلاء نه هم ناخبره وی. (٤)
په دې وجه حافظ رحمه الله فرمائی چه په اصل کښې د دې یوه بله معنی ده، کومه چه د مسلم شریف د روایت نه په فهم کښې راځی، امام مسلم رحمه الله روایت نقل کړې دې، واسع بن حبان رحمه الله فرمائی ﴿كُنْتُ أُصَلِّي فِي الْمَسْجِدِ وَعَبْدُ اللهِ بْنُ عُمَرَ مُسْنِدٌ ظَهْرَهُ إِلَى الْقِبْلَةِ فَلَمَّا قَضَيْتُ صَلَاتِي انْصَرَفْتُ إِلَيْهِ مِنْ شِقِّي فَقَالَ عَبْدُ اللهِ يَقُولُ نَاسٌ﴾(۵)
یعنی: ما په مسجد کښې مونځ کولو، او سیدنا عبدالله بن عمر رضی الله عنهما د قبلې طرف ته شا کولو سره ناست وو، چه کله ما مونځ پوره کړو نو زه د خپل طرف نه پاسیدم او د هغوی خوا ته ورغلم، سیدنا عبدالله بن عمر رضی الله عنهما اوفرمائیل چه څه خلق وائی..
گویا ابن عمر رضی الله عنهما په هغه کښې د سجدې په حالت کښې څه خبره اولیده، کومه چه ئې صحیح

---

(۱) دټول تفصیل دپاره اوگورئ: الکنز المتواری: ۲۷\۳ و ۲۸
(۲) فتح الباری ج ۱ ص ۲٤۸
(۳) قال المطرزی فی المغرب ج ۲ ص ۳۵۱ : الورکان ... هما فوق الفخذین کالکتفین فوق العضدین .... وکذلک فی المصابیح المنیر للفیومی ج ۲ ص ۲۵۶
(٤) فتح الباری ج ۱ ص ۲٤۸
(۵) صحیح مسلم. کتاب الطهارة. باب الاستطابة رقم ۶۱۱

طريقې سره په فهم کښې نه وه راغلې، ﴿لعلك﴾ وئيلو سره ترې ابن عمر رضي الله عنهما د دې په باره کښې تپوس اوکړو.
حاصل د دې دا دې چه عبد الله بن عمر رضي الله عنهما د خلقو نه د استدبار او استقبال قبله مسئله تازه تازه اوريدلې وه، د هغې په باره کښې هغوی اوغوښتله چه خپلو شاګردانو ته صحيح مسئله بيان کړي، خو هغوی واسع ته د بيانولو نه مخکښې اول د هغه د يو عمل اصلاح اوکړه، د هغې نه روستو ئې ورته دا مسئله بيان کړه، او واسع ورته بيانولو سره د مسئلې خبره کومه چه مرفوعا ثابته ده، اول بيان کړه او خپله خبره کومه چه مظنون ده هغه ئې روستو بيان کړه.(۱)
يا داسې وئيلې کيدې شی چه ابن عمر رضي الله عنهما د واسع په مانځه کښې څه محسوس کړل او په هغې باندې ئې د تنبيه کولو اراده اوفرمائيله، خو اول ئې ورته مرفوع حديث واورولو او د هغې نه روستو ئې چه په کومه خبره تنبيه کول غوښتل د هغې طرف ته ئې اشاره اوفرمائيله.
﴿لَعَلَّكَ مِنَ الَّذِينَ يُصَلُّونَ عَلَى أَوْرَاكِهِمْ﴾ والله اعلم

**په مذکوره جمله او حديث مرفوع کښې مناسبت** : په دې جمله او حديث مرفوع کښې مناسبت هم پيدا کيدې شی. د دې صورت دا دې چه په اصل کښې چه کوم خلق على الاطلاق د استدبار او استقبال نه منع کوی غالبا په هغې کښې بعض غلاة د حد نه تجاوز کوی، داسې چه هغوی په مانځه کښې په سجده کښې خپله شا او کوناټې نه اوچتوی، په دې ويرې سره چه که سجده کوناټو لره اوچتولو سره اوکړې شوه نو د قبلې استدبار به لازم شی، ځکه چه په مانځه کښې ځلور حالتونه دی، قيام، رکوع، سجود او قعود په دې کښې په درې حالتونو کښې خو استدبار نه راځی، خو په سجده کښې د استدبار امکان وی، لهذا د دې نه د بچ کيدو دپاره به ئې په اوراك باندې سجده کوله.
اوس مطلب دا دې چه ايا ته هم د هغه غلاة نه ئې کوم چه مطلقا د استقبال او استدبار نه منع کوی، تردې چه په خپلو اوراك باندې سجده کوی.(۲) والله اعلم

**قوله**: فَقُلْتُ لَا أَدْرِي وَاللَّهِ: ما عرض اوکړو قسم په الله! ماته هيڅ علم نشته.
د واسع خيال چونکه د دې قسم څه څيز طرف ته نه وو. په دې وجه هغه اووې چه ماته خو هيڅ علم نشته چه زه به د هغوی نه يم يا نه. (۳)

**قوله**: قَالَ مَالِكٌ يَعْنِي الَّذِي يُصَلِّي وَلَا يَرْتَفِعُ عَنِ الْأَرْضِ يَسْجُدُ وَهُوَ لَاصِقٌ بِالْأَرْضِ: امام مالك رحمه الله فرمائی چه د دې نه مراد هغه سړې دې، کوم چه مونځ داسې کوی چه د زمکې نه بالکل پاسيږی نه، يعنی سجده په داسې حال کښې کوی چه کوناټې ئې په زمکه پورې لګيدلې وی.

۱) اوګورئ: فتح الباري ج ۱ ص ۲۴۸
۲) پورته حواله
۳) عمدة القاری ج ۲ ص ۲۸۱

دا امام مالک رحمه الله د ﴿ الذین یصلون علی اوراکهم ﴾ تفسیر بیان اوفرمائیلو.

حاصل دا دې چه امام مالک رحمه الله فرمائی چه د ﴿ الذین یصلون علی اوراکهم ﴾ نه مراد هغه خلق دی کوم چه مونځ کوی او د سجدې په حالت کښې کوناټې نه اوچتوی، په زمکه پورې لګیدلې سجده کوی. (۱)

د امام مالک رحمه الله دا قول که د امام بخاری رحمه الله نقل کړې شوې وی نو تعلیق دې او که د عبدالله بن یوسف تنیسی شیخ بخاری نقل کړې شوې وی نو د ذکر شوې سند د لاندې داخل دې. (۲) والله اعلم

## ⑬ بَاب خُرُوجِ النِّسَاءِ إِلَى الْبَرَازِ

دا باب د زنانو د فضاء واسع طرف ته د وتلو په بیان کښې دې.

**د لفظ براز تحقیق**: ﴿ البراز ﴾ په باء موحده سره لوستلې شی، فضاء واسع ته وئیلې شی، د دې نه کنایة قضاء حاجت مراد اخستلې شی، لکه خلا وئیلو سره کنایة قضاء حاجت مراد اخستلې شی. (۳)

امام خطابی رحمه الله فرمائی چه دا لفظ اکثر راویان د باء په کسرې سره لولی، چه غلط دې، ﴿براز﴾ د باء په کسرې سره خو د ﴿ مبارزت فی الحرب ﴾ (په جنګ کښې د مقابلې) دپاره استعمالیږی. (٤) خو نورو لغویانو دا تخطئه نه ده قبوله کړې، پس جوهری فرمائی چه:

﴿والبراز ایضا کنایة عن ثفل الغذا وهو الغائط﴾(۵) یعنی براز چه څنګه د مبارزت فی الحرب دپاره استعمالیږی هم دغه شان د قضاء حاجت دپاره هم استعمالیږی.

حافظ رحمه الله فرمائی چه د ﴿براز﴾ بفتح الباء اطلاق په واسع فضاء باندې کیږی، که د دې نه خارج کیدونکې څیز مراد واخستلې شی نو دا به ﴿ اطلاق اسم المحل علی الحال﴾ د قبیل نه وی او که ﴿براز﴾ په کسرې د باء سره وی نو نفس خارجه به ترې مراد اخلو. (۶) والله اعلم

**د مخکښې باب سره مناسبت**: د دې باب د مخکښې سره مناسبت ښکاره دې چه په مخکښې باب کښې د تبرز حکم راغلې دې او په دې باب کښې د براز حکم مذکور دې. (۷)

---

۱) اوګوره. فتح الباری ج ۱ ص ۲٤۸، وعمدة القاری ج ۲ ص ۲۸۱
۲) عمدة القاری ج ۲ ص ۲۸۱
۳) اوګورئ: فتح الباری ج ۱ ص ۲٤۹
٤) معالم السنن ج ۱ ص ۱٤، کتاب الطهارة، باب التخلی عند قضاء الحاجة
۵) الصحاح ج ۳ ص ۸٤، ۶ قال الزبیدی: هکذا صرح به النووی فی تهذیبه، وابن درید، تاج العروس ج ۱۵ ص ۲۵، ۲۶
۶) فتح الباری ج ۱ ص ۲٤۹
۷) عمدة القاری ج ۲ ص ۲۸۲

**د ترجمة الباب مقصد** : علامه عینيﷺ فرمائي چه امام بخاريﷺ په دې ذکر شوې ترجمې سره دې خبرې طرف ته اشاره کوی چه زنانه به په شروع شروع کښې چه په کورونو کښې د بیت الخلاء انتظام نه وو بهر وتلې، دغه شان هغوی ته د وتلو اجازت ورکړې شوې وو، روستو چه کله په کورونو کښې انتظام پیدا شو نو د زنانو د هغې دپاره وتل ممنوع شو، کوم چه په وړاندې باب کښې بیان کړې شوې دې. (۱)

شیخ الحدیث صاحبﷺ فرمائي چه د زنانو دپاره چونکه ستر او حجاب مطلوب دې، پس په قران کریم کښې دی : ﴿ وَقَرْنَ فِي بُيُوتِكُنَّ وَلَا تَبَرَّجْنَ تَبَرُّجَ الْجَاهِلِيَّةِ الْأُولَىٰ ﴾(۲)

یعنی په خپلو کورونو کښې ایسارې اوسیږئ، په جاهلیت اولی کښې چه به څنګه زنانه وتلې هغه شان بې پردې مه اوځئ.

د دې تقاضه دا وه چه زنانه مطلقا د کورونو نه نۀ اوځی، نه د قضاء حاجت دپاره او نه د بل څه کار دپاره، لکه چه د وړاندې باب د حدیث الفاظ دا بیانوی : ﴿ قد اذن ان تخرجن فی حاجتکن ﴾ یعنی تاسو ته اجازت درکړې شوې دې چه د خپل حاجت دپاره وتلې شې، د دې حدیث د ظاهر نه معلومیږی چه زنانه مطلقا منع کړې شوې وې، د کوم چه اوس اجازت ورکولې شی. اوس د ترجمة الباب په ذریعه امام بخاريﷺ د هغې جواز بیانول غواړی.

د دې تقریر په صورت کښې به د باب د اولنی حدیث د ترجمة الباب سره مناسبت نه وی، خو په طور د تمهید او مقدمه دا حدیث دلته راوړلې شوې دې، د ترجمة الباب سره مناسب دویم حدیث دې، څکه چه په حدیث کښې د آیت حجاب د نزول ذکر دې، غالبا د آیت کریمه نه مراد هم دا ﴿ وَقَرْنَ فِي بُيُوتِكُنَّ... ﴾ والا آیت دې، د دې ایت کریمه نه مخکښې د حجاب حکم نازل شوې وو، ګویا د دې آیت کریمه د نازلیدو نه پس د زنانو وتل مطلقا منع شو او ظاهره دا ده چه د رسول اللهﷺ ازواج هم د دې تکلیف او حرج عظیم اظهار اوکړو، په دې باندې د هغوی د حاجات ضروریه دپاره د وتلو اجازت ورکړې شو، چه د هغې ذکر د باب په دویم حدیث کښې دې (۳)

۱) عمدة القاري ج ۲ ص ۲۸۲
۲) الاحزاب : ۳۳
۳) اوګورئ : الکنز المتواری ج ۳ ص ۲۹

۱۴۶: ﴿حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ قَالَ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ قَالَ حَدَّثَنِي عُقَيْلٌ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عُرْوَةَ عَنْ عَائِشَةَ (۱) أَنَّ أَزْوَاجَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كُنَّ يَخْرُجْنَ بِاللَّيْلِ إِذَا تَبَرَّزْنَ إِلَى الْمَنَاصِعِ وَهُوَ صَعِيدٌ أَفْيَحُ فَكَانَ عُمَرُ يَقُولُ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ احْجُبْ نِسَاءَكَ فَلَمْ يَكُنْ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَفْعَلُ فَخَرَجَتْ سَوْدَةُ بِنْتُ زَمْعَةَ زَوْجُ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَيْلَةً مِنَ اللَّيَالِي عِشَاءً وَكَانَتِ امْرَأَةً طَوِيلَةً فَنَادَاهَا عُمَرُ أَلَا قَدْ عَرَفْنَاكِ يَا سَوْدَةُ حِرْصًا عَلَى أَنْ يَنْزِلَ الْحِجَابُ فَأَنْزَلَ اللَّهُ آيَةَ الْحِجَابِ﴾

## رجال الحديث

① **يحيى بن بكير** : دا ابو زكريا يحيى بن عبدالله بن بكير قرشي مخزومي مصري رحمه الله دې، د هغوئ تذكره په ﴿بدء الوحى﴾ د دريم حديث د لاندې تيره شوې ده. (۲)

② **الليث بن سعد** : دا امام ابو الحارث ليث بن سعد بن عبدالرحمن فهمي مصري رحمه الله دې. د هغه حالات په بدء الوحى كښې د دريم حديث د لاندې تير شوې دى. (۳)

③ **عقيل** : دا عقيل بن خالد بن عقيل ايلي رحمه الله دې، د هغه حالات په بدء الوحى كښې د دريم حديث د لاندې ډير مختصر او په كتاب العلم كښې د باب فضل العلم د لاندې لږ په تفصيل سره تير شوې دى (۴)

④ **ابن شهاب** : دا امام محمد بن مسلم بن عبيدالله بن عبدالله بن شهاب زهري مدني رحمه الله دې، د هغوى حالات په (بدء الوحى) كښې د دريم حديث د لاندې تير شوې دى. (۵)

⑤ **عروة** : دا د عائشې رضي الله عنها خورئې عروه بن الزبير رحمه الله دې، د هغه حالات مختصرا په بدء الوحى كښې د دويم حديث د لاندې او په تفصيل سره په كتاب الايمان كښې د باب احب الدين الى الله ادومه د لاندې تير شوې دى. (۶)

---

۱) قوله عن عائشة رضى الله تعالى عنها الحديث اخرجه البخارى ايضا فى صحيحه ج ۱ ص ۲۶ فى نفس الكتاب والباب رقم ۱۴۷، وفى ج ۲ ص ۷۰۷، كتاب التفسير، سورة الاحزاب، باب قوله : ﴿ يا ايها الذين امنوا لا تدخلوا بيوت النبى ﴾ رقم ۴۷۹۵، وفى ج ۲ ص ۷۸۸، كتاب النكاح، باب خروج النساء لحوائجهن رقم ۵۲۳۷، وفى ج ۲ ص ۹۲۲، كتاب الاستيذان، باب اية الحجاب رقم ۶۲۴۰، ومسلم فى صحيحه فى كتاب السلام، باب اباحة الخروج للنساء لقضاء الحاجة الانسان رقم ۵۶۶۸- ۵۶۷۲

۲) كشف البارى ج ۱ ص ۳۲۳

۳) كشف البارى ج ۱ ص ۳۲۴

۴) كشف البارى ج ۱ ص ۳۲۵، و ج ۳ ص ۴۵۵

۵) كشف البارى ج ۱ ص ۳۲۶

۶) كشف البارى ج ۱ ص ۲۹۱، و ج ۲ ص ۴۳۶

⑨ **عائشة** : د ام المومنین سیده عائشه رضی الله عنها حالات په بدء الوحی کښې د دویم حدیث د لاندې تیر شوي دي (۱)

**قوله:** أَنَّ أَزْوَاجَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كُنَّ يَخْرُجْنَ بِاللَّيْلِ إِذَا تَبَرَّزْنَ إِلَى الْمَنَاصِعِ وَهُوَ صَعِيدٌ أَفْيَحُ: د رسول الله ﷺ بیبیانې به د شپې د مناصع طرف ته وتلې او هغه فراخه میدان وو.

**د مناصع، صعید او افیح لغوی تحقیق** : مناصع د منصع (بروزن مقعد) جمع ده، نصوع وئیلې شي خالص کیدو ته، وئیلې شي : «ابیض ناصع» هم دغه شان وئیلې شي «اصفر ناصع» یعنی خالص سپین او خالص زیړ.

«مناصع» د قضاء حاجت ځایونو ته وئیلې شي، ازهری لغوی فرمائی : «اری المناصع موضعا بعینه خارج المدینة، وکن النساء یتبرزن الیه باللیل» (۲)

یعنی زما په خیال مناصع د مدینې منورې نه بهر مخصوص ځائې دې، هلته به زنانه د شپې د قضاء حاجت دپاره وتلې.

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه دا د بقیع په طرفونو کښې معروف ځایونه دی، داؤدی رحمه الله فرمائی چه دې مقاماتو ته مناصع په دې وجه اوئیلې شو چه دلته انسان خالص یعنی یو اځې کیږی (۳) والله اعلم

«صعید» زمکې ته وئیلې شي. (٤) «افیح» دا د «فیح» نه د صفت صیغه ده، «الفَیْحُ والفَیَحُ: السعة والانتشار، والافیح والفیاح: کل موضع واسع، یقال بحر افیح» (٥)

د «صعید افیح» معنی شوه وسیع زمکه او فراخه میدان.

**قوله:** وهو صعید افیح: یعنی مناصع یو فراخه زمکه وه، دا ممکنه ده چه عائشې رضی الله عنها تفسیر بیان کړې وی، او دا هم کیدې شي چه دا تفسیر د عروه رحمه الله یا په لاندې راویانو کښې د چا طرف نه وی. (٦) امام زهری رحمه الله عام طور سره دغه شان تفسیر بیانوی، په دې وجه عین ممکنه ده چه د هغوی د طرف نه وی.

---

۱) کشف الباری ج ۱ ص ۲۹۱
۲) د دې ټولو تفصیلاتو دپاره اوګورئ عمدة القاری ج ۲ ص ۲۸۳. وتاج العروس ج ۲۲ ص ۲۵۹
۳) فتح الباری ج ۱ ص ۲٤۹
٤) اوګورئ : تاج العروس ج ۸ ص ۲۸۳
٥) اوګورئ : تاج العروس ج ۷ ص ۳۲
٦) فتح الباری ج ۱ ص ۲٤۹

**قوله:** فَكَانَ عُمَرُ يَقُولُ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ احْجُبْ نِسَاءَكَ فَلَمْ يَكُنْ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَفْعَلُ: سيدنا عمر رضی الله عنه به رسول الله ﷺ ته وئيل چه يا رسول الله ﷺ خپلې بيبيانې په پرده کښې کړه، خو رسول الله ﷺ به داسې نه کول.
اصل کښې رسول الله ﷺ د خپل طرف نه داسې کول نه غوښتل، په دې وجه ئې د وحى انتظار كولو

**قوله:** فَخَرَجَتْ سَوْدَةُ بِنْتُ زَمْعَةَ زَوْجُ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَيْلَةً مِنَ اللَّيَالِي عِشَاءً وَكَانَتْ امْرَأَةً طَوِيلَةً: پس سوده بنت زمعه رضی الله عنها د رسول الله ﷺ زوجه مطهره يوه شپه د ماسخوتن په وخت اووتله، او هغه لوړه زنانه وه.

**قوله:** فَنَادَاهَا عُمَرُ أَلَا قَدْ عَرَفْنَاكِ يَا سَوْدَةُ حِرْصًا عَلَى أَنْ يَنْزِلَ الْحِجَابُ فَأَنْزَلَ اللّٰهُ آيَةَ الْحِجَابِ: سيدنا عمر رضی الله عنه هغې ته آواز اوکړو چه اې سوده! مونږ ته اوپيژندلې! په دې اميد ئې اووې چه حجاب نازل شي.
مقصد دا وو چه په سيده سوده رضی الله عنها باندې بده اولګى، هغه به رسول الله ﷺ ته عرض اوکړي او الله پاك به د حجاب حكم نازل كړي، ځكه چه د رسول الله ﷺ په ذهن كښې خو به دا خبره راشي چه عمر خو هم دغه شان وئيلې وو، خو ممكنه ده چه نور خلق ورته په بد نظر اوګوري.

**قوله:** فَأَنْزَلَ اللّٰهُ آيَةَ الْحِجَابِ: الله پاك د حجاب آيت نازل كړو.

**د ايت حجاب نه كوم ايت كريمه مراد دې** : علامه كرمانى رحمه الله فرمائى چه د حجاب په آيت كښې درې احتمالات دى.

① كيدې شى چه دا آيت كريمه : ﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَدْخُلُوا بُيُوتَ النَّبِيِّ إِلَّا أَنْ يُؤْذَنَ لَكُمْ إِلَى طَعَامٍ غَيْرَ نَاظِرِينَ إِنَاهُ وَلَكِنْ إِذَا دُعِيتُمْ فَادْخُلُوا فَإِذَا طَعِمْتُمْ فَانْتَشِرُوا وَلَا مُسْتَأْنِسِينَ لِحَدِيثٍ إِنَّ ذَلِكُمْ كَانَ يُؤْذِي النَّبِيَّ فَيَسْتَحْيِي مِنْكُمْ وَاللّٰهُ لَا يَسْتَحْيِي مِنَ الْحَقِّ وَإِذَا سَأَلْتُمُوهُنَّ مَتَاعًا فَاسْأَلُوهُنَّ مِنْ وَرَاءِ حِجَابٍ ذَلِكُمْ أَطْهَرُ لِقُلُوبِكُمْ وَقُلُوبِهِنَّ﴾(۱) مراد وى.

**ترجمه** : اې ايمان والو! د نبى ﷺ كور ته مه ورځئ، مګر هغه وخت چه تاسو ته د خوراك اجازت اوكړې شى، په داسې طريقه چه د هغې د تيارئ انتظار نه كوئ، خو چه كله تاسو اوغوښتلې شئ نو بيا ځئ، بيا چه كله خوراك اوكړئ نو پاسيږئ او ځئ او په خبرو كښې د كيناستلو شوق مه كوئ، دا خبره په رسول الله ﷺ باندې بده لګى، پس هغه ستاسو نه حياء كوى او الله پاك د حق د بيانولو نه حياء نه كوى، «د اوس نه تاسو ته دا حكم كولې شى چه د رسول الله ﷺ بيبيانې به ستاسو نه پرده كوى، نو چه كله تاسو د هغوى نه څه څيز غواړئ نو

(۱) الاحزاب : ۵۳

د پردې نه بهر غوارئ دا ستاسو او د هغوی د زړونو دپاره ډیره پاکه خبره ده.

② دویم احتمال دا دې چه د دې نه مراد د الله پاك ارشاد: ﴿یَآأَیُّهَا النَّبِیُّ قُل لِّأَزْوَاجِكَ وَبَنَاتِكَ وَنِسَآءِ الْمُؤْمِنِینَ یُدْنِینَ عَلَیْهِنَّ مِن جَلَابِیبِهِنَّ ۚ ذَٰلِكَ أَدْنَىٰ أَن یُعْرَفْنَ فَلَا یُؤْذَیْنَ ۗ وَكَانَ اللَّهُ غَفُورًا رَّحِیمًا﴾(۱) وی.

یعنی اې نبی ﷺ! خپلو بیبیانو، لونړو او د مومنانو زنانو ته اوایه چه راښکته کړی په خپل ځان باندې خپلې څادرې، د دې نه به ئې زر پیژندګلو کیږی پس هغوی ته به تکلیف نه شی ورکولې.

③ دریم احتمال دا دې چه کیدې شی چه آیت کریمه: ﴿وَقُل لِّلْمُؤْمِنَاتِ یَغْضُضْنَ مِنْ أَبْصَارِهِنَّ وَیَحْفَظْنَ فُرُوجَهُنَّ وَلَا یُبْدِینَ زِینَتَهُنَّ إِلَّا مَا ظَهَرَ مِنْهَا ۖ وَلْیَضْرِبْنَ بِخُمُرِهِنَّ عَلَىٰ جُیُوبِهِنَّ﴾(۲) مراد وی.

یعنی تاسو مسلمانانو زنانو ته اوایئ چه خپلې سترګې ښکته ساتی او د خپلو شرمګاهونو حفاظت کوی او خپل ډول نه ښکاره کوی، مګر هغه چه د هغې نه ښکاره وی او خپلې لوپټې دې په خپلو سینو باندې دپاسه اچوی.

علامه کرمانی رحمه الله فرمائی چه د آیت الحجاب نه یا خو جنس مراد واخلئ نو دا ذکر شوې درې واړه آیتونه به کښې داخل وی او که عهد اومنلې شی نو د دې نه به یو آیت کریمه مراد وی. (۳)

خو صحیح دا ده چه د دې نه اولنې آیت کریمه مراد دې، ځکه چه د ابوعوانه په یو روایت کښې د دې تصریح موجود ده: ﴿فانزل الله الحجاب: یَآأَیُّهَا الَّذِینَ آمَنُوا لَا تَدْخُلُوا بُیُوتَ النَّبِیِّ﴾(٤)

حافظ ابن کثیر رحمه الله هم دا حدیث د دې آیت کریمه د لاندې ذکر کړې دې. (٥)

**د سیده سودة رضي الله عنها واقعه د حجاب د نزول نه مخکښې شوې وه یا روستو؟:** د دې نه پس دلته په دې ځان پوهه کړئ چه دا روایت امام بخاری رحمه الله په دوه طریقو سره نقل کړې دې.

یو په طریق د ﴿ابن شهاب، عروة عن عائشة﴾

دویم طریق ﴿هشام بن عروة عن عروة عن عائشة﴾

د ابن شهاب په طریق کښې خو دا دی چه سیده سوده رضي الله عنها اووتله او عمر رضي الله عنه پرې آواز اوکړو د دې نه روستو الله پاك د حجاب آیت نازل کړو. (۶)

---

۱) الاحزاب: ۵۹

۲) النور: ۳۱

۳) اوګورئ: شرح الکرمانی ج ۲ ص ۱۹۲، ۱۹۳

٤) پورته حواله

٥) اوګورئ: فتح الباری ج ۱ ص ۲٤۹، وعمدة القاری ج ۲ ص ۲۸٤

احقر ته په مستخرج د ابو عوانه کښې د تتبع او تلاش باوجود دا روایت ملاؤ نه شو، خو د سیدنا انس رضي الله عنه حدیث موجود دې، کوم چه د سیده زینب رضي الله عنها د ولیمې سره متعلق دې، اوګورئ: ج ۳ ص ۵۸. کتاب النکاح، باب الخبر الموجب اتخاذ الولیمة اذا بنی الرجل باهله ... رقم ٤۱۸۰.

٦) اوګورئ حدیث الباب او هم دغه شان: کتاب الاستیذان باب آیت الحجاب رقم ٦۲٤۰

او د هشام په طریق کښې دی چه ﴿ خرجت سودة بعد ما ضرب الحجاب ﴾(۱) یعنی سوده رضي الله عنها د حجاب د نازلیدو نه روستو اوتله دغه شان په دواړو طریقو کښې تعارض راځی.
حافظ ابن کثیر رحمه الله فرمائی: ﴿ هكذا وقع في هذه الرواية، والمشهور ان هذا كان بعد نزول الحجاب، كما رواه الامام احمد، والبخاري ومسلم ﴾(۲)
یعنی اګر چه د ابن شهاب په روایت کښې داسې راغلی دی، خو مشهوره دا ده چه دا د نزول حجاب نه روستو واقعه ده، لکه چه د امام احمد، بخاري او مسلم په روایت کښې دی.
ګویا ابن کثیر رحمه الله د هشام روایت ته د زهری په مقابله کښې ارجح وئیلې دې ځکه چه هغه زیات مشهور دی.
علامه کرمانی رحمه الله فرمائی چه کیدې شی دا واقعه دوه کرته پیښه شوې وی. (۳)
حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه په دواړو ځایونو کښې د حجاب نه مراد جدا جدا معنی ده، دلته چه کوم ﴿ احجب نساءك ﴾ راغلې دې د دې معنی ده : ﴿ امنعهن من الخروج من بيوتهن ﴾ یعنی تاسو هغوی د کور د وتلو نه منع کړئ، ځکه چه سیدنا عمر رضي الله عنه د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه دا درخواست د نزول حجاب نه پس کوی، مطلب دا دې چه د حجاب الوجوه د نازلیدو نه پس د سیدنا عمر رضي الله عنه خواهش وو چه تره پابندی پرې اولګولې شی چه د هغوی په جوثه هم د چا نظر نه پریوځی. په دې وجه هغه عرض اوکړو ﴿ احجب نسائك ﴾ چه حضور صلی الله علیه وسلم تاسو بیبیانې په پرده کښې اوساتئ!
دویم احتمال دا دې چه ﴿ احجب نسائك ﴾ کښې د ﴿ حجاب ﴾ نه ﴿ ستر الوجوه ﴾ مراد وی او مطلب دا وی چه سیدنا عمر رضي الله عنه اول دا درخواست پیش کړو چه د ستر الوجوه حکم اوکړې شی، چه کله دا منظور شو نو د هغې نه روستو د سیدنا عمر رضي الله عنه دا خواهش وو چه د ازواج مطهرات په بدن باندې او د هغوی په جوثه باندې هم د چا نظر او نه لګی، په دې وجه هغوی عرض اوکړو چه دا اشخاص دې مستور کړې شی، خو د دې حکم نازل نه شو. (٤)
خو په دې کښې اشکال دا دې چه که دې ترتیب ته اوکتلې شی نو بیا به دا هم منو چه د سیده سودة رضي الله عنها دا واقعه دوه کرته پیښه شوې ده، لکه چه علامه کرمانی رحمه الله احتمالا ذکر کړې دی. چه یو کرت اووتله نو د مخ حجاب نې نازل شو، په دویم کرت اوتله نو سیدنا عمر رضي الله عنه د حجاب الاشخاص په غرض سره هغې ته دوباره آواز ورکړو، خو حجاب الاشخاص نازل نه شو. خو په رسول الله صلی الله علیه وسلم باندې د ﴿ قد اذن ان تخرجن لحاجتكن ﴾(۵) وحی غیر متلو نازله شوه.

۱) اوګورئ: کتاب التفسیر. سورة الاحزاب باب قوله ﴿ لَا تَدْخُلُوا بُيوتَ النَّبِيِّ ﴾ رقم ٤٧٩٥
۲) تفسیر ابن کثیر ج ۶ ص ٤٥٤
۳) شرح الکرمانی ج ۱۷، ص ٥٤ کتاب التفسیر، سورة الاحزاب باب قوله ﴿ لَا تَدْخُلُوا بُيوتَ النَّبِيِّ ﴾
٤) اوګورئ: فتح الباری ج ۱ ص ۲٤۹
۵) د باب دویم حدیث

د تعدد دا قصه بعیده معلومیږی چه د سیده سوده ﷞ سره دې یو شان قصه دوه کرته پیښه شوې وی، پس وئیلې کیدې شی چه سیدنا عمر ﷛ د ستر الوجوه خواهش ظاهرولو او رسول الله ﷺ ته به ئې ﴿احجب نسائك﴾ وئیلو، رسول الله ﷺ به د الله پاك د حکم په انتظار کښې نه منلو. خو بیا الله پاك د دې حکم نازل کړو، د سیدنا عمر ﷛ خواهش نور هم زیات شو چه د هغې جوثې هم ظاهرې نه شی او د جوثو د حجاب حکم هم اوشی، رسول الله ﷺ به د وحی په انتظار کښې هغه هم نه منله، تردې چه د سیده سوده ﷞ د وتلو قصه پیښه شوه.
په دې صورت کښې اگر چه تعدد د قصې لازم نه شو، خو په دې کښې اشکال دا دې چه په دې طریق کښې د سیده سوده ﷞ د وتلو نه پس ﴿فانزل الله الحجاب﴾ ذکر دې، د دې معنی خو دا شوه چه روستو د حجاب الاشخاص حکم هم راغلو، لهذا د حافظ دا خبره به څنگه صحیح وی چه د حجاب الاشخاص حکم نازل نه شو بلکه د ﴿قد اذن...﴾ حکم راغلو؟
شیخ الحدیث ﷫ فرمائی چه په ﴿بعد ما ضرب الحجاب﴾ کښې د حجاب نه مراد حجاب الوجوه دې او په حدیث الباب کښې د ﴿فانزل الله الحجاب﴾ نه مراد ﴿وقرن فی بیوتکن﴾ والا آیت دې.
گویا سیدنا عمر ﷛ اول د حجاب الوجوه درخواست کړې وو، چه کله دا حکم اوشو او د هغې نه روستو سیده سوده اوتله نو د سیدنا عمر ﷛ خواهش وو چه حجاب الاشخاص نازل شی. د هغې نه روستو د ﴿وقرن فی بیوتکن﴾ والا آیت کریمه نازل شو(۱) والله سبحانه وتعالی اعلم

﴿وحَدَّثَنَا زَكَرِيَّاءُ قَالَ حَدَّثَنَا أَبُو أُسَامَةَ عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ عَنْ أَبِيهِ عَنْ عَائِشَةَ(۲) عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ قَدْ أُذِنَ أَنْ تَخْرُجْنَ فِي حَاجَتِكُنَّ قَالَ هِشَامٌ يَعْنِي الْبَرَازَ﴾ [۴۵۱۷، ۴۹۳۹، ۵۸۸۲]

## رجال الحديث

① زکریا: دلته زکریا مبهم دې، ددې نه مراد څوك دې؟ د دې د تعیین دپاره څان پوهه کړئ چه زکریا نومې د امام بخاری ﷫ براه راست څلور استاذان دی.
یو زکریا بن عدی التمیمی الکوفی دې، دا د امام بخاری ﷫ براه راست استاذ خو دې، خو په صحیح بخاری کښې ئې د هغه نه بغیر د واسطې نه روایت نه دې اخستلې، بلکه بالواسطه روایات ئې ترې اخستلې دې. (۳)

---

۱) الکنز المتواری ج ۳ ص ۳۰
۲) د دې حدیث د تخریج دپاره د مذکوره باب اولنې حدیث اوگورئ.
۳) قال الذهبی : وعنه (ای روی عنه) الدارمی، وابو امیه والبخاری لکن فی صحیحه بواسطة (والواسطة هو محمد بن عبدالرحیم المعروف بصاعقة، انظر صحیح البخاری ج ۱ ص ۳۸۳، کتاب الوصایا، باب الوصیة بالثلث، رقم ۲۷٤٤، و ج ۲ ص ۵۷۸، کتاب المغازی، باب غزوة احد، رقم ٤٠٤٢، الکاشف للذهبی ج ۱ ص ٤٠۵، رقم ۱٦٤۵.

حافظ ابن حجر رحمه الله زكريا بن يحيى بن زكريا بن ابى زائده هم د بخارى په رجال كښې شمار كړې دې (۱) خو په صحيح بخارى كښې د هغه روايت ثبوت ته نه دې رسيدلې، په دې وجه امام مزى رحمه الله د هغه تذكره نه ده كړې. (۲)
دريم زكريا بن يحيى بن صالح البلخى اللؤلؤى رحمه الله دې. (۳)
څلورم زكريا بن يحيى ابو السكين الطائى رحمه الله دې. (٤)
علامه عينى رحمه الله د حديث الباب په تذكره رجال كښې زكريا بن يحيى بن صالح البلخى تذكره كولو سره متعين كړې دى چه دلته بلخى مراد دې. (۵)
او حافظ رحمه الله په فتح البارى كښې په دې مقام باندې مبهمه شان خبره كړې ده چه دلته زكريا بن يحيى مراد دې، د بلخى يا طائى يا بل چا تعيين ئې نه دې كړې (۶) خو په هدى السارى كښې هغوى لږ شان تفصيل ذكر كړې دې، چه د هغې حاصل دا دې چه امام بخارى رحمه الله په باب العيدين كښې ﴿حدثنا زكريا بن يحيى ابو السكين، حدثنا المحاربى﴾ په طريق سره حديث نقل كړې دې. (۷) او په ﴿خروج النساء البراز﴾ كښې ئې ﴿حدثنا زكريا قال حدثنا ابو اسامة﴾ په طريق سره روايت راوړې دې (۸) دلته په طائى او بلخى كښې هر يو مراد كيدلې شى.
هم دغه شان امام بخارى رحمه الله په ﴿باب اذا لم يجد ماء ولا ترابا﴾، و﴿باب الجمعة﴾، او ﴿باب الخيمة فى المسجد﴾ او ﴿باب مرجع النبى ﷺ من الاحزاب﴾ كښې د ﴿حدثنا زكريا بن يحيى، حدثنا عبد الله بن نمير﴾ طرق ذكر كړې دى. (۹)
كلاباذى رحمه الله فرمائى چه په دې مقاماتو كښې بلخى مراد دې او ابو احمد بن عدى رحمه الله فرمائى چه زكريا بن يحيى بن زكريا بن ابى زائده كوفى مراد دې، امام دارقطنى رحمه الله هم زكريا بن يحيى بن زكريا بن ابى زائده كوفى د بخارى په رجال كښې شمار كړې دې.

---

۱) تقريب التهذيب ص ۲۱۶، رقم ۲۰۳۰، وتهذيب التهذيب ج ۳ ص ۳۳۵
۲) انظر تعليقات تحرير تقريب التهذيب ج ۱ ص ٤۱۷، رقم ۲۰۳۰
۳) اوګورئ: الكاشف ج ۱ ص ٤۰۶، رقم ۱۶٤۹
٤) اوګورئ: الكاشف ج ۱ ص ٤۰۶، رقم ۱۶۵۲
۵) عمدة القارى ج ۲ ص ۲۸۵
۶) فتح البارى ج ۱ ص ۲۵۰
۷) اوګورئ: صحيح البخارى ج ۱ ص ۱۳۲، كتاب العيدين، باب ما يكره من حمل السلاح فى العيد والحرم رقم ۹۶۶
۸) صحيح البخارى ج ۱ ص ۲۶، كتاب الوضوء، باب خروج النساء الى البراز رقم ۱٤۷
۹) صحيح البخارى ج ۱ ٤۸، كتاب التيمم، باب اذا لم يجد ماء ولا ترابا رقم ۳۳۶، و ج ۱ ص ۶۶ كتاب الصلاة، باب الخيمة فى المسجد للمرضى وغيرهم رقم ٤۶۳، و ج ۱ ص ۹٤، كتاب الاذان باب من قام الى جنب الامام لعلة، رقم ۶۸۳، و ج ۱ ص ۵۵۲ كتاب المناقب، باب هجرة النبى ﷺ واصحابه الى المدينة، رقم ۳۹۰۱، و ج ۲ ص ۲۹۱، كتاب المغازى، باب مرجع النبى ﷺ من الاحزاب ..... رقم ٤۱۲۲.

حافظ رحمه الله فرمائی چه یو امکان دا هم دې چه په دې ټولو مقاماتو کښې د بلخی په ځائې طائی مراد وی، (۱) ځکه چه هغه هم د ابن نمیر نه روایت کوی.

خود امام بخاری رحمه الله د عیدین په ابواب کښې زکریا بن یحیی ته ﴿ابو السکین الطائی﴾ وئیلو سره متعین او متمیز کول د دې خبرې قرینه ده چه په نورو مقاماتو کښې مراد طائی نه دې.(۲)

په ظاهره کښې دلته طائی مراد نه دې ځکه چه محققینو تصریح کړې ده چه د طائی په صحیح بخاری کښې د عیدین والا حدیث نه علاوه بل یو روایت هم نشته. (۳)

هم دغه شان حافظ رحمه الله په هدی الساری کښې په یو مقام کښې تصریح کړې ده چه د ابو السکین طائی نه امام بخاری رحمه الله صرف یو حدیث اخستلې دې. (٤)

بهرحال دلته په بلخی او طائی کښې راجح بلخی دې طائی نه دې، د طائی تذکره خوبه ان شاء الله په خپل مقام کښې راشی، دلته د بلخی تذکره کولې شی.

دا زکریا بن یحیې بن صالح بن سلیمان بن مطر البلخی اللؤلؤی دې، هغه ته زکریا بن ابی زکریا هم وئیلې شی، د هغه کنیت ابو یحیی دې،(۵) ابن منده د هغه کنیت ابو محمد بیان کړې دې. (۶) دې د ابو مطیع بلخی، الحکم بن المبارک، ابو اسامه حماد بن اسامه، خلف بن ایوب، سعید بن سلیمان، عبد الله بن نمیر، القاسم بن الحکم العرنی، ابوبکر محمد بن ابی عتاب الاعین او وکیع بن الجرح رحمهم الله نه روایت حدیث کوی.

د هغه نه امام بخاری، احمد بن سیار مروزی، اسماعیل بن محمد بن ابی کثیر القاضی، جعفر بن محمد بن الحسن الفریابی، عبد الصمد بن سلیمان بلخی او ابو سعد یحیی بن منصور هروی رحمهم الله حدیث نقل کوی.(۷)

قتیبه بن سعید رحمه الله د خپلو شاګردانو په باره کښې فرمائی: ﴿فتیان خراسان اربعة، زکریا بن یحیی اللؤلؤی، والحسن بن شجاع، وعبد الله بن عبدالرحمن السمرقندی، ومحمد بن اسماعیل البخاری﴾(۸)

---

۱) جزم بذلک صاحب الزهرة، ومال الی ذلک الباجی فی رجال البخاری. قاله الحافظ فی فتح الباری ج ۱ ص ٤٤١، کتاب التیمم، باب اذا لم یجد ماء ولا ترابا

۲) اوګورئ: هدی الساری ص ۲۳۱، الفصل السابع فی تبیین الاسماء المهملة التی یکثر اشتراکها

۳) قال ابن رجب: زکریا بن یحیی أبو السکین الطائی الکوفی، روی عنه البخاری هذا الحدیث، ولم یرد عنه فی (( کتابه )) ، ولم یخرج له أحد من أهل الکتب الستة سواه. فتح الباری لابن رجب ج ۸ ص ٤٥٥، ابواب العیدین، باب ما یکره من حمل السلاح فی العید والحرم. رقم ۹۶۷

٤) هدی الساری ص ٤۰۳، الفصل التاسع فی سیاق اسماء من طعن فیه من رجال هذا الکتاب

۵) تهذیب الکمال ج ۹ ص ۳۷۸

۶) اکمال تهذیب الکمال ج ۵ ص ۷۰، رقم ۱۶۷۶

۷) تهذیب الکمال ج ۹ ص ۳۷۸، ۳۷۹

۸) اوګورئ تذکرة الحفاظ ج ۲ ص ۵۱۷، ۵۱۸، وتهذیب الکمال ج ۹ ص ۳۷۹

یعنی د خراسان باکماله شخصیات څلور دی، دهغوی نه یو زکریا بن یحیی لؤلؤی دې.
حافظ ذهبی رحمه الله د هغه په باره کښې فرمائي: ﴿الحافظ، الفقيه، الحجة، ابو يحيى البلخي، احد الاعلام﴾(۱)
هم دغه شان فرمائي: ﴿امام مصنف في السنة﴾(۲)
مسلمه بن قاسم اندلسی رحمه الله فرمائي: ﴿ثقة﴾(۳)
حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي: ﴿ثقة حافظ﴾(٤)
ابن حبان رحمه الله هغه په کتاب الثقات کښې ذکر کړې دې او لیکلې ئې دی،
﴿وكان صاحب سنة وفضل، ممن يرد على اهل البدع﴾(۵)
یعنی د سنت پابند وو، صاحب فضیلت وو او په اهل بدعت به ئې رد کولو
په ذی الحجة یا محرم ۲۳۰ یا ۲۳۲ هجری کښې وفات شوې دې. (۶) مغلطائی رحمه الله د ابن حبان رحمه الله نه د ۲۳۵ هجری قول هم نقل کړې دې. (۷) رحمه الله رحمة واسعة

② **ابو اسامة**: دا ابو اسامه حماد بن اسامه بن زید قرشی کوفی رحمه الله دې. د هغه حالات په کتاب العلم باب فضل من علم وعلم د لاندې تیر شوې دی. (۸)

③ **هشام بن عروه**: دا هشام بن عروه بن الزبیر بن العوام قرشی اسدی مدنی رحمه الله دې، د هغه حالات په کتاب بدء الوحی کښې د دویم حدیث د لاندې مختصرا او په کتاب الایمان کښې د باب احب الدین الی الله ادومه د لاندې تفصیلاً تیر شوې دی. (۹)

④ **عروة** دا مشهور تابعی عروه بن الزبیر بن العوام قرشی اسدی مدنی رحمه الله دې. د هغه حالات مختصرا په بدء الوحی کښې د دویم حدیث د لاندې او په تفصیل سره په کتاب الایمان کښې د باب احب الدین الی الله ادومه د لاندې تیر شوې دی. (۱۰)

---

۱) اوګورئ. تذکرة الحفاظ ج ۲ ص ۵۱۷
۲) الکاشف ج ۱ ص ٤۰۶
۳) اکمال تهذیب الکمال ج ۵ ص ۷۰
٤) تقریب التهذیب ص ۲۱۶، رقم ۲۰۳۱
۵) الثقات لابن حبان ج ۸ ص ۲۵٤، رقم ۱۳۲۹۹
۶) تهذیب الکمال ج ۹ ص ۳۷۹
۷) اکمال تهذیب الکمال ج ۵ ص ۷۰
۸) کشف الباری ج ۳ ص ٤۱٤
۹) کشف الباری ج ۱ ص ۲۹۱، و ج ۲ ص ٤۳۲
۱۰) کشف الباری ج ۱ ص ۲۹۱، و ج ۲ ص ٤۳۶

⑤ **عائشة** : د ام المومنين سيده عائشه رضي الله عنها حالات په بدء الوحی کښې د دويم حديث د لاندې تير شوي دي. (۱)

**قوله: قَدْ أُذِنَ أَنْ تَخْرُجْنَ فِي حَاجَتِكُنَّ:** تاسو ته د خپل حاجت د پوره كولو اجازت دركړې شو.

دا حديث په كتاب التفسير كښې په تفصيل سره را روان دي. (۲)

حاصل دا دي چه د حجاب د حكم د نازليدو نه پس سيده سوده رضي الله عنها د حاجت دپاره اووتله، سيدنا عمر رضي الله عنه د هغې په ليدو باندې آواز وركړو چه ته پيژندلې كيږې، پټيدې نه شې، هغه واپس راغله او رسول الله ﷺ ته ئې شكايت اوكړو، هغه وخت دا حكم نازل شو چه زنانو ته د خپل حاجت دپاره د وتلو ګنجائش دي.

**د احاديثو نه مستنبط شو فوائد** : د دې ذكر شوي باب د احاديثو نه علماء كرامو ډير فوائد مستنبط كړې دی چه د هغې نه څو دا دي:

① يو دا چه د سيدنا عمر رضي الله عنه د مقام او مرتبې نه ظاهريږي چه د هغه په موافقت كښې آيتونه نازل شو، علامه عينی رحمه الله په دې مقام باندې د سيدنا عمر رضي الله عنه موافقات ذكر كړې دي. (۳)

② د دې نه يو خبره دا مستنبط كړې شوې ده چه ضرورة د سړو د زنانو سره په لاره كښې خبرې اترې جائز دی

③ دريمه فائده دا بيان كړې شوې ده چه انسان خپلې مور ته هم وعظ او نصيحت كولې شي، سيده سوده رضي الله عنها ام المومنين ده، سيدنا عمر رضي الله عنه هغې ته نصيحت اوكړو.

④ څلورمه فائده ئې دا ذكر كړې ده چه كه د خير خواهئ اراده وی نو په نصيحت كښې لږه شان سختی هم جائز ده.

⑤ د دې حديث نه معلومه شوه چه عمر رضي الله عنه رسول الله ﷺ ته درخواست اوكړو چه ﴿ احجب نساءك ﴾ چه تاسو امهات المومنين ته د حجاب حكم اوكړئ. رسول الله ﷺ باوجود د دې چه خير په حجاب كښې دې د وحی انتظار اوكړو، چه كله وحی نازله شوه نو رسول الله ﷺ بيا حكم وركړو، معلومه شوه چه رسول الله ﷺ به په امور شرعيه كښې د وحی انتظار كولو.

⑥ يو فائده ترې دا مستنبط كړې شوې ده چه زنانو دپاره څنګه چه د بول براز د حاجت دپاره د وتلو اجازت وركړې شوې دې، هم دغه شان د بل څه ضرورت دپاره هم ورله د وتلو ګنجائش دې، پس د رسول الله ﷺ په زمانه كښې به په عيدين وغيره كښې زنانه وتلې، خو نن

۱) كشف البارى ج ۱ ص ۲۹۱ تا ۲۹۵

۲) اوګورئ : صحيح البخارى ج ۲ ص ۷۰۷، كتاب التفسير، سورة الاحزاب، باب قوله : ﴿ يا ايها الذين امنوا لا تدخلوا بيوت النبى ﴾ رقم ۴۷۹۵

۳) اوګورئ : عمدة القارى ج ۲ ص ۲۸۴، ۲۸۵

صبا چونکه د سختې فتنې دور دې، فساد عام دې، په دې وجه د ضرورت شديده شرعيه نه بغير د وتلو اجازت نه شي ورکولې کيدې. (۱) والله اعلم

**قوله: قال هشام: يعني البراز:** هشام رحمه الله فرمائی (چه حاجت دپاره د وتلو نه مراد) د قضاء حاجت دپاره وتل مراد دی.

دا ﴿قال هشام﴾ يا خو د امام بخاری رحمه الله د طرف نه تعليق دې، يا د امام بخاری رحمه الله د شيخ ابو اسامه مقوله ده. (۲) والله اعلم وعلمه اتم واحكم

## (۱۴) باب التبرز في البيوت

**د مخکښ باب سره مناسبت:** د دې باب د مخکښ باب سره مناسبت ښکاره دې، په مخکښ باب کښ ﴿خروج الى البراز﴾ ذکر شوې دې او په دې باب کښ ﴿التبرز في البيوت﴾ (۳)

**د ترجمة الباب مقصد:** حافظ ابن حجر رحمه الله د دې باب مقصد بيان کړې دې چه امام بخاری رحمه الله په دې ترجمة الباب سره دې خبرې طرف ته اشاره کړې ده چه په خروج النساء الى البراز کښ استمرار پاتې نه شو، بلکه په کورونو کښ چه کله بيوت الخلاء جوړې کړې شوې نو بهر ته د وتلو د ضرورت نه کيدو د وجې ازواج مطهرات رضی الله عنهن ته استغناء حاصله شوه، خاص ضرورت که پيښ شي نو هغه جدا خبره ده. (٤)

علامه عينی رحمه الله فرمائی چه په شروع کښ چه کله په کورونو کښ بيت الخلاء نه وې جوړې شوی. ازواج مطهرات او نورې زنانه به د قضاء حاجت دپاره بهر وتلې او چه کله بيت الخلاء جوړه شوه نو ممانعت او کړې شو، الا لضرورة شرعية.(۵)

شيخ الحديث رحمه الله هم د دې حضراتو بيان کړې غرض له راجح کولو سره فرمائيلې دی چه د دې حضراتو د بيان حاصل دا راوځی چه تبرز في البيوت مندوب دې، ځکه چه په دې سره په تستر کښ زيات مدد ملاويږی، زما په نزد د ترجمې غرض هم دا راجح دې، امام بخاری رحمه الله د دې اولويت طرف ته اشاره کولو دپاره دا باب ﴿باب خروج النساء الى البراز﴾ نه پس راوړې دې، هر چه د خروج د جواز تعلق دې، پس هغه د مخکښ حديث ﴿قد اذن﴾ نه معلوم شوې دې. (۶)

---

۱) د دې ټولو فوائدو دپاره اوګورئ: عمدة القاری ج ۲ ص ۲۸٤، ۲۸۵. وفتح الباری ج ۱ ص ۲۵۰.
۲) شرح الکرمانی ج ۲ ص ۱۹۳، وعمدة القاری ج ۲ ص ۲۸۵
۳) عمدة القاری ج ۲ ص ۲۸۵
٤) فتح الباری ج ۱ ص ۲۵۰
۵) عمدة القاری ج ۲ ص ۱۸۵
٦) اوګورئ: الکنز المتواری ج ۳ ص ۳۳

شيخ الحديث رحمه الله مزيد فرمائي چه امام بخاري رحمه الله د ﴿ فانزل الله اية الحجاب ﴾ والا روايت نه پس دا باب متصلا راوړې دې، په دې كښې دې طرف ته اشاره ده چه په كورونو كښې د بيوت الخلاء تيارى د آيت حجاب د نزول نه پس شوې ده. والله اعلم

حضرت گنگوهي رحمه الله فرمائي چه چونكه په كورونو كښې د قضاء حاجت كولو په صورت كښې د نجاست سره قرب او ملابست دې، كيدې شي چه څوك د دې وجې نه د كراهت په توهم كښې پريوځي، په دې وجه د داسې توهم د ترديد دپاره امام بخاري دا باب قائم فرمائيلو سره د دې جواز بيان فرمائيلې دې، خو چونكه نظافت او طهارت شرعا مطلوب دې. په دې وجه د كور نه دا نجاست زر تر زره د لرې كولو فكر كيدل پكار دى. داسې چه په دې كښې تكثير ته هم خبره او نه رسيږي، د دې اهتمام كول پكار دى. (۱)

د دې وجوهاتو نه علاوه زما خيال دا دې چه امام بخاري رحمه الله دلته دوه ترجمې قائم كړې دى، يو باب خروج النساء الى البراز او دويم باب التبرز فى البيوت ... په دې دواړو كښې امام بخاري رحمه الله د دواړو صورتونو جواز بيان كړې دې. يعنى د قضاء حاجت دپاره بهر هم تلې شى او په كورونو كښې ئې هم كولې شى

خو امام بخاري رحمه الله په باب خروج النساء الى البراز كښې خاص طور د زنانو ذكر كړې دې، په دې وجه د ښځوې معامله په ستر باندې مبنى ده او د ښځوې دپاره په ﴿ وقرن فى بيوتكن ﴾(۲) كښې د قرار فى البيوت حكم دې، نو كيدې شى چه څوك دا خيال اوكړى چه ښځوې قضاء حاجات دپاره د بهر تلو اجازت نشته، په دې وجه ئې خاص طور د زنانو خروج الى البراز ثابت فرمائيلې دې او چه كله د زنانو دپاره د وتلو جواز راوتلو نو د سړو دپاره په طريق اولى ثابت شو

او امام بخاري رحمه الله په دې ترجمه كښې باب التبرز فى البيوت فرمائيلې دې، په دې كښې ئې د يو صنف قيد نه دې لګولې. بلكه د دې الفاظ ئې عام ساتلې دى، چه دا معلومه شى چه تبرز فى البيوت صرف د زنانو دپاره نه دې، بلكه سړى هم په كور كښې قضاء حاجت كولې شى، پس په حديث الباب كښې هم دا روايت دې او چه كله په كور كښې قضاء حاجت كولې شى نو زنانه، چه د چا معامله په ستر باندې مبنى ده، په درجه اولى كولې شى، امام بخاري رحمه الله ترجمه عام ساتلو سره د سړو دپاره په كور كښې قضاء حاجت لره نصا او د زنانو دپاره قضاء حاجت اولوية ثابت كړې دې. والله اعلم

---

۱) اوګورئ: لامع الدرارى مع الكنز المتوارى ج ۳ ص ۳۳، ۳٤
۲) الاحزاب: ۳۳

۱۴۸/۱۴۷ : ﴿حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ الْمُنْذِرِ قَالَ حَدَّثَنَا أَنَسُ بْنُ عِيَاضٍ عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ يَحْيَى بْنِ حَبَّانَ عَنْ وَاسِعِ بْنِ حَبَّانَ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ (۱) قَالَ ارْتَقَيْتُ فَوْقَ ظَهْرِ بَيْتِ حَفْصَةَ لِبَعْضِ حَاجَتِي فَرَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقْضِي حَاجَتَهُ مُسْتَدْبِرَ الْقِبْلَةِ مُسْتَقْبِلَ الشَّامِ﴾

## رجال الحدیث

① **ابراهیم بن المنذر** : دا ابراهیم بن المنذر بن المغیرة قرشی اسدی حزامی مدنی رحمه الله دي. د هغه حالات په کتاب العلم ﴿باب من سئل علما وهو مشتغل فی حدیثه﴾ د لاندې تیر شوي دی. (۲)

② **انس بن عیاض** : دا انس بن عیاض بن ضمرة اللیثی المدنی رحمه الله دي. (۳) د هغه د نیکه نوم بعض حضراتو هم دا ضمره وئیلي دي او بعض ﴿جعدبة﴾ او بعض ﴿عبدالرحمن﴾ وئیلي دي. (٤) ابو ضمره د هغه کنیت دي. (۵)

دا د شریک بن ابی نمر، ابو حازم، ربیعه، هشام بن عروه، موسی بن عقبه، سهیل بن ابی صالح، صالح بن کیسان، صفوان بن سلیم، عبید الله بن عمر رحمهم الله وغیره ډیرو حضراتو نه روایت کوی

د هغه نه په روایت کونکو کښې امام احمد، امام شافعی، عبدالله بن وهب، عبدالله بن مسلمه قعنبی، علی بن المدینی، قتیبه بن سعید، ابراهیم بن المنذر، امام حمیدی، عبدالله بن نمیر، یونس بن عبد الاعلی او زبیر بن بکار رحمهم الله وغیره دی. (۶)

ابن سعد رحمه الله فرمائی : ﴿وکان ثقة کثیر الحدیث﴾ (۷)

امام یحیی بن معین رحمه الله فرمائی : ﴿ثقة﴾ (۸)

هم دغه شان هغه فرمائی : ﴿صویلح﴾ (۹)

امام ابو زرعه او امام نسائی رحمهما الله فرمائی : ﴿لا باس به﴾ (۱۰)

---

۱) قد مر تخریج هذا الحدیث قبل باب فی باب من تبرز علی لبنتین، فعد الیه ان شئت
۲) کشف الباری ج ۳ ص ۵۸
۳) عمدة القاری ج ۲ ص ۲۸۶
٤) اوګورئ: تهذیب الکمال ج ۳ ص ۳٤۹
۵) پورته حواله
۶) د شیوخ او تلامذه د تفصیل دپاره اوګورئ: تهذیب الکمال ج ۳ ص ۳٤۹ تا ۳۵۱
۷) الطبقات لابن سعد ج ۵ ص ٤۳۶
۸) وذلک فیما رواه الدوری عنه، انظر تهذیب الکمال ج ۳ ص ۳۵۱
۹) وذلک فیما رواه اسحاق بن منصور عنه، انظر تهذیب الکمال ج ۳ ص ۳۵۱
۱۰) تهذیب الکمال ج ۳ ص ۳۵۱

علامه باجي رحمه الله د امام ابو زرعه رحمه الله نه ﴿ثقة﴾ نقل کړي دي. (۱)

مسلمه بن قاسم رحمه الله فرمائي: ﴿بصري، ثقة﴾ (۲)

ابن شاهين رحمه الله هغه په کتاب الثقات کښې ذکر کړي دي. (۳)

ابن عدي رحمه الله فرمائي: ﴿ابوضمرة ثقة﴾ (٤)

امام مالک رحمه الله د هغه ډير تعريف کړي دي؛ (۵)

يونس بن عبد الاعلى رحمه الله فرمائي: ﴿ما رايت احدا لقينا احسن خلقا ولا اسمح بعلمه من انس بن عياض، ولقد قال لنا مرة: والله! لوتهيأ لي ان احدثكم بكل ما عندي في مجلس واحد لحدثتكموه﴾ (٦)

يعني ما چه د څومره خلقو نه علم حاصل کړي دي، په هغوی کښې ما د انس بن عياض رحمه الله نه زيات خوش اخلاقه او خپل علم لره ډير زيات خورونکي نه دې ليدلي، يو کرت هغه اوفرمائيل: قسم په الله! که زما په وس کښې دا خبره وه چه څه ما سره دی هغه په يو مجلس کښې زه تاسو ته درکړم نو دا به مې هم کړي وو.

ابن حبان رحمه الله هغه په کتاب الثقات کښې ذکر کړي دي. (۷)

د هغه وفات امام ابن حبان رحمه الله ۱۸۰ هجری بيان کړي دي. (۸) ابن منجويه هم يو قول دا نقل کړي دي. (۹) او عبد الرحمن بن ابراهيم دحيم وائي چه په ۱۹۹ هجری کښې هغه وفات شوې دې. (۱۰)

امام بخاري رحمه الله او نور محققين فرمائي چه په ۲۰۰ هجری کښې هغه وفات شوې دې. (۱۱) رحمه الله رحمة واسعة

③ عبيد الله: دا امام عبيد الله بن عمرو بن حفص بن عاصم بن عمر بن الخطاب رضي الله عنه دي. (۱۲) دا ام خالد بنت خالد صحابيه رضي الله عنها نه روايت کوی، د هغې نه علاوه د سالم بن عبد الله بن

---

۱) التعديل والتجريح ج ۱ ص ۳۹۱، رقم ۱۰۰

۲) اكمال تهذيب الكمال ج ۲ ص ۲۷۸، رقم ۶۰۲

۳ اكمال تهذيب الكمال ج ۲ ص ۲۷۹، رقم ۶۰۲

٤) تاريخ مدينة دمشق ج ۹ ص ۳۳۱

٥) نقله مغلطائي عن كتاب الثقات لابن شاهين، انظر اكمال تهذيب الكمال ج ۲ ص ۲۷۹

٦) تاريخ مدينة دمشق ج ۹ ص ۳۳۱

۷) اوګورئ: الثقات لابن حبان ج ۶ ص ۷۶، رقم ۶۷۹۸

۸) اوګورئ: الثقات لابن حبان ج ۶ ص ۷۶، ومشاهير علماء الامصار ج ۱ ص ٤۲

۹) اوګورئ: رجال مسلم لابن منجويه ج ۱ ص ۶۷

۱۰) تاريخ مدينه دمشق ج ۹ ص ۲۳۲

۱۱) اوګورئ: التاريخ الكبير ج ۲ ص ۳۲

۱۲) اوګورئ: عمدة القاري ج ۲ ص ۲۸۶، وتهذيب الكمال ج ۱۹ ص ۱۲٤

عمر، قاسم بن محمد و نافع، سعید مقبری، حبیب بن عبدالرحمن، عطاء بن ابی رباح، عمرو بن شعیب، زهری، وهب بن کیسان، عبدالله بن دینار، عبدالرحمن بن القاسم، ثابت البنانی، ابو الزناد، سهیل بن ابی صالح او عمرو بن دینار رحمهم الله وغیره نه روایت کوی.

د هغه نه په روایت کونکو کښې ابن جریج، معمر، سفیان ثوری، سفیان بن عیینه، شعبه، عبدالله بن نمیر. علی بن مسهر. عبدالله بن المبارك، ابن الماجشون، معتمر بن سلیمان، یحیی بن سعید انصاری، یحیی القطان او ابو اسحاق فرازی رحمهم الله وغیره ډیر حضرات دی.(۱)

د یحیی بن سعید مخکښې چه کله دا اوئیلې شو چه ﴿ مالك اثبت فی نافع من عبیدالله بن عمر ﴾ نو هغه خفه شو او وې فرمائیل : ﴿ هو اثبت من عبیدالله؟ ﴾

آیا مالك د عبدالله په مقابله کښې اثبت دې؟ داسې نه ده! (۲)

امام احمد رحمه الله عبید الله بن عمر ته په امام مالك او ایوب (سختیانی) رحمهما الله باندې ترجیح ورکولو سره فرمائی : ﴿ عبیدالله اثبتهم، واحفظهم، واکثرهم روایة ﴾(۳)

امام ابن معین رحمه الله فرمائی : ﴿ عبیدالله بن عمر من الثقات ﴾(٤)

امام ابو زرعه او امام ابو حاتم رحمهما الله فرمائی : ﴿ ثقة ﴾(۵)

امام نسائی رحمه الله فرمائی ﴿ ثقة، ثبت ﴾(۶)

ابن حبان رحمه الله هغه په کتاب الثقات کښې ذکر کړې دې او فرمائی :

﴿ وکان من سادات اهل المدینة، واشراف قریش، فضلا، وعلما، وعبادة، وشرفا، وحفظا واتقانا ﴾(۷)

ابن منجویه رحمه الله هم بعینه هم دا الفاظ ذکر کړې دی. (۸)

احمد بن صالح رحمه الله فرمائی : ﴿ ثقة، ثبت، مامون، لیس احد اثبت فی حدیث نافع منه ﴾(۹)

ابن خلفون رحمه الله هغه په کتاب الثقات کښې ذکر کړې دې او ابن النمیر، ابن عبدالرحیم او ابو جعفر السبتی رحمهم الله وغیره نه ئې هم د هغه توثیق نقل کړې دې. (۱۰)

ابن شاهین رحمه الله په خپل کتاب الثقات کښې فرمائی : ﴿ عبیدالله بن عمر، عن القاسم بن محمد،

---

۱) د شیوخ او تلامذه د تفصیل دپاره اوګورئ : تهذیب الکمال ج ۱۹ ص ۱۲٤ تا ۱۲۷
۲) تهذیب الکمال ج ۱۹ ص ۱۲۷
۳) پورته حواله
٤) پورته حواله
۵) الجرح والتعدیل ج ۶ ص ۳۲۶، رقم ۱۵٤۵
۶) تهذیب الکمال ۱۹ ص ۱۲۸
۷) الثقات لابن حبان ج ۷ ص ۱٤۹
۸) رجال صحیح مسلم ج ۲ ص ۱۲، ۱۳، رقم ۱۰۲۶
۹) اکمال تهذیب الکمال ج ۹ ص ۵٤
۱۰) پورته حواله

والقاسم بن محمد عن عائشة مشبك بالذهب ﴾(۱) دا سند پیللي شوې سرهٔ زر دی.

امام يحيى بن معين رحمه الله فرمائي : ﴿ عبيد الله بن عمر عن القاسم بن محمد عن عائشة، الذهب المشبك بالدر ﴾(۲)

امام عجلى رحمه الله فرمائي : ﴿ مدني، ثقة، ثبت ﴾(۳)

حافظ خليلي رحمه الله فرمائي : ﴿ حافظ، متقن، متفق عليه، روى عنه الائمة الكبار ﴾(٤)

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي : ﴿ ثقة، ثبت، قدمه احمد بن صالح على مالك في نافع، وقدمه ابن معين في القاسم عن عائشة، على الزهري عن عروة عنها ﴾(۵)

يعنى هغه ثقه اوثبت دي، احمد بن صالح دنافع په رواياتو كښې هغه ته په امام مالك رحمه الله باندې فوقيت وركړې دې، او امام ابن معين د قاسم عن عائشه په سند سره روايت شوې احاديثو ته د زهرى عن عروه عن عائشه په سند سره نقل شوې احاديثو باندې ترجيح وركړې ده.

**تنبيه** : صاحب ترجمه عبيد الله بن عمر بن حفص بن عاصم بن عمر بن الخطاب قرشى مدنى عمرى دې، او د هغه مشر رور عبدالله بن عمر بن حفص بن عمرى دې، دې هم د صحيح مسلم او د سنن اربعه په راويانو كښې دې، دواړو ته عمرى وئيلې شى، په دوى كښې عبيد الله مصغرا ثقه او متقن دې، او عبدالله مكبرا ضعيف دې. (۶)

په ۱۴۵ يا ۱۴۷ هجرى كښې وفات شوې دې. (۷) رحمه الله رحمة واسعة

④ **محمد بن يحيى بن حبان** : دا محمد بن يحيى بن حبان بن منقذ نجارى مدنى رحمه الله دې. د هغه حالات په كتاب الوضوء باب من تبرز على لبنتين كښې تير شوې دى.

⑤ **واسع بن حبان** : دا واسع بن حبان بن منقذ نجارى مدنى رحمه الله دې. د هغه حالات هم په كتاب الوضوء باب من تبرز على لبنتين كښې تير شوې دى.

⑥ **عبد الله بن عمر رضى الله عنهما** : د سيدنا عبد الله بن عمر رضي الله عنهما حالات په كتاب الايمان كښې د باب الايمان وقول النبى ﷺ بنى الاسلام على خمس د لاندې تير شوې دى. (۸)

---

۱) تاريخ اسماء الثقات لابن شاهين ص ۱۶۳، رقم ۹٤۶
۲) تهذيب الكمال ج ۱۹ ص ۱۲۸
۳) الثقات للعجلى ج ۲ ص ۱۱۲، رقم ۱۱۶۶
٤) الارشاد فى معرفة علماء الحديث : ج ۱ ص ۲۹۳، رقم ۱۳۸
۵) تقريب التهذيب ص ۳۷۳، رقم ٤۳۲٤
۶) تقريب التهذيب ص ۳۱٤، رقم ۳٤۸۹
۷) تهذيب الكمال ج ۱۹ ص ۱۲۹
۸) كشف البارى ج ۱ ص ۶۳۷

قوله: اِرْتَقَيْتُ فَوْقَ ظَهْرِ بَيْتِ حَفْصَةَ لِبَعْضِ حَاجَتِي فَرَأَيْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقْضِي حَاجَتَهُ مُسْتَدْبِرَ الْقِبْلَةِ مُسْتَقْبِلَ الشَّامِ: سيدنا عبدالله بن عمر رضي الله عنهما فرمائى چه زه د خپلو بعض كارونو دپاره د سيده حفصه رضي الله عنها د كور په چهت باندې اوختلم. ما رسول الله ﷺ اوليدو چه هغه د قبلې طرف ته شا كړې او د شام طرف ته مخ كړې قضاء حاجت فرمائى

په دې روايت كښې د ﴿فوق ظهر بيت حفصة﴾ تصريح ده، هم د دې باب په وړاندې روايت كښې ﴿على ظهر بيتنا﴾ الفاظ راغلې دى. د داسې تعارض دفيعه مونږ په تير شوى باب ﴿باب من تبرز على لبنتين﴾ كښې د ﴿لقد ارتقيت يوما على ظهر بيت لنا﴾ په تشريح كښې كړې ده چه د هغې حاصل دادې چه دسيده حفصه رضي الله عنها طرف ته نسبت حقيقى دې اوخپل طرف ته نسبت ئې مجازى دې.

د حديث پوره تشريح شاته په باب من تبرز على لبنتين د لاندې تير شوې دې.

۱۴۸: ﴿حَدَّثَنَا يَعْقُوبُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ قَالَ حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ هَارُونَ قَالَ أَخْبَرَنَا يَحْيَى عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ يَحْيَى بْنِ حَبَّانَ أَنَّ عَمَّهُ وَاسِعَ بْنَ حَبَّانَ أَخْبَرَهُ أَنَّ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ عُمَرَ أَخْبَرَهُ (۱) قَالَ لَقَدْ ظَهَرْتُ ذَاتَ يَوْمٍ عَلَى ظَهْرِ بَيْتِنَا فَرَأَيْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَاعِدًا عَلَى لَبِنَتَيْنِ مُسْتَقْبِلَ بَيْتِ الْمَقْدِسِ﴾ [ر: ۱۴۵]

## رجال الحديث

① **يعقوب بن ابراهيم**: دا ابويوسف يعقوب بن ابراهيم بن كثير بن زيد بن افلح العبدى الدورقى رحمه الله دې. د هغه حالات په كتاب الايمان كښې د باب حب الرسول ﷺ من الايمان د لاندې تير شوې دى (۲).

② **يزيد بن هارون**: دا يزيد بن هارون بن زاذى يا زاذان بن ثابت سلمى واسطى رحمه الله دې. ابو خالد د هغه كنيت دې. د هغه نيكهٔ زاذان د ام عاصم د زوجه عتبه بن فرقد مولى وو، هغې هغه لره ازاد كړې وو. دې د عاصم الاحول، يحيى بن سعيد الانصارى، سليمان التيمى، حميد الطويل، عمرو بن علقمه، عبدالله بن عون، شعبه بن الحجاج، سعيد بن ابى عروبه، محمد بن اسحاق او قيس بن الربيع رحمهم الله وغيره ډيرو حضراتو نه روايت كوى.
د هغه نه په روايت كونكو كښې امام على بن المدينى، امام احمد، ابوبكر بن ابى شيبه، زهير بن حرب، محمد بن عبدالله بن نمير، عباس الدورى، يعقوب الدورقى، امام دارمى، احمد بن الفرات، او ابو قلابه الرقاشى رحمهم الله وغيره حضرات دى. (۳)

---

۱) قد مر تخريج هذا الحديث تحت باب من تبرز على لبنتين ببسط وتفصيل.
۲ كشف البارى: ۱۲/۱۱۱.
۳) د شيوخ او تلامذه د تفصيل دپاره اوګورئ: تهذيب الكمال ج ۳۲ ص ۲۶۲ تا ۲۶۶. وسير اعلام النبلاء ج ۹ ص ۳۵۹

امام احمد رحمه الله فرمائى : ﴿كان حافظا متقنا للحديث، صحيح الحديث عن حجاج بن ارطاة، قاهرا لها، حافظا﴾(۱) امام يحيى بن معين رحمه الله فرمائى : ﴿ثقة﴾ (۲)

امام على بن المدينى رحمه الله فرمائى : ﴿هو من الثقات﴾(۳)

هم دغه شان هغه فرمائى : ﴿ما رايت رجلا قط احفظ من يزيد بن هارون﴾(٤)

امام عجلى رحمه الله فرمائى : ﴿ ثقة، ثبت فى الحديث، وكان متعبدا متنسكا، حسن الصلاة جدا، كان قد عمى﴾(۵)

امام ابو زرعه رحمه الله د ابن ابى شيبه رحمه الله نه نقل كوى : ﴿ ما رايت اتقن حفظا من يزيد بن هارون﴾(۶)

امام ابو زرعه رحمه الله فرمائى : ﴿والاتقان اكثر من حفظ السرد﴾(۷) يعنى هغه ته چه سردا د حفظ حديث ملكه حاصله وه د دې نه هم زيات د هغه اتقان وو.

امام ابو حاتم رحمه الله فرمائى : ﴿ثقة، امام، صدوق، لا يسال عن مثله﴾(۸)

هشيم رحمه الله فرمائى : ﴿ما بالمصرين مثل يزيد بن هارون﴾(۹)

ابن سعد رحمه الله فرمائى : ﴿كان ثقة، كثير الحديث﴾(۱۰)

امام نووى رحمه الله فرمائى : ﴿وهو احد الائمة المشهورين بالحديث والفقه والصلاح﴾(۱۱)

هم دغه شان هغه فرمائى ﴿ واجمعوا على توثيقه وجلالته وحفظه وامامته﴾(۱۲)

امام ابن حبان رحمه الله هغه په كتاب الثقات كښ ذكر كړې دې او ليكلې ئې دى!

﴿كان من خيار عباد الله تعالى ممن يحفظ حديثه﴾(۱۳)

---

۱) تهذيب الكمال ج ۳۲ ص ۲۶۶
۲) پورته حواله
۳) تهذيب الكمال ج ۳۲ ص ۲۶۷
٤) پورته حواله
۵) الثقات للعجلى ج ۲ ص ۳۶۸، رقم ۲۰۳۹
۶) تهذيب الكمال ج ۳۲ ص ۲۶۷
۷) پورته حواله
۸) الجرح والتعديل ج ۹ ص ۳۵۹، رقم ۱۲۵۷
۹) تهذيب الكمال ج ۳۲ ص ۲۶۷، والمراد بالمصرين الكوفة والبصرة...كما قال المحقق "السير" ج ۹ ص ۳۶۰
۱۰) الطبقات لابن سعد ج ۷ ص ۳۱٤
۱۱) تهذيب الاسماء واللغات ج ۲ ص ۱۶۳، رقم ۲۶۰
۱۲) پورته حواله
۱۳) الثقات لابن حبان ج ۷ ص ۶۳۲، رقم ۱۱۸۲۳

زکريا بن يحيى رحمه الله فرمائی : ﴿ كنا نسمع ان يزيد من احسن اصحابنا صلاة، واعلمهم بالسنة ﴾(١)

: امام احمد بن حنبل رحمه الله نه تپوس اوکړې شو ﴿ يزيد بن هارون له فقه؟ ﴾ يعنى آيا يزيد بن هارون رحمه الله فقيه وو؟ وې فرمائيل : ﴿ نعم! ما كان افطنه، واذكاه وافهمه ﴾(٢)

زعفرانی رحمه الله فرمائی : ﴿ ما رايت خيرا من يزيد ﴾(٣)

زياد بن ايوب رحمه الله فرمائی : ﴿ ما رايت له كتابا قط ولا حديثا الا حفظا ﴾(٤)
يعنى هغه به هميشه حديث په يادو اورولو، کتاب به ئې مخې ته نه کيخودلو.

يعقوب بن شيبه رحمه الله فرمائی : ﴿ ثقة، وكان يعد من الامرين بالمعروف والناهين عن المنكر ﴾(٥)
يعنى هغه ثقه دې او شمير ئې په امر بالمعروف او نهى عن المنكر والو کښې کيږى.

ابن قانع رحمه الله فرمائی : ﴿ ثقة ﴾(٦)
يزيد بن هارون رحمه الله به عبادت ډير زيات کولو، عفان رحمه الله فرمائی:

﴿ ما رايت عالما احسن صلاة من يزيد بن هارون، يقوم كانه اسطوانة، يصلى بين الظهر والعصر، وبين المغرب والعشاء، لم يكن يفتر عن صلاة الليل والنهار، هو وهشيم معروفان بطول صلاة الليل والنهار ﴾(٧)

حافظ ذهبى رحمه الله فرمائی : ﴿ الامام، القدوة، شيخ الاسلام..... الحافظ ﴾ هم دغه شان هغه فرمائی:
﴿ وكان راسا فى العلم والعمل، ثقة، حجة، كبير الشان ﴾(٨)

د يزيد بن هارون د حفظ او اتقان په باره کښې په ذکر شوې اقوالو باندې تاسو خبر شوئ، د دې باوجود چونکه هغه په اخرى عمر کښې نابينا شوې وو، په دې موقع باندې به چه يو سړى د هغه نه داسې حديث تپوسلو کوم چه به هغه ته معلوم نه وو نو خپلې وينځې ته به ئې فرمائيل، چه هغې ئې د کتاب نه راوباسى او وريادئې کړى، په دې وجه بعض دا عيب شمار کولو سره کلام کوى، پس يحيى بن معين رحمه الله تردې وئيلې دى چه :
﴿ يزيد ليس من اصحاب الحديث، لانه لا يميز، ولا يبالى عمن روى ﴾(٩)

---

١) تهذيب التهذيب ج ١١ ص ٣٦٨
٢) پورته حواله
٣) پورته حواله
٤) پورته حواله
٥) پورته حواله
٦) پورته حواله
٧) تهذيب الكمال ج [illegible] ٢٦٨
٨) سير اعلام النبلاء ج [illegible] ص ٣٥٨
٩) تهذيب التهذيب ج ١١ ص ٣٦٨

يعنى په يزيد كښ د علماء حديث خصوصيت نشته. ځكه چه هغه به تميز نه كولو او د هغه به پرواه نه وه چه د چا نه روايت كوى.
د دې وجه دا ده چه متقدمينو به د معمولى تساهل نه هم احتراز كولو، چونكه د دې واقعي نه لازميږي چه هغه به په خپله وينزه باندې اعتماد كولو او ظاهره ده چه په هغې كښ هغه اتقان او پوخ والې نه شى كيدې چه د اجزاء ترمينځه تمييز كولو سره حديث راوباسى او ورياد ئې كړى، په دې وجه په دې عمل باندې تنقيد شوې دې.
خو حقيقت دا دې چه دا عمل هيڅ قابل تليين وتضعيف نه دې، د هغه د دې عمل د وجې نه د هغه يو حديث ته متكلم فيه نه دې وئيلې شوې.(۱) د دې نه علاوه په دې امت كښ د زنانو او وينزو نه څومره داسې تيرې شوې دى د چا صلاحيتونه چه د پسخيدو قابل وو، كه هغه خپله وينزه د دې قابله ګڼړلې وى نو په دې كښ د كلام او نقد كولو څه معنى؟
پس حافظ ذهبى رحمه الله فرمائى: ﴿ما بهذا العمل بأس مع أمانة من يلقنه، ويزيد حجة بلا مثنوية ﴾(۲)
يعنى په دې عمل كښ هيڅ باك نشته، چه كله تلقين كونكې د امانت په صفت سره متصف وى، يزيد بغير د استثناء نه على الاطلاق حجت دې.
هم دغه شان د امام يحيى بن معين رحمه الله نه نقل دى: ﴿سماع يزيد من ابن ابى عروبة ضعيف﴾(۳)
يعنى د يزيد د سعيد بن ابى عروبة نه سماع ضعيف ده.
حافظ ذهبى رحمه الله په دې سلسله كښ فرمائى:
﴿انما الضعف فيها من قبل سعيد بن ابى عروبة، لانه سمع منه بعد التغير﴾(٤)
يعنى په يزيد كښ هيڅ ضعف نشته، دا ضعف د سعيد بن ابى عروبه د تغير او اختلاط د وجې نه دې، ځكه چه د يزيد سماع د سعيد بن ابى عروبه نه د ابن ابى عروبه د تغير نه پس شوې ده.
۲۰۶ هجرى كښ په واسط كښ وفات شوې دې. (۵) رحمه الله رحمة واسعة
③ **يحيى**: دا امام يحيى بن سعيد الانصارى رحمه الله دې. د هغه حالات هم د بدء الوحى د اولنى حديث د لاندې مختصرا او په كتاب الايمان كښ د باب صوم رمضان احتسابا من الايمان د لاندې لږ په تفصيل سره ذكر شوې دى (۶)

---

۱) پس خپله د ابن معين رحمه الله نه د هغوى په باره كښ توثيقات منقول دى، اوګورئ: معرفة الرجال عن يحيى بن معين لابن محرز ج ۱ ص ۱۰٤، رقم ٤٨٤
۲) سير اعلام النبلاء ج ۹ ص ۳۶۳
۳) سير اعلام النبلاء ج ۹ ص ۳۶۲
٤) سير اعلام النبلاء ج ۹ ص ۳۶۳
۵) سير اعلام النبلاء ج ۹ ص ۳۶۹
۶) اوګورئ: كشف البارى ج ۱ ص ۲۳۸، و ج ۲ ص ۳۲۱

④ **محمد بن يحيى بن حبان** : د هغه حالات اوس شاته په كتاب الوضوكښې د باب من تبرز على لبنتين د لاندې تير شوې دى

⑤ **واسع بن حبان** : د هغه حالات هم په كتاب الوضوكښې د باب من تبرز على لبنتين د لاندې تير شوې دى.

⑥ **عبد الله بن عمر** : د سيدنا عبدالله بن عمر رضي الله عنهما حالات په كتاب الايمان كښې د باب الايمان وقول النبى ﷺ بنى الاسلام على خمس د لاندې تير شوې دى. (۱)

**قوله: لَقَدْ ظَهَرْتُ ذَاتَ يَوْمٍ عَلَى ظَهْرِ بَيْتِنَا:** سيدنا عبدالله بن عمر رضي الله عنهما فرمائى چه زه يوه ورځ د خپل كور چهت ته اوختلم.

**قوله: فَرَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَاعِدًا عَلَى لَبِنَتَيْنِ مُسْتَقْبِلَ بَيْتِ الْمَقْدِسِ:** ما رسول الله ﷺ اوليدو په دوه ښختو باندې د بيت المقدس طرف ته رخ كولو سره په ناسته اوليدو.

په دې روايت كښې صرف د ﴿ مستقبل بيت المقدس ﴾ الفاظ دى، او د دې نه په مخكښې روايت كښې د ﴿ مستدبر القبلة ﴾ الفاظ هم وو، په اولنى روايت كښې هغه تاكيدا ذكر كړې شوې دې، په دويم روايت كښې صرف په يوه جمله باندې اكتفاء كړې شوې ده، ځكه چه كوم سړې د بيت المقدس طرف ته مخ كولو سره كينى هغه به لازما د قبلې طرف ته شا كوى.

په اول روايت كښې د ﴿مستقبل الشام﴾ الفاظ دى، اوپه دې روايت كښې د ﴿مستقبل بيت المقدس﴾ الفاظ دى، دا روايت بالمعنى دې، دواړه په يو جهت كښې دى. (۲) والله اعلم وعلمه اتم واحكم

## ⑮ بَابُ الِاسْتِنْجَاءِ بِالْمَاءِ

**د مخكښې باب سره مناسبت** : د دې باب د مخكښې باب سره مناسبت بالكل واضح دې، ځكه چه په مخكښې باب كښې باب د ﴿ تبرز ﴾ يعنى د ﴿ قضاء حاجت ﴾ ذكر دې او په دې باب كښې د استنجاء ذكر دې. (۳)

**د ترجمة الباب مقصد** : حافظ ابن حجر، علامه عينى او نورو شارحينو رحمهم الله ليكلې دې چه امام بخارى رحمه الله په دې باب كښې په هغه خلقو باندې رد كړې دې، چا چه به استنجاء بالماء ته مكروه وئيله. هم دغه شان په هغه خلقو باندې هم رد دې چا چه به دا دعوىٰ كوله چه د

---

۱) كشف البارى ج ۱ ص ۶۳۷
۲) اوګورئ: فتح البارى ج ۱ ص ۲۵۰، وعمدة القارى ج ۲ ص ۲۸۶، ۲۸۷
۳) عمدة القارى ج ۲ ص ۲۸۷

رسول الله ﷺ نه په اوبو سره استنجاء كول ثابت نه دى.(١)

**د استنجاء بالماء په حكم كښې د علماء كرامو اختلاف** : ائمه اربعه او جمهور په دې متفق دى چه د استنجاء دپاره د اوبو استعمال نه صرف جائز بلكه مستحب دى. (٢)

خو د بعض حضرات صحابه او تابعين ﷺ نه د دې قولا يا فعلا انكار منقول دى.

پس امام ابن ابى شيبه رحمه الله د سيدنا حذيفه رضي الله عنه په باره كښې نقل كړى دى چه كله د هغه نه د استنجاء بالماء په باره كښې تپوس اوكړې شو نو وې فرمائيل : ﴿ اذن لا تزال يدى فى نتن ﴾(٣)

يعنى بيا خو به زما لاس هميشه بدبويه وى.

هم دغه شان د ابن عمر رضي الله عنهما په باره كښې امام نافع رحمه الله فرمائى!

﴿ وكان ابن عمر لا يستنجى بالماء ﴾(٤) يعنى ابن عمر رضي الله عنهما به په اوبو باندې استنجاء نه كوله.

سيدنا عبدالله بن الزبير رضي الله عنه يو سړې اوليدو چه د استنجاء دپاره ئې اوبه استعمالولې نو وې فرمائيل : ﴿ ما كنا نفعله ﴾(٥)

د سلمه بن الاكوع رضي الله عنه په باره كښې د هغه مولى يزيد فرمائى : ﴿ ان سلمة كان لا يستنجى بالماء ﴾(٦)

د اسود او عبدالرحمن بن يزيد رحمهما الله په باره كښې نقل دى!

﴿ كان الاسود وعبدالرحمن بن يزيد يدخلان الخلاء، فينتجيان باحجار، ولا يزيدان عليها، ولا يمسان ماء ﴾(٧)

يعنى اسود او عبدالرحمن بن يزيد به بيت الخلاء ته لاړل، په كاڼو سره به ئې استنجاء اوكړه او د بل څيز اضافه به ئې نه كوله او نه به ئې اوبه استعمالولې.

---

١) اوګورئ فتح البارى: ٢٥١١١، وعمدة القارى: ٢٨٧١٢، وتحفة البارى: ١٥٩١١، وارشاد السارى: ٢٣٨١١، والكنز المتوارى: ٣٤١٣.

٢) اوګورئ : بدائع الصنائع ج ١ ص ١٨٣، فصل فى سنن الوضوء، ومواهب الجليل ج ١ ص ٦٩، كتاب الطهارة، باب ما يرفع الحديث وما حكم الخبث المطلق، والمجموع شرح المهذب ج ١ ص ١٠٠، والانصاف ج ١ ص ١٠٤،١٠٥

٣) المصنف لابن ابى شيبة ج ٢ ص ١٧١، كتاب الطهارة، باب من كان لا يستنجى بالماء ويجتزئ بالحجارة، رقم ١٦٤٦

٤) المصنف لابن ابى شيبة ج ٢ ص ١٧٥، كتاب الطهارة، باب من كان لا يستنجى بالماء ويجتزئ بالحجارة، رقم ١٦٥٩

٥) المصنف لابن ابى شيبة ج ١ ص ٤١٩، كتاب الطهارة، باب من كان اذا بال لم يمس ذكره بالماء، رقم ٥٩٦، و ج ٢ ص ١٧٢، كتاب الطهارة، باب من كان لا يستنجى بالماء ويجتزئ بالحجارة، رقم ١٦٥٣

٦) المصنف لابن ابى شيبة ج ٢ ص ١٧٥، كتاب الطهارة، باب من كان لا يستنجى بالماء ويجتزئ بالحجارة، ١٦٥٧

٧) المصنف لابن ابى شيبة ج ٢ ص ١٧١، كتاب الطهارة، باب من كان لا يستنجى بالماء ويجتزئ بالحجارة، ١٦٤٧

د امام سعيد بن المسيب رحمه الله مخكښې چه كله د استنجاء بالماء ذكر اوكړې شو نو هغه اوفرمائيل: ﴿ذلك طهور النساء﴾(۱)

هم دغه شان هغه به فرمائيل: ﴿انما ذلك وضوء النساء﴾(۲) يعنى دا خو د زنانو د طهارت طريقه ده، د سړو نه ده.

حافظ ابن حجر رحمه الله د ابن التين رحمه الله په حوالې سره نقل كړې دى چه امام مالك رحمه الله د دې خبرې نه انكار كړې دې چه رسول الله ﷺ د استنجاء دپاره د اوبو استعمال كړې وى. (۳)

دغه شان ئې د ابن حبيب مالكى نه نقل كړى دى چه هغوى به د استنجاء بالماء نه منع كوله. ځكه چه اوبه د مطعوماتو ځنې دى.(۴)

د دې دواړو نقلونو څه حيثيت دې؟ د دې جائزه به مونږ روستو اخلو!

**د جمهور علماء كرامو دلائل**: خو حقيقت دا دې چه استنجاء بالماء نه صرف د جمهور صحابه كرام او تابعين، بلكه خپله د رسول الله ﷺ نه هم ثابته ده.

① سنن النسائى، جامع ترمذى، مسند احمد، او په صحيح ابن حبان وغيره كښې د سيده عائشه رضي الله عنها نه روايت دې: ﴿مُرْنَ أَزْوَاجَكُنَّ أَنْ يَسْتَطِيبُوا بِالْمَاءِ، فَإِنِّي أَسْتَحْيِيهِمْ مِنْهُ، إِنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَفْعَلُهُ﴾ (اللفظ للنسائى)(۵)

يعنى عائشې رضي الله عنها څه زنانو ته اوفرمائيل چه خپلو خاوندانو ته په اوبو سره د استنجاء كولو او پاكى حاصلولو حكم كوئ، ماله براه راست د وئيلو نه حياء راځى، او رسول الله ﷺ به خپله دا سې كول

② سيدنا انس رضي الله عنه په حديث الباب كښې د رسول الله ﷺ د استنجاء دپاره د اوبو استعمالول بيان كړى دى، پس په دې روايت كښې ډير طرق دى، په دې د الفاظو د فرق سره قدر مشترك هم دا دې چه رسول الله ﷺ د استنجاء نه پس اوبه استعمال كړې.

۱) المصنف لابن ابى شيبة ج ۲ ص ۱۷۱، كتاب الطهارة، باب من كان لا يستنجى بالماء ويجتزئ بالحجارة، رقم ۱۶۴۸

۲) الموطاء، كتاب الطهارة، باب جامع الوضوء رقم ۶۴

۳) فتح البارى ج ۱ ص ۲۵۱

۴) حواله بالا.

۵) سنن النسائى، كتاب الطهارة، باب الاستنجاء بالماء، رقم ۴۶، وجامع الترمذى، ابواب الطهارة، باب الاستنجاء بالماء، رقم ۱۹، ومسند احمد ج ۶ ص ۹۵، رقم ۲۵۱۴۶، و ج ۶ ص ۱۱۳، رقم ۲۵۳۳۲، و ج ۶ ص ۱۱۴، رقم ۲۵۳۴۷، و ج ۶ ص ۱۲۰، رقم ۲۵۴۰۲، و ج ۶ ص ۱۳۰، رقم ۲۵۴۹۸، و ج ۶ ص ۱۷۱، رقم ۲۵۸۹۲، و ج ۶ ص ۲۳۶ رقم ۲۶۵۲۲، وصحيح ابن حبان ج ۴ ص ۲۹۰، رقم ۱۴۴۳، بتحقيق الارنؤوط، ومسند ابى يعلى، ج ۸ ص ۱۲، رقم ۴۵۱۴، و ج ۸ ص ۲۷۲، رقم ۴۸۵۹، بتحقيق حسين سليم اسد، والمصنف لابن ابى شيبة و ج ۲ ص ۱۶۵، كتاب الطهارة، باب من كان يقول اذا خرج من الغائط فليستنج بالماء، رقم ۱۶۲۹، و ۱۶۳۰

پس په صحیح بخاری کښې صراحت دې؛

﴿ كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَدْخُلُ الْخَلَاءَ فَأَحْمِلُ أَنَا وَغُلَامٌ إِدَاوَةً مِنْ مَاءٍ وَعَنَزَةً يَسْتَنْجِي بِالْمَاءِ ﴾(۱)

یعنی رسول الله ﷺ به د حاجت دپاره تشریف اوړلو، ما او یو هلك به د اوبو لوښې او همسا راواخستله. رسول الله ﷺ به په اوبو سره استنجاء کوله.

③ په صحیح ابن خزیمه کښې د سیدنا جریر رضی الله عنه نه روایت دې؛ ﴿ أَنَّ نَبِيَّ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دَخَلَ الْغَيْضَةَ فَقَضَى حَاجَتَهُ، فَأَتَاهُ جَرِيرٌ بِإِدَاوَةٍ مِنْ مَاءٍ فَاسْتَنْجَى بِهَا قَالَ: وَمَسَحَ يَدَهُ بِالتُّرَابِ ﴾(۲)

یعنی رسول الله ﷺ ځنګل ته داخل شو. قضاء حاجت ئې اوکړو. جریر ورله د اوبو لوښې راوړلو. په هغې باندې استنجاء اوفرمائیله. جریر رضی الله عنه فرمائی چه رسول الله ﷺ خپل لاس په خاوره باندې اومږلو

④ په سنن ابن ماجة او صحیح ابن حبان کښې د سیدنا ابوهریره رضی الله عنه نه روایت دې؛

﴿ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَضَى حَاجَتَهُ ثُمَّ اسْتَنْجَى مِنْ تَوْرٍ، ثُمَّ دَلَكَ يَدَهُ بِالْأَرْضِ ﴾(۳)

یعنی رسول الله ﷺ قضاء حاجت نه پس په یو لوښې سره استنجاء اوکړه، بیا ئې خپل لاس مبارك په زمکه باندې اومږلو.

⑤ هم دغه شان په سنن ابن ماجة او صحیح ابن حبان کښې د سیده عائشه رضی الله عنها نه روایت دې؛

﴿ مَا رَأَيْتُ رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - خَرَجَ مِنْ غَائِطٍ قَطُّ إِلَّا مَسَّ مَاءً ﴾ (٤) یعنی ما رسول الله ﷺ همیشه د قضاء حاجت نه پس د اوبو په استعمالولو باندې لیدلې دې.

⑥ په سنن ابی داؤد او جامع ترمذی کښې د سیدنا ابوهریره رضی الله عنه نه روایت دې:

﴿ عن النبی صلی الله علیه وسلم قال: نَزَلَتْ هذه الآية في أهل قباء { فِيهِ رِجَالٌ يُحِبُّونَ أَنْ يَتَطَهَّرُوا } [التوبة: ۱۰۸] قال: كانوا يَسْتَنْجُونَ بالماء، فنزلت فيهم هذه الآية ﴾(۵)

---

۱) اوګورئ: صحیح البخاری ج ۱ ص ۲۷، کتاب الوضوء، باب حمل العنزة مع الماء فی الاستنجاء رقم ۱۵۲

۲) صحیح ابن خزیمة ج ۱ ص ٤۷، کتاب الوضوء باب دلک الید بالارض وغسلهما بعد الفراغ من الاستنجاء بالماء، رقم ۸۹. والسنن لابن ماجة، کتاب الطهارة وسننها، باب من دلک یده بالارض بعد الاستنجاء، رقم ۳۵۹، هم دغه شان اوګورئ: سنن النسائی، کتاب الطهارة، باب دلک الید بالارض بعد الاستنجاء رقم ۵۱

۳) سنن ابن ماجة، کتاب الطهارة، باب من دلک یده بالارض بعد الاستنجاء، رقم ۳۵۸، وصحیح ابن حبان، بترتیب ابن بلبان ج ٤ ص ۲۵۱، کتاب الطهارة، بالاستطابة رقم ۱٤۰۵

٤) سنن ابن ماجة، کتاب الطهارة، باب الاستنجاء بالماء، رقم ۳۵٤، وصحیح ابن حبان بترتیب ابن بلبان ج ٤ ص ۲۸۸، رقم ۱٤٤۱

۵) سنن ابی داؤد، کتاب الطهارة، باب فی الاستنجاء بالماء رقم ٤٤، وجامع الترمذی، ابواب التفسیر، سورة التوبة رقم ۳۱۰۰

یعنی دا آیت مبارکه ﴿ فیه رجال ..... الخ ﴾ په هغه مسجد کښې داسې خلق دی چه طهارت خوښوی، دا د اهل قباء په باره کښې نازل شوې دې، رسول اللهﷺ فرمائی هغوی به په اوبو باندې استنجاء کوله نو د هغوی په باره کښې دا آیت کریمه نازل شو.

⑥ په سنن ابن ماجة، په المنتقی لابن الجارود او "المختارة" کښې د سیدنا ابو ایوب، سیدنا جابر او سیدنا انس رضی الله عنهم نه روایت دې چه رسول اللهﷺ تپوس اوکړو!

﴿ يَا مَعْشَرَ الْأَنْصَارِ، إِنَّ اللهَ قَدْ أَثْنَى عَلَيْكُمْ فِي الطُّهُورِ، فَمَا طُهُورُكُمْ؟ قَالُوا: نَتَوَضَّأُ لِلصَّلَاةِ، وَنَغْتَسِلُ مِنَ الْجَنَابَةِ، وَنَسْتَنْجِي بِالْمَاءِ. قَالَ: فَهُوَ ذَاكَ، فَعَلَيْكُمُوهُ ﴾(۱)

یعنی اې د انصارو ډلې! الله پاك د طهارت په سلسله کښې ستاسو تعریف کړې دې، اخر هغه ستاسو طهارت څنګه وی؟ هغوی عرض اوکړو چه مونږ د مانځه د پاره اودس کوو، د جنابت نه غسل کوو او په اوبو سره استنجاء کوو، رسول اللهﷺ اوفرمائیل! بالکل هم دا اصل سبب دې، پس دا لازم اونیسئ.

د صحابه کرام رضی الله عنهم آثار هم په دې باندې په کثرت سره شاهد دی!

پس د سیدنا حذیفه، سیدنا رافع بن خدیج، ابو اسید، ابو ذر غفاری، عمر بن الخطاب او انس بن مالك رضی الله عنهم نه استنجاء بالماء منقول ده. (۲)

**د منکرینو د دلائلو جائزه** : هر چه د بعض صحابه کرام رضی الله عنهم د قولا یا فعلا انکار تعلق دې، پس د هغوی په مقابله کښې بل طرف ته د صحابه کرام رضی الله عنهم یو لوئی تعداد موجود دې.

دویمه خبره دا ده چه د دې حضراتو قولی یا فعل انکار په دې باندې محمول کیدې شی چه د دې حضراتو د متیازو نه پس فورا په اوبو سره د استنجاء کولو څۀ باقاعده معمول نه وو، خو هغوی مطلقا د استنجاء بالماء انکار نه کولو.

بیا په دې حضراتو کښې د څو کسانو نه د انکار سره سره اثبات، یعنی استنجاء بالماء هم ثابته ده، لکه چه د سیدنا حذیفه رضی الله عنه نه نقل دی، د هغه بیبی سیده فریعه رضی الله عنها فرمائی :

﴿ كان حذيفة يستنجي بالماء ﴾(۳) یعنی سیدنا حذیفه رضی الله عنه به په اوبو سره استنجاء کوله.

هم دغه شان ابن عمر رضی الله عنهما چه د هغه نه انکار منقول دې. هغه نافع رحمه الله ته فرمائی:

﴿ جربناه، فوجدناه صالحا ﴾(٤)

---

۱) سنن ابن ماجة، کتاب الطهارة، باب الاستنجاء بالماء رقم ۳۵۵، والمنتقی لابن الجارود ج ۱ ص ٤۷، ٤۸، کتاب الطهارة باب الاستنجاء بالماء رقم ٤۰، والمختارة للضياء المقدسی ج ۶ ص ۲۱۹، مسند أنس بن مالك رقم ۲۲۳۱

۲) د دې ټولو آثار د پاره اوګورئ المصنف لابن ابی شیبة ج ۲ ص ۱۶۵، ۱۶۷، کتاب الطهارة، باب من كان يقول اذا خرج من الغائط فليستنج بالماء رقم ۱۶۳۱، ۱۶۳۶، ۱۶۳۷، ۱۶۳۸ او ۱۶۳۹.

۳) المصنف لابن ابی شیبة ج ۲ ص ۱۶۵، کتاب الطهارة باب من کان يقول اذا خرج من الغائط فليستنج بالماء رقم ۱۶۳۱، هم دغه شان اوګورئ، الاوسط لابن المنذر ج ۱ ص ۳٤۹، جماع ابواب الاستنجاء

٤) الاوسط لابن المنذر ج ۱ ص ۳٤۸، کتاب الطهارة، جماع ابواب الاستنجاء

یعنی مونږ د اوبو د استعمالولو تجربه اوکړه نو ډیره فائده منده مو بیا موندله.
هر چه د سعید بن المسیب رحمه الله د انکار تعلق دې پس په هغې کښې یو احتمال خو دا دې چه هغه په هغه حضراتو باندې نکیر کړې دې کوم چه د استنجاء بالاحجار نه انکار کوی، ګویا د غلو نه د منع کولو دپاره ئې دا تعبیر اختیار کړې دې.
ابن نافع رحمه الله فرمائی چه د سعید بن المسیب رحمه الله مقصود دا دې چه صرف د اوبو استعمال د زنانو عمل دې، او سړی اوبه او کاڼړی څنګه چه دواړه جمع کولې شی، هم دغه شان صرف په کاڼړو باندې اکتفاء هم جائز ده.(۱)
قاضی فرمائی چه د هغه په نزد د زنانو په حق کښې د کاڼړو استعمال متعذر دې، په دې وجه به هغوی اوبه استعمالوی، د سړو دپاره چونکه د لوټو استعمال متعذر نه دې، په دې وجه هغوی به دې باندې اکتفاء کولې شی. (۲)
هر چه د امام مالک رحمه الله او د ابن حبیب مالکی رحمه الله د قول تعلق دې، پس د مالکیانو مشهور عالم علامه حطاب رعینی مالکی رحمه الله فرمائی: ﴿ وهذان النقلان غریبان، والمنقول عن ابن حبیب انه منع الاستجمار مع وجود الماء بل لا اعرفهما فی المذهب ﴾ (۳)
یعنی دا دواړه خبرې کومې چه حافظ ابن حجر رحمه الله په فتح الباری کښې نقل کړې دی، دا غریب اقوال دی، بلکه د ابن حبیب رحمه الله نه د دې برعکس منقول دی چه د اوبو په موجودګئ کښې د کاڼړو استعمال ممنوع دې.
خو علامه جزولی غالبا د قاضی عیاض په حوالې سره بعض علماء کرامو رحمهم الله طرف ته نسبت کولو سره دا خبره نقل کړې ده چه:
﴿ لایجوز الوضوء، ولا الاستجمار بالماء العذب، لانه طعام، کما لا تزال النجاسة بالطعام ﴾ (٤)
یعنی په خوږو اوبو سره اودس او استنجاء جائز نه ده، ځکه چه دا اوبه مطعوم څیز دې. دا بعینه هم داسې ده لکه چه په یو مطعوم څیز سره نجاست لره نه شی زائل کولې
خو علامه حطاب مالکی رحمه الله فرمائی چه دا قول د غریب کیدو سره سره د اجماع هم مخالف دې. (۵) حاصل دا دې چه:
① د کومو صحابه کرامو او تابعینو رضی الله عنهم نه چه انکار ثابت دې، دهغوی تعداد ډیر کم او د مجوزینو تعداد ډیر زیات دې
② د کومو حضراتو نه چه انکار منقول دې، هغوی د څه مصلحت په بنیاد د دې نه انکار کړې دې، مثلا خلقو لره د غلو نه بچ کول، مطلقا انکار مقصود نه دې.

۱) المنتقی ج ۱ ص ۳۵۰، جامع الوضوء
۲) اوګورئ: عمدة القاری ج ۲ ص ۲۹۰
۳) مواهب الجلیل ج ۱ ص ٤۱۱، کتاب الطهارة، فصل فی اداب قضاء الحاجة
٤) پورته حواله
٥) پورته حواله

③ په هغوی کښې د ډېرو حضراتو نه رجوع ثابت ده.

④ په هغوی کښې د بعض طرف ته دا نسبت غلط دې. والله اعلم

**د اوبو او کاڼړو جمع کولو حکم** : په دې خبره باندې د ائمه اربعه اتفاق دې چه کاڼړی او اوبه جمع کول افضل دی؛ (۱)

پس په یو روایت کښې راغلې دی چه کله آیت کریمه ﴿ فِيهِ رِجَالٌ يُحِبُّونَ أَنْ يَتَطَهَّرُوا ﴾(۲) نازل شو نو رسول الله ﷺ د هغوی نه د دې تعریف د سبب په باره کښې تپوس اوکړو نو هغوی جواب ورکړو : ﴿ انا نتبع الحجارة بالماء ﴾(۳) یعنی مونږ د کاڼړو نه پس اوبه استعمالوو. والله اعلم

۱۴۹ : ﴿حَدَّثَنَا أَبُو الْوَلِيدِ هِشَامُ بْنُ عَبْدِ الْمَلِكِ قَالَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ أَبِي مُعَاذٍ وَاسْمُهُ عَطَاءُ بْنُ أَبِي مَيْمُونَةَ قَالَ سَمِعْتُ أَنَسَ بْنَ مَالِكٍ(۴) يَقُولُ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا خَرَجَ لِحَاجَتِهِ أَجِيءُ أَنَا وَغُلَامٌ مَعَنَا إِدَاوَةٌ مِنْ مَاءٍ يَعْنِي يَسْتَنْجِي بِهِ ﴾[۱۵۰، ۱۵۱، ۲۱۴، ۲۷۸]

---

۱) قال ابن عابدين : ثم اعلم أن الجمع بين الماء والحجر أفضل ويليه في الفضل الاقتصار على الماء ويليه الاقتصار على الحجر وتحصل السنة بالكل وإن تفاوت الفضل. رد المحتار ج ۱ ص ۲۴۸، كتاب الطهارة، مطلب : اذا دخل المستنجي في ماء قليل.

وقال الحطاب الرعيني المالكي: ومعنى الكلام المصنف (وندب جمع ماء وحجر، ثم ماء) أن الجمع بين الماء والحجر مستحب فإن لم يجمع ولا بد فالاقتصار على الماء أفضل من الاقتصار على الأحجار... مواهب الجليل ج ۱ ص ۴۱۱، كتاب الطهارة، فصل في اداب قضاء الحاجة.

وقال النووي : أما حكم المسألة فقال أصحابنا يجوز الاقتصار في الاستنجاء على الماء ويجوز الاقتصار على الاحجار والافضل أن يجمع بينهما. المجموع ج ۲ ص ۱۰۰، كتاب الطهارة قال المرداوي : الصحيح من المذهب: أن جمعهما مطلقا أفضل وعليه الأصحاب. (الانصاف ج ۱ ص ۱۰۴، باب الاستنجاء.

۲) التوبة : ۱۰۸

۳) رواه البزار في مسنده، انظر مجمع الزوائد ج ۱ ص ۲۱۲، كتاب الطهارة، باب الجمع بين الماء والحجر، رقم ۱۰۵۳. ونصب الرايه ج ۱ ص ۲۱۸، كتاب الطهارة، فصل في الاستنجاء، رقم ۹۱۵، والتلخيص الحبير ج ۱ ص ۳۲۳، كتاب الطهارة، باب الاستنجاء رقم ۱۵۱.

امام نووی رحمه الله وغیره د دې حدیث نه انکار کړې دې او وئیلې ئې دی چه د جمع بین الماء والحجارة په باره کښې هیڅ حدیث نه دې موجود. اوګورئ : المجموع ج ۲ ص ۱۰۰، خو علامه زیلعی او حافظ ابن حجر رحمهما الله فرمائی چه یا خو دا د امام نووی رحمه الله خطائی ده یا هغه په دې وجه انکار کړې دې چه دا حدیث ضعیف دې. اوګورئ : نصب الراية ج ۱ ص ۲۱۸، والتلخيص الحبير ج ۱ ص ۲۱۲

۴) قوله انس بن مالك رضى الله عنه : الحديث اخرجه البخارى ايضا في صحيحه ج ۱ ص ۲۷، كتاب الوضوء، باب من حمل معه الماء لطهوره، رقم ۱۵۱، وباب حمل العنزة مع الماء في الاستنجاء، رقم ۱۵۲، و ج ۱ ص ۳۵، كتاب الوضوء باب ما جاء في غسل البول، رقم ۲۱۷، و ج ۱ ص ۷۱، كتاب الصلاة، باب الصلاة الى العنزة، رقم ۵۰۰، و مسلم في صحيحه في كتاب الطهارة، باب الاستنجاء بالماء من التبرز، رقم ۶۲۰، ۶۲۱، والنسائي في سننه، في كتاب الطهارة، باب الاستنجاء بالماء رقم ۴۵و وابوداؤد في سننه، في كتاب الطهارة، باب في الاستنجاء بالماء رقم ۴۳.

## رجال الحديث

① **ابو الوليد هشام بن عبد الملك** : دا ابو الوليد هشام بن عبد الملك طيالسی باهلی بصری رحمه الله دي. د هغه حالات مختصر په كتاب الايمان باب علامة الايمان حب الانصار د لاندې او تفصيلا كتاب العلم باب اثم من كذب على النبى ﷺ د لاندې تير شوې دي. (١)

② **شعبة** : دا امام شعبه بن الحجاج عتكى بصرى رحمه الله دي. د هغه حالات په كتاب الايمان باب المسلم من سلم المسلمون من لسانه ويده د لاندې تير شوې دى. (٢)

③ **ابو معاذ عطاء بن ابى ميمونه** : دا ابو معاذ عطاء بن ابى ميمونه بصرى رحمه الله دي. د ابو ميمونه نوم منيع دې، دا ابو معاذ د سيدنا انس يا سيدنا عمران بن حصين رضي الله عنهما مولى وو.(٣) دې د سيدنا انس، سيدنا جابر بن سمره او سيدنا عمران بن حصين رضي الله عنهم نه روايت كوى، حافظ ذهبى رحمه الله فرمائى چه د هغه حديثونه كوم چه د عمران بن حصين رضي الله عنه نه روايت شوې دى، غالبا هغه مرسل دى، د دوى نه علاوه د حسن بصرى، وهب بن عمير، ابو برده بن ابى موسى اشعرى، ابورافع الصائغ او ابو سلمه بن عبد الرحمن بن عوف رحمهم الله نه هم روايت كوى.

د هغه نه په روايت كونكو كښې خالد الحذاء، روح بن القاسم، شعبه، حماد بن سلمه، عبد الله بن بكر مزنى او د هغه خپل ځوئې ابراهيم بن عطاء بن ابى ميمونه او روح بن عطاء بن ابى ميمونه رحمهم الله دى. (٤)

امام يحيى بن معين، امام ابو زرعه او امام نسائى رحمهم الله فرمائى : ﴿ثقة﴾(٥)

امام عجلى رحمه الله فرمائى : ﴿ثقة﴾(٦)

ابن حبان رحمه الله هغه په كتاب الثقات كښې ذكر كړې دې. (٧)

يعقوب بن سفيان رحمه الله هم د هغه توثيق كړې دې. (٨)

خو امام ابو حاتم رحمه الله فرمائى : ﴿صالح، لايحتج بحديثه﴾(٩)

امام ابو حاتم رحمه الله غالبا د هغه د قدرى كيدو د وجې نه ﴿لايحتج بحديثه﴾ فرمائيلې دى.

---

١) اوګورئ: كشف البارى ج ٢ ص ٣٨، وج ٤ ص ١٥٩
٢) كشف البارى ج ١ ص ٦٧٨
٣) تهذيب الكمال ج ٢٠ ص ١١٧، ١١٨
٤) د شيوخ او تلامذه د تفصيل دپاره اوګورئ: تهذيب الكمال ج ٢٠ ص ١١٨، وسير اعلام النبلاء ج ٦ ص ٤٧
٥) تهذيب الكمال ج ٢٠ ص ١١٨، والجرح والتعديل لابن ابى حاتم ج ٦ ص ٣٣٧، رقم ١٨٦٢
٦) معرفة الثقات للعجلى ج ٢ ص ١٣٧، رقم ١٢٤٢
٧) الثقات لابن حبان ج ٥ ص ٢٠٣
٨) تهذيب التهذيب ج ٧ ص ٢١٦
٩) الجرح والتعديل ج ٦ ص ٣٣٧، رقم ١٨٦٢

د هغه د قدری کیدو تصریح ډیرو خلقو کړې ده، پس حماد بن زید، امام بخاری، ابن سعد او جوزجانی رحمهم الله وغیره تصریح کړې ده ﴿کان یری القدر﴾(۱) یعنی هغه به د قدریه رائې لرله، بلکه جوزجانی رحمه الله خو تردې فرمائیلې دی چه ﴿کان راسا فی القدر﴾(۲) یعنی دا د قدریه د مشرانو نه وو، خو حافظ ذهبی رحمه الله فرمائی: ﴿بل قدری صغیر﴾(۳)
دا فی نفسه ثقه دې، لکه چه علماء کرامو د دې تصریح کړې دې، خو په هغوی کښې د قدری کیدو عیب وو، پس په دې وجه مضر نه دې چه نه دا داعیه وه او نه د هغه د مشرانو نه.
بیا په صحیح بخاری کښې خو صرف د هغه هم دا یو حدیث د استنجاء راغلې دې، بل حدیث نشته. (٤) لهذا دا د هغه د مذهب د تائید والا حدیث هم نه دې، هم دا وجه ده چه اصحاب سته کښې د امام ترمذی نه علاوه ټولو د هغه احادیث اخستلې دی. (۵) والله اعلم، رحمه الله تعالی رحمة واسعة

④ سیدنا انس رضی الله عنه: د سیدنا انس رضی الله عنه حالات په کتاب الإیمان، باب من الایمان ان یحب لاخیه مایحب لنفسه.... د لاندې تیر شوې دی. (۶)

**قوله: کَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا خَرَجَ لِحَاجَتِهِ أَجِيءُ أَنَا وَغُلَامٌ مَعَنَا إِدَاوَةٌ مِنْ مَاءٍ:** رسول الله صلی الله علیه وسلم چه به کله د حاجت دپاره وتلو نو زه او یو هلك به راغلو او مونږ سره به د اوبو یو لوښې وو.

﴿اداوة﴾: د څرمنې وړوکی لوښی ته وئیلې شی، چه په هغې کښې اوبه اخستلې شی. (۷)

﴿اجیئ انا وغلام﴾: دلته د غلام نه څوك مراد دې؟
د رسول الله صلی الله علیه وسلم په خدمت کونکو کښې سیدنا عبدالله بن مسعود، ابوهریره او جابر رضی الله عنهم مخکښې مخکښې وو، لهذا په دې کښې د هر یو احتمال دې.

خو په عبدالله بن مسعود رضی الله عنه مراد کولو کښې خو دا استبعاد دې چه دلته د ﴿غلام﴾ لفظ وئیلې شوې دې کوم چه د کم عمره هلك دپاره استعمالیږی، او ابن مسعود رضی الله عنه خو مشرانو صحابه کرامو رضی الله عنهم کښې دې.

---

۱) اوګورئ: تهذیب التهذیب ج ۷ ص ۲۱۶
۲) میزان الاعتدال ج ۳ ص ۷۶. رقم ۵۶۵۰
۳) پورته حواله
٤) هدی الساری ص ٤۲٤
۵) پورته حواله
۶) کشف الباری ج ۲ ص ٤
۷) اوګورئ: فتح الباری ج ۱ ص ۲۵۱

او؛ كه په هغه باندې مجازا د غلام اطلاق كړې شوې وى نو دا ممكنه ده چه غلام د خادم په معنى كښې واخستلې شى. (١) خو په دې كښې اشكال دا دې چه د دې روايت په دويم طريق كښې ﴿وغلام منا﴾(٢) الفاظ راغلې دى، د دې نه معلوميږى چه هغه انصارى وو، او سيدنا عبدالله بن مسعود رضي الله عنه مهاجر وو، مگر دا چه دلته هم دا تاويل اوكړې شى چه د ﴿منا﴾نه مراد د ﴿من الانصار﴾په ځائې ﴿من المسلمين﴾واخستلې شى.

خو ﴿منا﴾لره د ﴿من الانصار﴾په ځائې د ﴿من المسلمين﴾په معنى باندې محمول كولو كښې دا خرابى ده چه د اسماعيلى په روايت كښې د ﴿منا﴾په ځائې كښې د ﴿من الانصار﴾تصريح راغلې ده. (٣) كه د اسماعيلى دا روايت په تصرف باندې محمول نه كړې شى (چه راوى ﴿منا﴾اوريدلې وو هغه د دې معنى ﴿انصار﴾اوگڼړله، په دې وجه د ﴿منا﴾په ځائې ﴿من الانصار﴾روايت كړې دې نو د ﴿من المسلمين﴾تاويل نه چليږى.

بهر حال د سيدنا عبدالله بن مسعود رضي الله عنه باوجود د دې چه د رسول الله صلى الله عليه وسلم خادم او صاحب الوساده والمطهرة والنعلين كيدو، د سيدنا انس رضي الله عنه په دې روايت كښې د هغه مراد كيدل بعيد دى.

د امام ابوداؤد رحمه الله په يو روايت كښې د سيدنا ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دې؛

﴿كان النبى صلى الله عليه وسلم اذا اتى الخلاء اتيته بماء فى تور او ركوة، فاستنجى﴾(٤)

يعنى رسول الله صلى الله عليه وسلم چه به كله بيت الخلاء ته تشريف يوړلو نو ما به هغه ته په لوښى كښې اوبه يوړلې، رسول الله صلى الله عليه وسلم به پرې استنجاء كوله.

د دې حديث په بناء باندې د سيدنا انس رضي الله عنه په روايت كښې د سيدنا ابوهريره رضي الله عنه هم مراد كيدې شى، په داسې صورت كښې د ﴿منا﴾نه مراد ﴿من خدم النبى صلى الله عليه وسلم﴾مراد اخلى.

سيدنا ابوهريره رضي الله عنه لره د مراد كيدو تائيد د بخارى شريف د هغه حديث نه كيږى چه په هغې كښې سيدنا ابوهريره رضي الله عنه فرمائى : ﴿انه كان يحمل مع النبى صلى الله عليه وسلم اداوة لوضوئه وحاجته﴾(٥)

يعنى هغه به د رسول الله صلى الله عليه وسلم سره د اودس اوبه او د استنجاء اوبه اوړلې. او د غلام اطلاق به په معنى د خادم وى.

هم دغه شان په مسلم شريف كښې د سيدنا جابر رضي الله عنه اوږد حديث ذكر شوې دې، په هغې كښې دى؛ ﴿سرنا مع رسول الله صلى الله عليه وسلم حتى نزلنا واديا افيح، فذهب رسول الله صلى الله عليه وسلم يقضى حاجته، فاتبعته باداوة

---

١) فتح البارى ج ١ ص ٢٥١
٢) صحيح البخارى ج ١ ص ٢٧، كتاب الوضوء، باب من حمل معه الماء لطهوره، رقم ١٥١
٣) فتح البارى ج ١ ص ٢٥١
٤) سنن ابى داؤد، كتاب الطهارة، باب الرجل يدلك يده بالارض اذا استنجى، رقم ٤٥
٥) صحيح البخارى ج ١ ص ٥٤٤، كتاب مناقب الانصار، باب ذكر الجن، رقم ٣٨٦٠

من ماء ﴾(۱)

يعني مونږ د رسول الله ﷺ سره روان شو، تردې چه يو فراخه ميدان ته تلو سره مونږ پړاؤ اوکړو، رسول الله ﷺ د قضاء حاجت دپاره تشريف يوړلو، زه د اوبو يو لوښي اخستلو سره په هغه پسې روان شوم.

د دې روايت په بنياد وئيلې کيدې شی چه د سيدنا انس رضي الله عنه په روايت کښې د غلام نه مراد سيدنا جابر رضي الله عنه وی، خصوصا د دې وجې نه چه سيدنا جابر رضي الله عنه انصاری دې. والله اعلم

قوله: يعني يستنجي به: يعنی رسول الله ﷺ به په هغه اوبو سره استنجاء کوله. د ترجمة الباب صراحة اثبات هم د دې جملې نه دې.

مهلب رحمه الله د ابو محمد اصيلی رحمه الله نه نقل کړی دی چه د دې حديث نه په استنجاء بالماء باندې استدلال کول واضح نه دی، ځکه چه ﴿ يعني يستنجي به ﴾ د سيدنا انس رضي الله عنه قول نه دې، بلکه دا د ابو الوليد طيالسی قول دې، د دې قرينه دا ده چه په راروان باب کښې د ﴿ سليمان بن حرب عن شعبة ﴾ په طريق سره هم دا روايت راروان دې، په هغې کښې د ﴿ يستنجي به ﴾ الفاظ نشته، لهذا په دې حديث کښې چه کوم د اوبو اوړلو ذکر دې، ممکنه ده چه هغه د اودس دپاره وی. (۲)

هم دغه شان عبد الملك البونی رحمه الله دا وئيلې دی چه ﴿ يستنجي به ﴾ د عطاء بن ابی ميمونه ادراج دې. د سيدنا انس رضي الله عنه قول نه دې، لهذا دا مرسل دې، چه حجت نه دې. (۳)

خو حقيقت دا دې چه د استنجاء دا قول د سيدنا انس رضي الله عنه دې او د هغې فاعل رسول الله ﷺ دې، ګويا انس رضي الله عنه دا تصريح فرمائی چه رسول الله ﷺ د استنجاء دپاره اوبه اخستلې وې.

د دې خبرې صراحت په ډيرو روايتونو کښې شته!

پس په صحيح بخاری کښې د ﴿ محمد بن جعفر عن شعبة ﴾ په طريق کښې د ﴿ يستنجي بالماء ﴾ تصريح موجود ده. (٤)

هم دغه شان د ﴿ روح بن القاسم، عن عطاء بن ابی ميمونة عن انس ﴾ په طريق کښې د ﴿ كان النبی ﷺ اذا تبرز لحاجته اتيته بماء فيغسل به ﴾(۵) يعنی رسول الله ﷺ به چه کله د قضاء حاجت دپاره

---

۱) صحيح مسلم، كتاب الزهد والرقائق، باب حديث جابر الطويل، وقصة ابی اليسر، رقم ۷۵۱۸

۲) شرح صحيح البخاری لابن بطال ج ۱ ص ۲٤۰، ۲٤۱، كتاب الوضوء، باب الاستنجاء بالماء

۳) اوګورئ: فتح الباری ج ۱ ص ۲۵۱، وعمدة القاری ج ۲ ص ۲۸۷

٤) اوګورئ: صحيح البخاری ج ۱ ص ۲۷، كتاب الوضوء، باب حمل العنزة مع الماء فی الاستنجاء رقم ۱۵۲، هم دغه شان اوګورئ: صحيح مسلم، كتاب الطهارة، باب الاستنجاء بالماء من التبرز، ٦۲۰

۵) صحيح بخاری ج ۱ ص ۳۵، كتاب الوضوء، باب ما جاء فی غسل البول، رقم ۲۱۷، هم دغه شان اوګورئ صحيح مسلم، كتاب الطهارة، باب الاستنجاء بالماء من التبرز، رقم ٦۲۱

تشريف اوړلو نوما به هغه ته اوبه راوړلې، رسول الله ﷺ به هغه استعمالولې) الفاظ راغلې دي.
اسماعيلي د ﴿ابن مرزوق عن شعبة﴾ په طريق سره ﴿فانطلق انا وغلام من الانصار، معنا اداوة فيها ماء، يستنجي به منها النبي ﷺ﴾(١) (يعنى زه او د انصارو يو هلك روان شو، مونږ سره به لوښي وو، چه په هغې كښې به اوبه وې، رسول الله ﷺ به په هغې سره استنجاء كوله) الفاظ نقل كړې دى.
په مسلم شريف كښې د ﴿خالد الحذاء، عن عطاء، عن انس﴾ په طريق سره د ﴿فخرج علينا، وقد استنجى بالماء﴾ الفاظ راغلي دى. (٢)
د دې رواياتو د صراحت نه د اصيلي او د ابو عبدالملك البونى د خبرو مكمل ترديد كيږى او ثابتيږى چه استنجاء بالماء د رسول الله ﷺ نه ثابته ده او دا چه دا د انس ؓ قول دې، كوم چه هغه د رسول الله ﷺ عمل ته كتلو سره نقل فرمائيلې دې. والله اعلم
حاصل دا چه دلته صرف د لفظ ﴿يعنى﴾ اضافه خو د ابو الوليد هشام ده، باقى د استنجاء حكايت د سيدنا انس ؓ دې چه هغه د رسول الله ﷺ د استنجاء كولو عمل نقل فرمائيلې دې. والله اعلم

## ⑯ بَاب مَنْ حُمِلَ مَعَهُ الْمَاءُ لِطُهُورِهِ

**د مخكښې باب سره مناسبت** : د دې باب د مخكښې باب سره مناسبت بالكل واضح دې، په اول باب كښې د استنجاء بالماء ذكر دې، په دې باب كښې د حمل الماء للاستنجاء والطهور تذكره ده
**د ترجمة الباب مقصد** د امام بخارى رحمه الله د ترجمة الباب نه غرض دا دې چه كه د چا د طهارت اوبه يو سړې د خان سره يوسى نو په دې كښې هيڅ باك نشته، دغه شان اعانت او استعانت دواړه جائز دى.
كيدې شى چه امام بخارى رحمه الله دا وئيل غواړى چه كه يو سړې د استنجاء دپاره لاړ شى نو خان سره دې لرې اوبه يوسى، چه د استنجاء نه پس لاس وغيره وينځى.
حضرت شيخ الحديث رحمه الله فرمائى چه امام بخارى رحمه الله دلته دا بيان كړى دى چه انسان دې د خان سره اوبه يوسى چه زر طهارت حاصل كړى.
خو په دې باندې اشكال دا دې چه امام بخارى رحمه الله خو دا خبره په ﴿باب وضع الماء عند الخلاء﴾ كښې بيان كړې ده چه انسان دې په اوبو سره استنجاء اوكړى، دغه شان به ترجمه مكرر شى؟
حضرت شيخ الحديث رحمه الله فرمائى چه دا ترقى ده د ادنى نه اعلى ته، ځكه چه امام بخارى رحمه الله خو اول دا بيان كړې وو چه كه يو سړې د قضاء حاجت دپاره لاړشى نو د بيت

---
١) فتح البارى ج ١ ص ٢٥١
٢) صحيح مسلم، كتاب الطهارة، باب الاستنجاء بالماء من التبرز، رقم ٦١٩

الخلاء نه بهر دې اوبه کيږدی، چه زر تر زره فراغت حاصل کړی، د دې نه روستو ترقی کوی او وائی چه غوره دا ده چه انسان د خپل ځان سره اوبه يوسی، چه هم هلته طهارت حاصل کړی. (۱) والله اعلم

**قوله: وَقَالَ أَبُو الدَّرْدَاءِ:** سيدنا ابو الدرداء رضي الله عنه فرمائی!

**سيدنا ابو الدرداء رضي الله عنه:** د هغه نوم عويمر يا عامر دې، د پلار په نوم کښې ئې اختلاف دې، مالك، عامر، ثعلبه، عبدالله، زيد، دا مختلف اقوال دی. (۲)

امام اصمعی رحمه الله فرمائی چه د سيدنا ابو الدرداء رضي الله عنه نوم عامر بن مالك دې، خلقو به هغه ته عويمر وئيلو. (۳)

عمرو بن علی رحمه الله فرمائی چه ما د سيدنا ابو الدرداء رضي الله عنه په اولاد کښې د چا نه تپوس اوکړو نو هغوی اووې چه د هغه نوم عامر بن مالك دې، عويمر ئې لقب دې. (۴)

هغه د رسول الله صلى الله عليه وسلم نه علاوه د سيدنا زيد بن ثابت او ام المومنين سيده عائشه صديقه رضي الله عنها نه روايت کوی.

د هغه نه په روايت کونکو کښې سيدنا انس، سيدنا فضاله بن عبيد، سيدنا ابن عباس، سيدنا ابو امامه، سيدنا عبدالله بن عمرو رضي الله عنهم وغيره لوئې لوئې صحابه کرام دی. د هغوی نه علامه ترې په تابعينو کښې جبير بن نفير، زيد بن وهب، ابو ادريس خولانی، علقمه بن قيس، قبيصه بن ذؤيب، سعيد بن المسيب، عطاء بن يسار، معدان بن ابی طلحه د ابو الدرداء رضي الله عنه بيبی ام الدرداء او ځوئې بلال بن ابی الدرداء رحمهم الله دی. (۵)

د سيدنا عثمان رضي الله عنه په دور کښې د دمشق قاضی وو. (۶)

سيدنا ابو الدرداء رضي الله عنه د بدر په موقع باندې اسلام قبول کړو، د احد په موقع باندې جهاد کښې شريك وو، د احد په موقع ئې په ځانله ډير زبردست کردار ادا کړو. رسول الله صلى الله عليه وسلم په دې موقع اوفرمائيل: ﴿نعم الفارس عويمر﴾(۷)

د رسول الله صلى الله عليه وسلم په دور کښې د قران کريم په جمع کونکو کښې سيدنا ابو الدرداء رضي الله عنه هم وو (۸)

---

۱) اوګورئ: الكنز المتوارى فى معادن لامع الدرارى ج ۳ ص ۳۵

۲) اوګورئ: تهذيب الكمال ج ۲۲ ص ۴۶۹، ۴۷۰، وسير اعلام النبلاء ج ۲ ص ۳۳۵

۳) تهذيب الكمال ج ۲۲ ص ۴۷۰،

۴) پورته حواله

۵) د شيوخ او تلامذه دپاره اوګورئ: تهذيب الكمال ج ۲۲ ص ۴۷۰ تا ۴۷۲، وسير اعلام النبلاء ج ۲ ص ۳۳۶

۶) سير اعلام النبلاء ج ۲ ص ۳۳۶

۷) تهذيب الكمال ج ۲۲ ص ۴۷۲، ۴۷۳، وسير اعلام النبلاء ج ۲ ص ۲۳۸، ۲۳۹

۸) سير اعلام النبلاء ج ۲ ص ۲۳۹

د هغه د اسلام قبلولو واقعه اصحاب سیر لیکلي ده چه هغه به په خپل کور کښې د یو بت عبادت کولو، سیدنا عبد الله بن رواحه او سیدنا محمد بن مسلمه رضی الله عنهما د هغه کور ته لاړل او هغه بت ئې مات کړو.
چه کله ابوالدرداء رضی الله عنه کور ته راغلو نو د بت ټکړې به ئې راجمع کولې او وئیل به ئې اې بته! تا خپله دفاع ولې اونکړه؟ ام الدرداء رضی الله عنها اوئیل که دې بت چاته ضرر یا فائده رسولې شوې یا ئې د بل چا دفاع کولې شوې نو د ځان دفاع به ئې هم کړې وې.
ابوالدرداء رضی الله عنه خپلې بیبی ته د غسل د اوبو تیارولو حکم اوکړو، غسل کولو نه پس ئې جامې واغوستلې او رسول الله ﷺ ته راغلو، سیدنا عبدالله بن رواحه رضی الله عنه د هغه په لیدو باندې رسول الله ﷺ ته عرض اوکړو چه یا رسول الله! دې زمونږ په تلاش کښې راروان دې.
رسول الله ﷺ اوفرمائیل. نه! دې د مسلمانیدو دپاره راغلې دې، زما رب ماسره د هغه د مسلمانیدو وعده کړې ده، پس هغه مسلمان شو. (۱)

ابن اسحاق رحمه الله فرمائی چه صحابه کرام رضی الله عنهم به فرمائیل: ﴿ اتبعنا للعلم والعمل ابو الدرداء ﴾ یعنی په مونږ کښې د علم او عمل زیاته تابعداری کونکې سیدنا ابو الدرداء رضی الله عنه دې. (۲)
سیدنا معاذ بن جبل رضی الله عنه فرمائی چه علم د څلور کسانو نه حاصل کړئ، یو د عویمر ابوالدرداء، دویم د سلمان نه، دریم د عبدالله بن مسعود نه او څلورم د عبدالله بن سلام رضی الله عنهم نه. (۳)

سیدنا عبدالله بن مسعود رضی الله عنه فرمائی چه په خلقو کښې درې کسان علماء دی، یو په عراق کښې دې او یو په شام کښې دې او یو په مدینه کښې! د عراق والا عالم نه مراد خپله عبدالله بن مسعود رضی الله عنه دې او د شام د عالم نه مراد سیدنا ابو الدرداء رضی الله عنه دې. فرمائی چه د شام والا عالم د عراق والا عالم محتاج دی او بیا دا دواړه علماء د مدینې د عالم سیدنا علی رضی الله عنه د علم محتاج دی (٤)

سیدنا ابو ذر رضی الله عنه به سیدنا ابو الدرداء رضی الله عنه ته فرمائیل: ﴿ ماحملت ورقاء ولا اظلت خضراء اعلم منك یا ابا الدرداء ﴾ یعنی اې ابو الدرداء! ستا نه لوئې عالم نه زمکې اوچت کړې دې او نه پرې اسمان سورې کړې دې. (۵)
مسروق رحمه الله فرمائی چه ما د صحابه کرامو رضی الله عنهم علمونه په شپږو کسانو کښې منحصر بیا موندل! سیدنا عمر، سیدنا علی، سیدنا ابی، سیدنا زید، سیدنا ابو الدرداء او سیدنا ابن مسعود رضی الله عنهم، بیا د دې شپږو واړو علمونه په دوه کسانو یعنی سیدنا علی او سیدنا ابن

---

۱) سیر اعلام النبلاء ج ۲ ص ۲٤۰، ۲٤۱
۲) پورته حواله
۳) سیر اعلام النبلاء ج ۲ ص ۳٤۲، ۳٤۳
٤) سیر اعلام النبلاء ج ۲ ص۳٤۳
۵) پورته حواله

مسعود رضي الله عنه کښې راجمع شوې دی. (۱)

سیدنا عبدالله بن عمر رضي الله عنهما به فرمائیل : ﴿ حدثونا عن العاقلين ﴾ یعنی د دوه عقل مندو نه روایت بیانوئ! تپوس اوشو چه د دوه عقل مندو نه څوک مراد دی؟ وې فرمائیل : سیدنا معاذ او سیدنا ابو الدرداء رضي الله عنهما. (۲) رسول الله ﷺ د هغه په باره کښې فرمائی : ﴿ حكيم امتي عويمر ﴾(۳) یعنی زما د امت حکیم عویمر دې.

د سیدنا ابو الدرداء رضي الله عنه نه د حکمت او نصیحت ډیر اقوال منقول دی، د هغې د تفصیلاتو دپاره دې تاریخ د ابن عساکر او سیر اعلام النبلاء طرف ته رجوع اوکړې شی. (٤)

د سیدنا ابو الدرداء رضي الله عنه نه یو سل یو کم اتیا (۱۷۹) احادیث روایت شوې دی، چه په هغې کښې دوه احادیث متفق علیه دی، په درې احادیثو کښې امام بخاری او په اته احادیثو کښې امام مسلم متفرد دی. (۵)

سیدنا ابو الدرداء رضي الله عنه په ۳۲ هجری کښې وفات شوې دې. (۶) رضی الله عنه وارضاه

**قوله:** أَلَيْسَ فِيكُمْ صَاحِبُ النَّعْلَيْنِ وَالطَّهُورِ وَالْوِسَادِ؟: آیا په تاسو کښې د نعلین، اوبو او تکیه والا نشته؟

دا جمله سیدنا ابو الدرداء رضي الله عنه علقمه بن قیس رحمه الله ته فرمائیلې وه، علقمه د کوفې نه شام ته لاړو، هلته ئې د سیدنا ابو الدرداء رضي الله عنه سره ملاقات اوشو، هغه ترې تپوس اوکړو چرته نه راغلې ئې؟ عرض ئې اوکړو زه د کوفې یم، په دې موقع باندې هغوی دا ارشاد اوفرمائیلو؛ (۷) د دې نه مراد سیدنا عبدالله بن مسعود رضي الله عنه دې.

ابن مسعود رضي الله عنه ته صاحب النعلین په دې وجه وئیلې شی چه هغه به د رسول الله ﷺ سره وو، چه کله به ئې نعلین شریفین ویستلې، هغه به ئې اوچتولو نه پس کیخودلې او چه کله به روان شو نو ورته به ئې واچولې، هم دغه شان به ئې د رسول الله ﷺ د اودس اوبه راوړلې او اودس به ئې ورته کولو او د رسول الله ﷺ تکیه به ئې ځان سره ساتله، هم په دې وجه ورته صاحب الطهور والوساد هم وئیلې شی. (۸)

---

۱) پورته حواله

۲) پورته حواله

۳) رواه الطبرانی فی المعجم الاوسط. كذا فی جامع الاحادیث للسیوطی ج ٤ ص ۲۳٤، رقم ۱۱۳۰۲، ورواه الطبرانی فی مسند الشامیین ج ۲ ص ۸۸، رقم ۹۶۷

٤) اوګورئ: تاریخ دمشق لابن عساکر، ٤۷/ ۹۳ تا ۲۰۱، رقم ٥٤٦٤، وسیراعلام النبلاء ج ۲ ص ۳۳٥، ۳٥۳

٥) سیر اعلام النبلاء ج ۲ ص ۳۳۷، وخلاصة الخزرجی ص ۲۹۹، وتهذیب الاسماء واللغات ج ۲ ص ۲۲۸

٦) الکاشف ج ۲ ص ۱۰۳، رقم ٤۳۲۲

۷) اوګورئ : صحیح البخاری ج ۱ ص ٥۲۹ و٥۳۱، كتاب فضائل اصحاب النبی ﷺ (المناقب) باب مناقب عمار وحذیفه رضي الله عنهما، رقم ۳۷٤۲، ۳۷٤۳، وباب مناقب عبدالله بن مسعود رضي الله عنه رقم ۳۷٦۱

۸) اوګورئ فتح الباری ج ۷ ص ۹۱، كتاب المناقب، باب مناقب عمار وحذیفه رضي الله عنهما

په بعض نسخو کښې د ﴿ الوساد ﴾ په ځائې ﴿ السواد ﴾ په تقدیم د سین سره راغلې دې. (۱) د دې معنی د راز ده، هغه ته صاحب السواد په دې وجه وئیلې شی چه هغه د رسول الله ﷺ یو قسم راز دار وو، رسول الله ﷺ ارشاد فرمائیلې وو! ﴿ اذنك على ان يرفع الحجاب، وان تسمع سوادى، حتى انهاك ﴾ (۲)
یعنی ماته ستا د راتلو د اجازت علامت دا دې چه پرده اوچته وی او ته زما د راز خبرې واورې، تردې چه زه تا منع کړم.
امام بخاری رحمه الله د لفظ ﴿ الطهور ﴾ نه خپله مدعا اخذ کړې ده او دې خبرې طرف ته ئې اشاره کړې ده چه رسول الله ﷺ به د استنجاء دپاره د خپل ځان سره اوبه اوړلې. والله اعلم

۱۵۰: ﴿حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ قَالَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ أَبِي مُعَاذٍ هُوَ عَطَاءُ بْنُ أَبِي مَيْمُونَةَ قَالَ سَمِعْتُ أَنَسًا (۳) يَقُولُ كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا خَرَجَ لِحَاجَتِهِ تَبِعْتُهُ أَنَا وَغُلَامٌ مِنَّا مَعَنَا إِدَاوَةٌ مِنْ مَاءٍ﴾ [ر: ۱۴۹]

## رجال الحديث

① **سلیمان بن حرب**: دا ابو ایوب سلیمان بن حرب بن بجیل ازدی بصری رحمه الله دې، د هغه حالات په کتاب الایمان کښې د باب من کره ان یعود فی الکفر کما یکره ان یلقی فی النار من الایمان ... د لاندې تیر شوې دی. (٤)

② **شعبه**: دا امام شعبه بن الحجاج عتکی بصری رحمه الله دې. د هغه حالات په کتاب الایمان کښې د باب المسلم من سلم المسلمون من لسانه ویده د لاندې تیر شوې دی. (۵)

③ **سیدنا ابو معاذ عطاء بن ابی میمونه**: د هغه حالات هم په مخکښې باب باب الاستنجاء بالماء کښې تیر شوې دی.

④ **سیدنا انس رضی الله عنه**: د سیدنا انس رضی الله عنه حالات هم په کتاب الایمان باب من الایمان ان یحب لاخیه مایحب لنفسه د لاندې تیر شوې دی. (٦)

**قوله**: كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا خَرَجَ لِحَاجَتِهِ تَبِعْتُهُ أَنَا وَغُلَامٌ مِنَّا

---

۱) پورته حواله
۲) صحیح مسلم، کتاب السلام، باب جواز جعل الاذن رفع الحجاب، او غیره من العلامات، رقم ۵۶۶۶
۳) قد مر تخریجه هذا الحدیث فی الباب السابق
٤) کشف الباری ج ۲ ص ۱۰۵
۵) کشف الباری ج ۱ ص ۶۷۸
٦) کشف الباری ج ۲ ص ٤

مَعَنَا إِدَاوَةٌ مِنْ مَاءٍ: رسول الله ﷺ چه به کله د خپل قضاء حاجت دپاره تشریف اوړلو نو ړ د او زمونږ په انصار کښې یو هلك به هغه پسې شو. مونږ سره به د اوبو لوښي وو. مقصود د استنجاء او طهارت اوبه دی. چه مونږ به هغه اوړلې او رسول الله ﷺ به هغه استعمالولې، چه د هغې تصریح په وړاندې روایت کښې موجود ده، په شاته روایت کښې هم تفصیل تیر شوې دې.

دلته دا خبره هم یاد ساتئ چه د اسماعیلی په یو طریق کښې د ﴿تبعته وانا غلام﴾ الفاظ راغلې دی، خو خپله اسماعیلی دې ته غلط وئیلې دی او فرمائی چه صحیح ﴿تبعته انا وغلام﴾ الفاظ دی. (۱)

## ⑭ بَاب حَمْلِ الْعَنَزَةِ مَعَ الْمَاءِ فِي الِاسْتِنْجَاءِ

**د مخکښې باب سره مناسبت**: د دې باب د مخکښې باب سره مناسبت بالکل واضح دې. په دواړو بابونو کښې د استنجاء بالماء ذکر دې.

**مقصد د ترجمة الباب**: امام بخاری رحمه الله دا بیانول غواړی چه که څوك د استنجاء دپاره ځی او د اوبو سره سره همسا یا نیزه ځان سره یوسی نو دا د سنت نه ثابت دی، ځکه چه رسول الله ﷺ به چه کله د قضاء حاجت دپاره تشریف اوړلو نو سیدنا انس رضی الله عنه او د هغه سره یو بل هلك به د اوبو لوښې او نیزه د ځان سره اوړله.

**د لفظ "عنزة" تحقیق**: ﴿عنزة﴾ د عین او نون په فتحې سره دې، وړې نیزې ته وئیلې شی، هم دغه شان هرهغه همسا ته وائی چه په هغې باندې د اوسپنې وغیره سوکه جوړه شوې وی.(۲)

خوارزمی رحمه الله لیکلې دی چه دا نیزه نجاشی رحمه الله رسول الله ﷺ ته د هدیه په طور رالیږلې وه. رسول الله ﷺ چه به کله بهر مونځ کولو نو دا به ئې مخې ته ښخه کړه، د رسول الله ﷺ نه روستو د خلفاء طرف ته دا منتقل کیده. (۳)

ابن سعد رحمه الله لیکلې دی چه د رسول الله ﷺ په خدمت کښې نجاشی رحمه الله درې نیزې لیږلې وې. یوه رسول الله ﷺ خپل ځان سره اوساتله، یوه ئې سیدنا علی او بله ئې سیدنا عمر رضی الله عنهما ته ورکړې وه (٤)

---

۱) فتح الباری ج ۱ ص ۲۵۲

۲) فتح الباری ج ۱ ص ۲۵۲، وعمدة القاری ج ۲ ص ۲۹۲

۳) مفاتیح العلوم للخوارزمی ص ۷۲، ۷۳، الفصل السابع فی الفاظ یکثر ذکرها فی الفتوح.

٤) الطبقات لابن سعد ج ۳ ص ۲۳۵

۱۵۱: ﴿حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ قَالَ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ قَالَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ عَطَاءِ بْنِ أَبِي مَيْمُونَةَ سَمِعَ أَنَسَ بْنَ مَالِكٍ (١) يَقُولُ كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَدْخُلُ الْخَلَاءَ فَأَحْمِلُ أَنَا وَغُلَامٌ إِدَاوَةً مِنْ مَاءٍ وَعَنَزَةً يَسْتَنْجِي بِالْمَاءِ... تَابَعَهُ النَّضْرُ وَشَاذَانُ عَنْ شُعْبَةَ الْعَنَزَةُ عَصًا عَلَيْهِ زُجٌّ﴾ [ر: ۱۴۹]

## رجال الحديث

① **محمد بن بشار**: دا مشهور محدث محمد بن بشار بن عثمان عبدى بصرى رحمه الله دې، د هغه لقب بندار دې، د هغه حالات په كتاب العلم كښ د باب ما كان النبى ﷺ يتخولهم بالموعظة والعلم كيلا ينفروا د لاندې تير شوې دى. (٢)

② **محمد بن جعفر**: دا هم مشهور محدث ابو عبد الله محمد بن جعفر هذلى رحمه الله دې، د غندر په لقب سره معروف دې، د هغه حالات په كتاب الايمان د باب ظلم دون ظلم د لاندې تير شوې دى. (٣)

③ **شعبه**: د امام شعبه بن الحجاج رحمه الله حالات په كتاب الايمان باب المسلم من سلم المسلمون من لسانه ويده د لاندې تير شوې دى. (٤)

④ **عطاء بن ابى ميمونه**: د هغه حالات اوس تير باب سره پيوست باب باب الاستنجاء بالماء كښ تير شوې دى.

⑤ **سيدنا انس بن مالك رضي الله عنه**: د سيدنا انس رضي الله عنه حالات هم په كتاب الايمان باب من الايمان ان يحب لاخيه ما يحب لنفسه د لاندې تير شوې دى. (٥)

**قوله**: <u>كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَدْخُلُ الْخَلَاءَ فَأَحْمِلُ أَنَا وَغُلَامٌ إِدَاوَةً مِنْ مَاءٍ وَعَنَزَةً يَسْتَنْجِي بِالْمَاءِ﴾</u>: رسول الله ﷺ به بيت الخلاء ته تلو، ما او يو هلك به د اوبو لوښې او نيزه واخستله او ورپسې به تلو، په اوبو سره به رسول الله ﷺ استنجاء كوله.

د خلاء يا بيت الخلاء نه مراد دلته فراخه ميدان دې. (٦)

**د نيزې اخستلو حكمتونه**. د نيزې اخستلو ډير مقاصد كيدې شي!

---

١) د دې حديث تخريج د مخكښ باب سره پيوست د باب الاستنجاء بالماء د لاندې تير شوې دې.
٢) كشف البارى ج ٣ ص ٢٥٨
٣) كشف البارى ج ٢ ص ٢٥٠
٤) كشف البارى ج ١ ص ۶٧٨
٥) كشف البارى ج ٢ ص ٤
٦) فتح البارى ج ١ ص ٢٥٢

① كيدې چه په دې وجه ئې اوړى چه دا ښخه كړې شى او په دې باندې كپړه اچولو سره پرده او كړې شى.
② كيدې شى چه كه د كانړى وغيره د ماتولو ضرورت پيښ شى يا زمكه كنستلو سره نرمول وى نو دا عمل اوكړې شى.
③ دا هم ممكنه ده چه مدينه منوره كثير الهوام والحشرات وه، كيدې شى چه د مار، لړم وغيره نه د تحفظ په غرض سره ئې ځان سره ساتله.
④ دا هم امكان دې چه د رسول الله ﷺ عادت مباركه د استنجاء نه پس اودس كولو سره د تحية الوضوء كولو وو، ممكنه ده چه د سترې د جوړولو دپاره ئې اوړله. (١) والله سبحانه وتعالى اعلم

**قوله: تَابَعَهُ النَّضْرُ وَشَاذَانُ عَنْ شُعْبَةَ:** نضر بن شميل او شاذان اسود بن عامر د شعبه نه روايت كولو سره د محمد بن جعفر متابعت كړې دې.

د دې دواړو متابعتونو نه په ظاهره كښې تائيد او تقويت مطلوب دې. (٢) په ﴿تابعه﴾ كښې د مفعول ضمير د محمد بن جعفر رحمه الله طرف ته راجع دې. (٣)

**د دواړو متابعتونو تخريج:** په دې دواړو متابعتونو كښې د اولنۍ متابعت تخريج امام نسائى رحمه الله كړې دې؛ ﴿أَخْبَرَنَا إِسْحَاقُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، قَالَ: أَخْبَرَنَا النَّضْرُ، قَالَ: حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ عَطَاءِ بْنِ أَبِي مَيْمُونَةَ، قَالَ: سَمِعْتُ أَنَسَ بْنَ مَالِكٍ، يَقُولُ: كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا دَخَلَ الْخَلَاءَ أَحْمِلُ أَنَا وَغُلَامٌ مَعِي نَحْوِي إِدَاوَةً مِنْ مَاءٍ فَيَسْتَنْجِي بِالْمَاءِ﴾ (٤)

يعنى چه كله به رسول الله ﷺ خلا ته داخليدو نو زه او زما په شان يو هلك به د اوبو لوښې ځان سره اوړلو، رسول الله ﷺ به په اوبو سره استنجاء فرمائيله.

د دويم متابعت تخريج خپله امام بخارى رحمه الله په صحيح بخارى كښې كړې دې؛

﴿حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ حَاتِمِ بْنِ بَزِيعٍ قَالَ حَدَّثَنَا شَاذَانُ عَنْ شُعْبَةَ عَنْ عَطَاءِ بْنِ أَبِي مَيْمُونَةَ قَالَ سَمِعْتُ أَنَسَ بْنَ مَالِكٍ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا خَرَجَ لِحَاجَتِهِ تَبِعْتُهُ أَنَا وَغُلَامٌ وَمَعَنَا عُكَّازَةٌ أَوْ عَصًا أَوْ عَنَزَةٌ وَمَعَنَا إِدَاوَةٌ فَإِذَا فَرَغَ مِنْ حَاجَتِهِ نَاوَلْنَاهُ الْإِدَاوَةَ﴾ (٥)

يعنى رسول الله ﷺ به چه كله د قضاء حاجت دپاره تشريف يوړلو نو زه او يو هلك به په رسول الله ﷺ پسې شاته تلو، مونږ سره به لختـه، همسا يا نيزه وه او مونږ سره به د اوبو

---

١) اوګورئ فتح البارى ج ١ ص ٢٥٢، وعمدة القارى ج ٢ ص ٢٩٣
٢) اوګورئ شرح الكرمانى ج ٢ ص ١٩٨
٣) اوګورئ فتح البارى ج ١ ص ٢٥٢، وعمدة القارى ج ٢ ص ٢٩٣
٤) سنن النسائى، كتاب الطهارة، باب الاستنجاء بالماء، رقم ٤٥
٥) صحيح البخارى ج ١ ص ٧١، كتاب الصلاة، باب الصلاة الى العنزة، رقم ٥٠٠

لوښې وو، چه کله به د حاجت نه فارغ شو نو مونږ به رسول الله ﷺ ته لوښې ورکړو.

**نضر بن شميل**: دا مشهور محدث او نحوی نضر بن شميل بصری رحمه الله دې، ابو الحسن ئې کنيت دې. (۱)

هغه د، حميد الطويل، عبدالله بن عون، هشام بن عروه، هشام بن يونس، يونس بن ابی اسحاق. ابن جريج. اسرائيل. شعبه. حماد بن سلمه، سعيد بن ابی عروبه رحمهم الله وغيره حضراتو نه روايت کوی.

د هغه نه په روايت کونکو کښې يحيی بن يحيی نيشاپوری، اسحاق بن راهويه، يحيی بن معين، علی بن المدينی، بيان بن عمرو، عبدالله بن عبدالرحمن الدارمی، محمود بن غيلان رحمهم الله وغيره حضرات دی. (۲)

امام يحيی بن معين رحمه الله فرمائی: ﴿ثقة﴾ (۳)

امام علی بن المدينی رحمه الله فرمائی: ﴿من الثقات﴾ (٤)

امام ابو حاتم رحمه الله فرمائی: ﴿ثقة صاحب سنة﴾ (۵)

ابن المبارک رحمه الله فرمائی: ﴿ذاك احد الاحدين، لم يكن احد من اصحاب الخليل يدانيه﴾ (۶)

يعنی هغه په ناياب خلقو کښې دې؛ د خليل بن احمد په شاګردانو کښې څوک د هغه په خوا هم نه دی تير شوی.

عباس بن مصعب رحمه الله فرمائی: ﴿كان النضر بن شميل إماما فی العربية و الحديث و هو أول من أظهر السنة بمرو و جميع خراسان، وكان أروى الناس عن شعبة، و أخرج كتبا كثيرة لم يسبقه إليها أحد، وكان ولی قضاء مرو﴾ (۷)

يعنی نضر بن شميل د عربيت او حديث امام وو، صرف هم هغه د ټولو نه اول د مرو او خراسان په ټولو علاقو کښې د صحيح عقائد اظهار اوکړو، د امام شعبه رحمه الله نه په روايت کونکو کښې د ټولو نه مخکښې وو، هغه ډير داسې کتابونه ليکلې دی کوم چه د هغه نه مخکښې چا هم نه دی ليکلې، هغه د مرو قاضی هم پاتې شوې دې.

ابوبکر بن منجويه رحمه الله فرمائی: ﴿وكان من فصحاء الناس وعلمائهم بالأدب وأيام الناس﴾ (۸)

---

۱) اوګورئ: تهذيب الکمال ج ۲۹ ص ۳۷۹، ۳۸۰
۲) د شيوخ او تلامذه د تفصيل دپاره اوګورئ: تهذيب الکمال ج ۲۹ ص ۳۸۰ تا ۳۸۲
۳) تهذيب الکمال ج ۲۹ ص ۳۸۲
٤) پورته حواله
۵) پورته حواله
۶) تهذيب الکمال ج ۲۹ ص ۳۸۳
۷) پورته حواله
۸) تهذيب الکمال ج ۲۹ ص ۳۸٤

یعنی په خلقو کښې فصیح او د ادب او تاریخ د علماء نه وو.

ابن سعد رحمه الله فرمائی ﴿کان ثقة، ان شاء الله، صاحب حدیث﴾(۱)

ابن حبان هغه په کتاب الثقات کښې ذکر کړې دې. (۲)

خو امام عقیلی رحمه الله هغه په کتاب الضعفاء کښې ذکر کړې دې. (۳)

خو حافظ ذهبی رحمه الله فرمائی: ﴿ثقة، حجة، محتج به فی الصحاح، ولولا ان العقیلی ذکره ما ذکرته﴾(٤)

یعنی دې ثقه او حجت دې، په صحاح کښې د هغه نه احتجاج کړې شوې دې، که هغه عقیلی د هغه تذکره په خپل کتاب الضعفاء کښې نه وې کړې نو ما به د هغه ذکر په دې خپل کتاب کښې نه کولو.

د هغه نه اصحاب د اصول سته احادیث اخستلې دی. (۵) د هغه وفات د ذوالحجه په اخری ورځ په ۲۰۳ هجری کښې شوې دې او د محرم په اولنی تاریخ باندې دفن کړې شو. (۶) رحمه الله رحمة واسعة

**شاذان**: دا اسود بن عامر نزیل بغداد دې، ابو عبدالرحمن ئې کنیت دې، شاذان ئې لقب دې.(۷) هغه د شعبه، حماد بن سلمه، حماد بن زید، سفیان ثوری، حسن بن صالح او جریر بن حازم رحمهم الله وغیره ډیرو حضراتو نه روایت حدیث کوی.

د هغه نه په روایت کونکو کښې امام احمد بن حنبل، ابوبکر بن شیبه، عثمان بن ابی شیبه، علی بن المدینی، ابوثور، عمرو الناقد، ابو کریب، امام دارمی او حارث بن ابی اسامه رحمهم الله وغیره حضرات دی (۸)

امام ابن معین رحمه الله فرمائی: ﴿لابأس به﴾(۹)

امام ابن المدینی رحمه الله فرمائی: ﴿ثقة﴾(۱۰)

امام ابو حاتم رحمه الله فرمائی: ﴿صدوق، صالح﴾(۱۱)

---

۱) الطبقات لابن سعد ج ۷ ص ۳۷۳
۲) کتاب الثقات ج ۹ ص ۲۱۲
۳) الضعفاء الکبیر للعقیلی ج ٤ ص ۲۹۳، رقم الترجمة ۱۸۸۸
٤) میزان الاعتدال ج ٤ ص ۲۵۸، رقم ۹۰۶۷
۵) تهذیب الکمال ج ۲۹ ص ۳۸٤
۶) پورته حواله
۷) تهذیب الکمال وتعلیقاته ج ۳ ص ۲۲۶، رقم ۵۰۳، والجرح والتعدیل ج ۲ ص ۲۲۰، رقم ۱۰۷۹
۸) د شیوخ او تلامه د تفصیل دپاره اوګورئ: تهذیب الکمال ج ۳ ص ۲۲۶، ۲۲۷
۹) تاریخ الدارمی ص ۱۳۱، رقم ٤۱۵
۱۰) الجرح والتعدیل ج ۲ ص ت۲۲۱، رقم ۱۰۷۹
۱۱) الجرح والتعدیل ج ۲ ص ۲۲۰، رقم ۱۰۷۹

ابن سعد رحمه الله فرمائی : ﴿ صالح الحدیث ﴾(۱)
ابن حبان رحمه الله هغه په کتاب الثقات کښې ذکر کړې دی. (۲)
حافظ ذهبی رحمه الله فرمائی : ﴿ شامی، ثقة ﴾(۳)
د هغه وفات په ۲۰۸ هجری کښې شوې دې (٤) رحمه الله رحمة واسعة
**قوله: اَلْعَنَزَةُ عَصًا عَلَيْهِ زُجٌّ:** عنزه هغه همساء ده، چه د هغې په سر باندې د اوسپنې نوکه لګیدلې وی. (۵)
دا عبارت په اکثر نسخو کښې نشته صرف د کریمه په نسخه کښې دې. (۶)

## ⑱ بَابُ النَّهْيِ عَنْ الِاسْتِنْجَاءِ بِالْيَمِينِ

**د مخکښې باب سره مناسبت :** د دې باب د مخکښې باب سره مناسبت بالکل واضح دې چه دا ټول ابواب د امور استنجاء سره متعلق دی.(۷)
**د ترجمة الباب مقصد :** د ترجمة الباب مقصد واضح دې چه په ښی لاس سره د استنجاء ممانعت بیانول مقصود دی.

**د امام بخاری رحمه الله تعبیر :** امام بخاری رحمه الله ﴿ النهی عن الاستنجاء ﴾ اوفرمائیل، دا ئې او نه وئیل چه دا استنجاء تحریمی ده یا تنزیهی ده، ځکه چه د امام بخاری رحمه الله مخکښې دا خبره نه ده واضحه شوې. یا ئې په دې وجه نه ده متعین کړې چه د نهی نه مراد خو تحریم دې، پس فرمائی: ﴿ باب نهی النبی ﷺ علی التحریم، وکذلک امره ﴾(۸)
خو د دې نه د نهی تنزیهی مراد کولو دپاره قرینه صارفه ضرورت دې، او هغه نشته، په دې وجه هغوی مطلقا د نهی تعبیر اوفرمائیلو، په تحریم یا تنزیه کښې ئې د څه تعیین نه دې کړې. (۹) والله اعلم
**د استنجاء بالیمین په باره کښې د فقهاء کرامو مذاهب :** په دې باندې خو د ټولو اتفاق دې چه استنجاء بالیمین مکروه ده!

---

۱) الطبقات لابن سعد ج ۷ ص ۳۳۶
۲) کتاب الثقات ج ۸ ص ۱۳۰، رقم ۱۲۵۷۸
۳) تاریخ الاسلام ج ۵ ص ۳۶۵، رقم ۵۲۵۱، الطبقة الحادیة والعشرون
٤) پورته حواله
۵) الزج بالضم الحدیدة التی فی اسفل الرمح، مختار الصحاح ص ۱۱۳، مادة : زجج
۶) فتح الباری ج ۲ ص ۲۵۲
۷) عمدة القاری : ۲۹٤/۱۲
۸) قاله البخاری فی صحیحه ج۲ ص ۱۰۹٤، کتاب الاعتصام، باب نهی النبی ﷺ علی التحریم، وکذلک امره
۹) اوګورئ : فتح الباری ج ۱ ص ۲۵۳

بیا شوافع او حنابله وائی چه دا کراهت تنزیهی دې. (۱) په احنافو کښې صاحب د در مختار وائی چه مکروه تحریمی دې. (۲) ظاهریه وائی چه دا کار حرام دې. (۳) په شوافعو کښې ورته هم څه حضراتو حرام وئیلې دی، خو امام نووی رحمه الله فرمائی چه د هغه حضراتو اقوالو او اشاراتو لره اعتبار نشته.

دا ټوله خبره په هغه وخت کښې ده چه کله انسان بغیر د عذر نه ښې لاس استعمالوی، که عذر وی نو د ښې لاس استعمال بغیر د کراهت نه جائز دې. (٤)

**په ښی لاس باندې استنجاء کولو سره به استنجاء کیږی یا نه؟** : که یو سړی په ښی لاس باندې استنجاء اوکړه نو جمهور علماء فرمائی چه استنجاء خو ئې اوشوه، او بعض ظاهریه وائی چه استنجاء ئې هم نه کیږی. (۵)

حافظ ابن حجر رحمه الله هم دا قول د بعض حنابله نه نقل کړې دې. (۶) خو د هغه شیخ المذهب موفق او د هغه شاګرد شمس الدین مقدسی د دې هیڅ تصریح نه ده کړې، خو مرداوی یو قول د حنابله دا هم نقل کړې دې. (۷)

هم دغه شان علامه عینی رحمه الله د حنابله سره سره د شوافع هم د یو جماعت طرف ته د عدم جواز او عدم صحت نسبت کړې دې. (۸)

خو امام نووی رحمه الله او حافظ رحمه الله د دې نسبت نه دې کړې، او دا خبره خو معلومه ده ﴿واصحاب الامام اعرف بمذهب الامام﴾ یعنی د یو امام خپل اصحاب د خپل امام مذهب لره د نورو نه ښه پیژنی والله اعلم

۱۵۲ : ﴿حَدَّثَنَا مُعَاذُ بْنُ فَضَالَةَ قَالَ حَدَّثَنَا هِشَامٌ هُوَ الدَّسْتَوَائِیُّ عَنْ يَحْيَى بْنِ أَبِي كَثِيرٍ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي قَتَادَةَ عَنْ أَبِيهِ(۹) قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

---

۱) اوګورئ : المجموع شرح المهذب ج ۲ ص ۱۰۹، قبیل باب الغسل، والانصاف ج ۱ ص ۱۰۳

۲) الدر المختار مع رد المحتار ج ۱ ص ۲۵۰، وانظر البحر الرائق ج ۱ ص ٤۲۰، ٤۲۱

۳) نیل الاوطار ج ۱ ص ۹۱، کتاب الطهارة، باب نهی المتخلی عن استقبال القبلة واستدبارها

٤) اوګورئ : البحر الرائق ج ۱ ص ٤۲۱، والمجموع ج ۲ ص ۱۱۰، والمغنی لابن قدامة ج ۱ ص ۱۰۳

۵) اوګورئ : المغنی لابن قدامة ج ۱ ص ۱۰۳

۶) فتح الباری ج ۱ ص ۲۵۳

۷) الانصاف ج ۱ ص ۱۰۳

۸) اوګورئ : عمدة القاری ج ۲ ص ۲۹۶

۹) قوله (عن ابیه) ای ابی قتادة رضی الله عنه. والحدیث اخرجه البخاری ایضا فی صحیحه ج ۱ ص ۲۷، فی کتاب الوضوء، باب لا یمسک ذکره بیمینه اذا بال، رقم ۱۵٤، و ج ۲ ص ۸٤۱، کتاب الاشربة، باب التنفس فی الاناء، رقم ۵۶۳۰ ومسلم فی صحیحه، فی کتاب الطهارة، باب النهی عن الاستنجاء بالیمین، رقم ۶۱۵-۶۱۳، وفی کتاب الاشربة، باب کراهة التنفس فی نفس الاناء، واستحباب التنفس ثلاثا خارج الاناء، رقم ۵۲۸۵، والنسائی فی سننه، فی کتاب الطهارة، باب النهی عن الاستنجاء ... (بقیه برصفحه آئنده

إِذَاشَرِبَ أَحَدُكُمْ فَلَا يَتَنَفَّسْ فِي الْإِنَاءِ وَإِذَا أَتَى الْخَلَاءَ فَلَا يَمَسَّ ذَكَرَهُ بِيَمِينِهِ وَلَا يَتَمَسَّحْ بِيَمِينِهِ ﴾
[٥٣٠٧، ١٥٣]

## رجال الحديث

① **معاذ بن فضاله** : دا معاذ بن فضاله (بفتح الفاء) (١) الزهرانی البصری رحمه الله دی. بعض حضراتو ورته د ﴿ زهرانی ﴾ په ځائې ﴿ طفاوی ﴾ وئیلې دی، او بعض حضراتو ورته ﴿ قرشی ﴾ وئیلې دي. ابو زید د هغه کنیت دې. (٢)

هغه د هشام دستوائی، حفص بن میسره صنعانی، خالد بن حمید، خلیل بن مرة، ربیع بن صبیح، سفیان ثوری، عبدالله بن لهیعة، ابو شریح، عمر بن قیس مکی او یحیی بن ایوب مصری رحمهم الله نه احادیث روایت کوی.

د هغه نه په روایت کونکو کښې عبد الله بن وهب (وهواكبرمنه) امام بخاری، احمد بن منصور رمادی، ابو قلابه عبد الملك بن محمد الرقاشی، عبید الله بن جریر بن جبله، ابو حاتم الرازی، محمد بن یحیی ذهلی، یعقوب بن شیبه، یعقوب بن سفیان او محمد بن سنان رحمهم الله وغیره دی (٣)

امام ابو حاتم رحمه الله فرمائی : ﴿ ثقة، صدوق ﴾ (٤)

امام عجلی رحمه الله فرمائی : ﴿ بصری، ثقة ﴾ (٥)

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی : ﴿ ثقة ﴾ (٦)

ابن حبان رحمه الله هغه په کتاب الثقات کښې ذکر کړې دې. (٧)

د ٢١٠ هجری نه پس هغه وفات شوې دې. (٨) رحمه الله رحمة واسعة

---

....بقيه ازصفحه گذشته) باليمين رقم ٤٧، ٤٨، وابوداؤد فی سننه، فی كتاب الطهارة، باب كراهية مس الذكر باليمين فی الاستبراء رقم ٣١، والترمذی فی جامعه، فی كتاب الطهارة، باب ما جاء فی كراهة الاستنجاء باليمين رقم ١٥، وابن ماجة فی سننه، فی كتاب الطهارة، باب كراهة مس الذكر باليمين والاستنجاء باليمين. رقم ٣١٠، واحمد فی مسنده ج ٤ ص ٣٨٣، رقم ١٩٦٣٩

١) فتح الباری ج ١ ص ٢٥٣
٢) اوګورئ : تهذيب الكمال ج ٢٨ ص ١٢٩، رقم ٦٠٣٤
٣) د شیوخ او تلامذه د تفصیل دپاره اوګورئ، تهذيب الكمال ج ٢٨ ص ١٢٩، ١٣٠
٤) الجرح والتعديل ج ٨ ص ٢٨٧، رقم ١١٣٩/١٤٤٤٦
٥) الثقات للعجلی ج ٢ ص ٢٨٣، رقم ١٧٤٠
٦) تقريب التهذيب ص ٥٣٦، رقم ٦٧٣٨
٧) الثقات لابن حبان ج ٩ ص ١٧٧
٨) تقريب التهذيب ص ٥٣٦، رقم ٦٧٣٨

② هشام : دا ابوبکر هشام بن ابو عبدالله سنبرصری دستوائی رحمه الله دی. د هغه حالات په کتاب الایمان باب زیادة الایمان ونقصانه د لاندې تیر شوی دی. (۱)

③ یحیٰ بن ابی کثیر : دا مشهور امام یحیٰ بن ابی کثیر طائی یمامی (رح) دی. ددوی حالات په "کتاب العلم" کښې د "باب کتابة العلم" لاندې تیر شوی دی. (۲)

④ عبدالله بن ابی قتادة : دا د مشهور صحابی سیدنا ابو قتاده رضی الله عنه ځوئې عبدالله بن ابی قتاده انصاری سلمی مدنی رحمه الله دی، د هغه کنیت ابو ابراهیم یا ابو یحیی بیانولې شی. (۳)
هغه د سیدنا جابر او خپل والد محترم سیدنا ابو قتاده رضی الله عنهما نه روایت حدیث کوی.
د هغه نه په روایت کونکو کښې د هغه دوه ځامن ثابت بن عبدالله بن ابی قتاده، یحیی بن عبدالله بن ابی قتاده، امام یحیی بن ابی کثیر، حصین بن عبد الرحمن سلمی، زید بن اسلم، ابو حازم سلمه بن دینار، عثمان بن عبدالله بن مواهب او محمد بن قیس مدنی رحمهم الله وغیره حضرات دی. (٤)

ابن سعد رحمه الله فرمائی : ﴿وكان ثقة، قليل الحديث﴾(۵)

امام نسائی رحمه الله فرمائی : ﴿ثقة﴾(۶)

امام عجلی رحمه الله فرمائی : ﴿تابعي ثقة﴾(۷)

د ولید بن عبدالملك په دور خلافت کښې په ۹۵ هجری کښې هغه وفات شوی دی. (۸) رحمه الله رحمة واسعة

⑤ ابیه (سیدنا ابو قتاده رضی الله عنه) : دا صحابی رسول، فارس رسول صلی الله علیه وسلم سیدنا ابوقتاده انصاری رضی الله عنه دی. (۹)
د هغه نوم حارث بن ربعی دی، صحیح قول هم دا دی، بعض حضراتو نعمان او بعض عمرو وئیلی دی. (۱۰)
هغه د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه علاوه د سیدنا عمر او سیدنا معاذ رضی الله عنهما نه هم روایت کوی.

---

۱) کشف البارى ج ۲ ص ۴۵۶
۲) کشف البارى: ٤\ ۲۶۷.
۳) اوګورئ: تهذیب الکمال ج ۱۵ ص ٤٤٠، ٤٤١
٤) د شیوخ او تلامذه د تفصیل دپاره اوګورئ. تهذیب الکمال ج ۱۵ ص ٤٤١
۵) طبقات ابن سعد ج ۵ ص ۲۷٤
۶) تهذیب الکمال ج ۱۵ ص ٤٤١
۷) الثقات للعجلی ج ۲ ص ۵۱، رقم ۹٤۹
۸) اوګورئ: طبقات ابن سعد ج ۵ ص ۲۷٤، وتهذیب الکمال ج ۱۵ ص ٤٤٢
۹) فتح البارى ج ۱ ص ۲۵۳
۱۰) سیر اعلام النبلاء ج ۲ ص ٤٤٩، وطبقات ابن سعد ج ۶ ص ۱۵

د هغه نه په روايت كونكو كښې سيدنا انس رضي الله عنه د. هغه خوئې عبد الله بن ابى قتاده. د هغه مولى نافع. سعيد بن المسيب. عطاء بن يسار. ابو سلمه بن عبد الرحمن. على بن رباح. عبدالله بن رباح. عبدالله بن معبد الزمانى. عمرو بن سليم الزرقى او معبد بن مالك رحمهم الله وغيره حضرات روايت كوى (۱)

سيدنا ابوقتاده رضي الله عنه له بعض حضراتو د اهل بدر نه شمار كړې دې. (۲) خو محققين فرمائى چه هغه په بدر كښې نه دې شريك شوې. (۳) خو په احد. خندق او نورو جنګونو كښې شريك شوې دې (٤)

رسول الله ﷺ فرمائى: ﴿خير فرساننا اليوم ابوقتادة، وخير رجالتنا سلمة﴾ (۵)

يعنى زمونږ په شهسوارانو كښې د ټولو نه بهترين ابوقتاده دې او په پياده كسانو كښې سلمه رضي الله عنه دې

يو كرت مسعده نومي يو سړي ځه فساد اوكړو. سيدنا ابو قتاده رضي الله عنه په هغه پسې شو او مقابله كولو سره ئې هغه مړ كړو. چه كله واپس راغلو نو رسول الله ﷺ ورته دعا اوكړه: ﴿اللهم بارك له فى شعره وبشره﴾ او هم دغه شان ئې اوفرمائيل: ﴿افلح وجهك﴾ (٦)

يعنى اې الله! د هغه په ويښتو او بدن كښې بركت واچوه، ته دې هميشه كامياب ئې.

سيدنا ابو سعيد خدرى رضي الله عنه فرمائى: ﴿اخبرنى من هو خير منى ابوقتادة...﴾ (۷)

يعنى ماته حديث واورولو هغه چا چه زما نه غوره دې يعنى ابو قتاده رضي الله عنه ....

يو كرت رسول الله ﷺ سيدنا ابو قتاده رضي الله عنه ته دعا اوكړه: ﴿حفظك الله بما حفظت نبيه﴾ (۸)

يعنى الله تعالى دې ستا حفاظت اوكړى. لكه څنګه چه تا د الله د نبى حفاظت اوكړو.

د سيدنا ابوقتاده رضي الله عنه د وفات په باره كښې اختلاف دې چه په كوم كال شوې دې امام ابو الحجاج مزى رحمه الله دوه اقوال نقل كړې دى. يو د ۳۸ هجرى دې، دويم د ۵۴ هجرى دې. (۹) امام واقدى رحمه الله فرمائى چه د هغه وفات په كوفه كښې په ۵۴ هجرى كښې شوې دې. هغه

---

۱) د شيوخ او تلامذه د تفصيل دپاره اوګورئ: تهذيب الكمال ج ۳٤ ص ۱۹٤. ۱۹۵. وسير اعلام النبلاء ج ۲ ص ٤٤۹

۲) قاله الحاكم ابو احمد. تهذيب الكمال ج ۳٤ ص ۱۹۵

۳) اوګورئ: الاصابة ج ٤ ص ۱۵۸

٤) تهذيب الكمال ج ۳٤ ص ۱۹۵، وسير اعلام النبلاء ج ۲ ص ٤۵٤

۵) صحيح مسلم. كتاب الجهاد. باب غزوة ذى قرد وغيرها رقم ٤٦۷۸

٦) المستدرك على الصحيحين ج ۳ ص ٤۸۰. رقم ٦۰۳۲

۷) صحيح مسلم. كتاب الفتن. باب لا تقوم الساعة حتى يمر الرجل بقبر الرجل. فيتمنى ان يكون مكان الميت. رقم ۷۳۲۱

۸) صحيح مسلم. كتاب المساجد. باب قضاء الصلاة الفائتة. واستحباب تعجيل قضائها. رقم ۱۵٦۲

۹) تهذيب الكمال ج ۳٤ ص ۱۹٦

وخت د هغه عمر اويا كاله وو. په دې سلسله كښې زمونږ د اهل علم ترمينځه هيڅ اختلاف نشته. خو د كوفې والا وائى چه په كوفه كښې كله د هغه وفات اوشو نو سيدنا على رضي الله عنه په هغه باندې جنازه اوكړه

خو د ٣٨هـ والا قول نه شاذ وئيلې شوې دې، ځكه چه د اكثر حضراتو قول دا دې چه د هغه وفات په ٥٤ هجرى كښې شوې دې. د دې تائيد د دې خبرې نه هم كيږى چه امام بخارى رحمه الله د هغه تذكره په تاريخ اوسط كښې د هغه حضراتو ترمينځه كړې ده څوك چه د ٥٠ او ٦٠ هجرى ترمينځه وفات شوې دى او هغه په خپل سند سره دا هم نقل كړي دى چه مروان چه د سيدنا معاويه رضي الله عنه ګورنر وو. سيدنا ابوقتاده رضي الله عنه راوغوښتلو او ابو قتاده رضي الله عنه ته ئې هغه ځايونه

سه نخښه كړل چرته چه د رسول الله ﷺ جنګونه شوې وو. (١) والله اعلم

د سيدنا ابو قتاده رضي الله عنه نه تقريبا يو سل اويا (١٧٠) احاديث روايت شوې دى. د هغې نه يولس احاديث متفق عليه دى. په دوه احاديثو كښې امام بخارى او په اته احاديثو كښې امام مسلم رحمه الله متفرد دې. (٢) رضى الله عنه وارضاه

**قوله:** إِذَا شَرِبَ أَحَدُكُمْ فَلَا يَتَنَفَّسْ فِي الْإِنَاءِ: رسول الله ﷺ اوفرمائيل : چه كله په تاسو كښې څوك څكل كوى نو په لوښى كښې دې ساه نه اخلى.

﴿فلايتنفس﴾ په جزم سره لوستلې شوې دې او په رفع سره هم. كه په جزم سره وى نو نهى ده، كه رفع سره وى نو نفى ده. كومه چه د نهى په معنى كښې ده. (٣)

رسول الله ﷺ داسې د اوبو څكلو نه منع فرمائيلې ده چه په هم هغه لوښى كښې ساه واخستلې شى او هغه د خولې نه جدا نه كړې شى. د دې ممانعت وجه يا خو دا ده چه دا د حيواناتو يا ځاروو طريقه ده، يا د دې وجه دا ده چه په اوبو كښې د ساه اخستلو نه دا خطره ده چه د ساه د ګندګئ د وجې نه د اوبو لطافت ختم نه شى. دا هم كيدې شى چه د ساه اخستلو سره د پوزې نه څه څيز راوځى او په اوبو كښې پريوځى. (٤)

**د دوه روايتونو ترمينځه تعارض او د هغې دفعيه** د بخارى په دې روايت كښې ﴿فلايتنفس فى الاناء﴾ راغلې دې. په صحيح مسلم كښې هم دغه شان دى (٥) او په ابوداؤد كښې ﴿فلايشرب نفسا واحدا﴾ (٦) راغلې دې.

سوال دا دې چه رسول الله ﷺ د صحيحينو د روايت مطابق فرمائيلې دى يا د ابوداؤد

---

١) د تفصيل دپاره اوګورئ: تهذيب التهذيب ج ١٢ ص ٢٠٤، ٢٠٥

٢) عمدة القارى ج ٢ ص ٢٩٤، وخلاصة الخزرجى ص ٤٥٧

٣) عمدة القارى ج ٢ ص ٢٩٥

٤) اوګورئ: عمدة القارى ج ٢ ص ٢٩٥

٥) صحيح مسلم، كتاب الطهارة، باب النهى عن الاستنجاء باليمين، رقم ٦١٣، و ٦١٥

٦) سنن ابى داؤد، كتاب الطهارة، باب كراهية مس الذكر باليمين فى الاستبراء، رقم ٣١

الفاظ صحيح دي؟
په دوارو روايتونو كښې داسې تطبيق كيدې شي چه رسول الله ﷺ دواړه جملې ارشاد فرمائيلې وې، صحابه كرام ﷺ دواړه جملې نقل اوفرمائيلې، خو روستو تلو سره بعض راويانو يوه جمله نقل اوفرمائيله او نورو بعض راويانو بله جمله، ﴿كل روى مالم يروه الاخر﴾
دويم جواب دا دې چه د يحيى بن ابى كثير رحمه الله ټول شاګردان ﴿فلا يتنفس فى الاناء﴾ نقل كوى، او د هغه صرف يو شاګرد ابان العطار ﴿فلا يشرب نفسا واحدا﴾ نقل كوى، لهذا د ابان روايت د اكثريت د مخالفت د وجې نه شاذ او مرجوح دې.
دريم جواب دا وركړې كيدې شي چه د دوارو روايتونو ترمينځه تطبيق وركړې كيدې شى، په داسې طريقه چه د ابان روايت بالمعنى دې، د ﴿فلا يشرب نفسا واحدا﴾ مطلب دا دې چه داسې دې نه څكى چه ګويا په يو ساه ئې څكل غواړى چه لوښې د خولې نه بالكل نه جدا كوى او لوښې ئې په خولې پورې نيولې دې او اوبه څكى او ساه هم پكښې اخلى. والله اعلم
**په يوه ساه باندې د څكلو حكم** : پاتې شوه په يوه ساه باندې د څكلو حكم، پس ابن عباس، طاؤس او عكرمه ﷺ فرمائى چه په يوه ساه څكل جائز نه دى مكروه دى.
ابن عباس ﷺ فرمائى : ﴿هو شرب الشيطان﴾ (۱)
او سعيد بن المسيب او عطاء بن ابى رباح رحمهما الله په يوه ساه باندې د څكلو اجازت وركړې دې. (۲)
امام ترمذى رحمه الله د سيدنا ابن عباس ﷺ نه روايت نقل كړې دې! ﴿لا تشربوا واحدا كشرب البعير ولكن اشربوا مثنى وثلاث، وسموا اذا انتم شربتم، واحمدوا اذا انتم رفعتم﴾ (۳)
يعنى د اوښ په شان په يوه ساه څكل مه كوئ، بلكه په دوه دوه درې درې ساه ګانو كښې څكئ، چه كله څكئ نو د الله پاك نوم اخلئ او بسم الله وايئ او چه كله ئې اوڅكئ نو د الله پاك شكر ادا كوئ او الحمد لله وايئ.
سعيد بن المسيب او عطاء د سيدنا ابو سعيد خدرى ﷺ د يو روايت نه استدلال كوى!
﴿ان النبى صلى الله عليه وسلم نهى عن النفخ فى الشراب، فقال رجل القذاة اراها فى الاناء، فقال : اهرقها، فقال : فانى لا ارى من نفس واحد! فابن القدح اذن عن فيك﴾ (٤)
يعنى نبى كريم ﷺ په څكلو كښې د پوكى وهلو نه منع اوفرمائيله، يو سړى عرض اوكړو

---

۱) التمهيد لابن عبد البر ج ص ۳۹۳، هم دغه شان اوګورئ : عمدة القارى ج ۲۱ ص ۲۰۱، كتاب الاشربة، باب الشرب بنفسين او ثلاثة
۲) پورته حواله جات
۳) جامع الترمذى، كتاب الاشربة، باب ما جاء فى التنفس فى الاناء، رقم ۱۸۸۵
٤) جامع الترمذى، كتاب الاشربة، باب ما جاء فى كراهية التنفس فى الشراب رقم ۱۸۸۷

چه که په اوبو کښې څه بخرې اووينم نو هغه په پوکی وهلو سره نه اخوا کوم؟ رسول الله ﷺ اوفرمائيل : پوکې مه وهئ دا توئې کړه، هغه سړی عرض اوکړو چه زه په يوه ساه کښې نه مړيږم. رسول الله ﷺ اوفرمائيل بيا لوښې د خپلې خولې نه جدا کړه، يعنی ساه بهر واخله او بيا پياله خولې سره اولګوه او دوباره اوڅکه.

دا حديث د دې خبرې دليل دې چه په يوه ساه باندې څکل جائز دی، ځکه چه رسول الله ﷺ په ﴿فانی لاادوی من نفس واحد﴾ باندې نکير او نه فرمائيلو! که دا ناجائز وې نو رسول الله ﷺ به صفا فرمائيلي وو چه په يوه ساه باندې څکل بالکل جائز نه دی.

عمر بن عبدالعزيز رحمه الله فرمائي چه ؛ په يوه ساه باندې د څکلو چه کوم ممانعت دې د هغې مطلب دا دې چه انسان په لوښی کښې خوله اولګوی، په لوښی کښې ساه اخلی او اوبه څکی، لکه چه ځاروی او درندګان څکی او که د لوښی نه بهر ساه واخستلې شی نو بيا هيڅ باک نشته او که څوک ساه نه اخلی، په يوه ساه ئې اوڅکی نو هيڅ باك پکښې نشته. (۱)

**قوله: وَإِذَا أَتَى الْخَلَاءَ فَلَا يَمَسَّ ذَكَرَهُ بِيَمِينِهِ :** او چه کله بيت الخلاء ته ځی نو خپله شرمګاه دې په خپل ښی لاس سره نه مس کوی.

د ﴿ذکر﴾ په حکم کښې ﴿دبر﴾ او ﴿فرج امراة﴾ هم دې، رسول الله ﷺ يو ذکر کړو د دې نه د بل حکم په خپله معلوم شو. (۲)

**د مس الذكر باليمين حكم :** مس ذکر باليمين بالاتفاق مکروه دې، خو ظاهريه وائی چه ممانعت تحريمی دې او شافعيه وائی چه تنزيهی دې، علامه عينی رحمه الله د جمهورو طرف ته د کراهت تنزيهی نسبت کړې دې. (۳)

**قوله: وَلَا يَتَمَسَّحْ بِيَمِينِهِ :** او نه دې په خپل ښی لاس باندې استنجاء کوی.

د غائط په صورت کښې دې په ګس لاس سره په لوټه باندې صفا کړی.

**د استنجاء فی البول طريقه :** که متيازې کوی نو د استنجاء به څه صورت وی؟

دلته يو صورت دا دې په يو لوړ ديوال يا کاڼړی سره دې په ګس لاس باندې ذکر اونيسی او صفا دې کړی.

دويم صورت دا دې چه د پوندې يا خپې يا د دواړو ګوتو ترمينځه دې کاڼړې ړدلو سره په ګس لاس باندې صفا کړی.

دريم صورت دا دې چه په ښی لاس کښې دې کاڼړې اونيسی او په ګس لاس کښې نيولو سره دې په کاڼړی باندې صفا کړی او ښې لاس دې حرکت نه کوی بلکه په خپل ځائې دې وی.

---

۱) عن ميمون بن مهران . قال : رآني عمر بن عبد العزيز وأنا أشرب . فجعلت أقطع شرابي وأتنفس . فقال : إنما نهي أن يتنفس في الإناء . فإذا لم تتنفس في الإناء . فاشربه إن شئت بنفس واحد. المصنف لابن ابی شيبة ج ۱۲ ص ۲۹۳، كتاب الاشربة، باب من رخص فی الشرب بالنفس الواحد رقم ۲٤٦٤٤

۲) فتح الباری ج ۱ ص ۲٥٤

۳) اوګورئ : عمدة القاری ج ۲ ص ۲۹٦، وشرح النووی علی صحيح مسلم ج ۳ ص ۱٥۱

امام نووی رحمه الله فرمائی چه هم دا صحیح ده:
یو څلورم صورت دا هم دي چه په ګس لاس سره دي کانړي اونیسي او په ښي لاس سره دي ذکر اونیسي او ګس لاس ته دي حرکت ورکړي خو دا صحیح نه دي. ځکه چه په دي کښې مس الذکر بالیمین بلا عذر لازمیږي. حال دا چه په حدیث شریف کښې چه څنګه د استنجاء بالیمین ممانعت راغلي دي، دغه شان پکښې د مس ذکر بالیمین ممانعت هم راغلي دي (۱)
**د امام خطابی رحمه الله اشکال او د هغې جواب:** امام خطابی رحمه الله فرمائی چه په دي حدیث کښې دوه حکمونه دي، یو د مس ذکر ممانعت او دویم د استنجاء بالیمین ممانعت او په دي دواړو کښې تعارض دي، ځکه چه که یو سړي په ښي لاس سره استنجاء نه کوی نو د مس الذکر بالیمین ارتکاب لازمیږي او که څوك مس الذکر بالیمین نه کوی نو تمسح بالیمین لازمیږي. ځکه چه که په ګس لاس سره کانړي نیسي نو په ښي لاس سره به ذکر نیول وی او که په ښي لاس سره کانړي نیسي نو په دي صورت کښې به مسح بالیمین لازمیږي حاصل دا چه په دواړو کښې د یو ارتکاب ضرور لازمیږي:
امام خطابی رحمه الله د دي اشکال جواب دا ورکوی چه د استنجاء دپاره دي د یو لوئي کانړي، چه د هغې د خوزیدو احتمال نه وی، دیوال یا د لوړي زمکي استعمال اوکړي چه ذکر نیولو سره په هغې باندې اوچ کړي او که په عامه لوټه یا کانړي وغیره سره د استنجاء ضرورت راشي نو د هغې صورت به دا وی چه خپل مقعد د زمکي سره یو ځائي کړي او ممسوح لره به په دواړو پوندو سره اونیسي. خپل اندام دي په ګس لاس سره اونیسي او په هغې سره دي اوچ کړي، دغه شان دي ښي لاس بچ کړي
امام خطابی رحمه الله خپله د فقیه ابو علی بن ابی هریره نه نقل کړی دی چه هغه د علامه محاملی مجلس ته حاضر شو. هلته د اصفهان یو لوئي عالم راغلي وو. ابن ابی هریره ورته هم دا اشکال پیش کړو، خو هغه عالم په حیرت کښې پریوتلو او هغه بیان نه کړي شوه، تردي چه ما هغوی ته طریقه اوخودله (۲)
خو دا صورت اګر چه لوئي لوئي علماء کرامو لیکلي دي خو مستبعد شان صورت معلومیږي:
خلیل احمد سهارنپوری رحمه الله په دي باندې دا اشکال کړي دي چه دي حضراتو ته معلومه نه ده چه څه اشکال پیښ شوي دي. زمونږه خو بوداګان. ځوانان تردي چه ماشومان هم په استنجاء کولو باندې پوهیږي چه په ګس لاس باندې لوټه اونیسي او د حشفه نه لاندې حصه په ګوته باندې دباؤ کړي د متیازو قطره راوځي او هغه اوچه شي. (۳)
غالبا دي حضراتو ته به په دي وجه اشکال پیښ شوي وی چه اصل کښې زمونږ په علاقه کښې چه د استنجاء کولو کومه طریقه ده هغه د هغوی په نزد نه وه، هغوی به موضع استنجاء لره

---

۱) اوګورئ: المجموع شرح المهذب ج ۲ ص ۱۱۰، و شرح النووی علی صحیح مسلم ج ۳ ص ۱٤۷
۲) اوګورئ: معالم السنن ج ۱ ص ۳۳، ۳٤، مطبوعة مع مختصر المنذری وتهذیب ابن القیم
۳) بذل المجهود ج ۱ ص ۲٦۹

په كانړو سره اوچولو په دې اوچولو كښې امرار الحجر على الذكر لازميږى او دا اوچول په يو لاس سره ناممكن دى.
هم دغه شان كه څوك كانړى سره استنجا كوى نو هلته دواړو كولو سره نى اوچول ناممكن دى. ځكه چه كانړى فورى طريقې سره متيازې نه جذب كوى، هلته خو اوچول لازمى وى.
والله سبحانه وتعالى اعلم

## ⑲ باب لا يمسك ذكره بيمينه إذا بال

**د تير باب سره مناسبت**: مخكښې باب د استنجاء باليمين سره متعلق وو. په دې باب كښې د ﴿امساك ذكر باليمين عند الاستنجاء﴾ ذكر دې. په دواړو بابونو كښې مناسبت بالكل ښكاره دې.
**د ترجمة الباب مقصد**: حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى چه امام بخارى رحمه الله په دې باب كښې فرمائى چه انسان دې د متيازو كولو په وخت خپل ذكر نه نيسى. ځكه چه په حديث كښې د مس الذكر باليمين ممانعت دې. بيا د مس الذكر باليمين د ممانعت په باره كښې دوه قسم روايتونه دى؛
په بعض كښې خو د ﴿اذا بال﴾ قيد دې او په بعض كښې نشته. پس په مخكښې باب كښې د ﴿واذا اتى الخلاء فلا يمس ذكره بيمينه﴾ الفاظ دى، په هغې كښې د ﴿اذا بال﴾ قيد نشته. او د دې باب په روايت كښې دى ﴿اذا بال احدكم فلا ياخذن ذكره بيمينه﴾ په دې روايت كښې تاسو وينئ چه د ﴿اذا بال﴾ قيد موجود دې
امام بخارى رحمه الله په ترجمه الباب كښې قيد لګولو سره دې خبرې طرف ته اشاره اوكړه چه روايت مطلقه به په روايت مقيده باندې محمول كولې شى. لهذا د مس ذكر باليمين دا حكم به د بول د وخت سره مقيد وى. نه مطلقا (۱)
بعض علماء كرام فرمائى چه مطلق لره په مقيد باندې هغه وخت حمل كولې شى چه كله قيد احترازى او كه قيد اغلبى وى. يعنى د كثير الوقوع كيدو د وجې نه هغه ذكر كړې شوې وى لكه چه دلته هم دغه شان دى نو بيا مطلق په مقيد باندې نه شى محمول كولې. بلكه په داسې صورت كښې د روايات مقيده نه د مطلق حكم راوځى، ځكه چه د متيازو حالت د ضرورت حالت دې او د حاجت وخت دې، چه كله د حاجت په وخت د د مس ذكر نه منع كړې شوې ده نو بغير د ضرورت نه به د مس ذكر باليمين اجازت څنګه وركولې شى. (۲)
ابن ابى جمره دلته دا اشكال كړې دې چه حاجت د بول سره خاص نه دې، ځكه چه د حاجت مواقع نورې هم دى. د بول تخصيص په دې وجه كړې شوې دې چه په حديث كښې د استنجاء باليمين نه منع كړې شوې ده او قاعده دا ده چه بعض وخت چه كله د يو څيز نه منع كولې شى

۱) فتح البارى ج ۱ ص ۲٥٤
۲) پورته حواله

نو کوم څیز چه د هغه سره نزدې وی د هغې نه هم منع کوی، یعنی په لاس سره د ذکر نیول هغه هم ممنوع دی، په ښی لاس سره د نیولو اجازت نشته، د دې نه علاوه باقی حالات په اصل اباحت باندې دی. (۱)

پس د سیدنا طلق بن علی رضی الله عنه په حدیث کښې دی چه د رسول الله ﷺ نه د مس ذکر په باره کښې تپوس اوکړې شو نو رسول الله ﷺ اوفرمائیل: ﴿هل هو الا مضغة منك او بضعة منك﴾(۲) یعنی دا هم ستا یوه ټکړه ده. والله سبحانه وتعالی اعلم

۱۵۳: ﴿حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يُوسُفَ قَالَ حَدَّثَنَا الْأَوْزَاعِيُّ عَنْ يَحْيَى بْنِ أَبِي كَثِيرٍ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي قَتَادَةَ عَنْ أَبِيهِ(۳) عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِذَا بَالَ أَحَدُكُمْ فَلَا يَأْخُذَنَّ ذَكَرَهُ بِيَمِينِهِ وَلَا يَسْتَنْجِي بِيَمِينِهِ وَلَا يَتَنَفَّسْ فِي الْإِنَاءِ﴾[ر: ۱۵۲]

## رجال الحدیث

① **محمد بن یوسف**: دا محمد بن یوسف بن واقد ضبی فریابی رحمه الله دې. د هغه حالات په کتاب العلم باب ماکان النبی ﷺ یتخولهم بالموعظة والعلم کیلا ینفروا د لاندې تیر شوې دی. (٤)

② **الاوزاعی**: دا امام مجتهد عبدالرحمن بن عمرو اوزاعی رحمه الله دې. د هغه حالات په کتاب العلم کښې د باب الخروج فی طلب العلم د لاندې تیر شوې دی. (۵)

③ **یحیی بن ابی کثیر**: دا مشهور محدث امام یحیی بن ابی کثیر طائی یمامی رحمه الله دې. د هغه حالات په کتاب العلم کښې د باب کتابة العلم د لاندې تیر شوې دی. (٦)

④ **عبدالله بن ابی قتاده** رحمه الله: د هغه حالات اوس د مخکښې باب د لاندې تیر شوې دی.

⑤ **سیدنا ابو قتاده** رضی الله عنه: د هغه حالات هم د مخکښې باب د لاندې تیر شوې دی!

**قوله**: عَنْ يَحْيَى بْنِ أَبِي كَثِيرٍ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي قَتَادَةَ: امام یحیی بن ابی کثیر ته مدلس وئیلې شوې دې، خو مونږ مخکښې د هغه د حالات بیانولو د لاندې واضحه کړې ده چه د هغه تدلیس مضر نه دې. (۷)

---

۱) پورته حواله

۲) اخرجه النسائی فی کتاب الطهارة، باب ترک الوضوء من ذلک، رقم ۱٦۵، وانظر السنن لابی داؤد، کتاب الطهارة، باب الرخصة من ذلک، رقم ۱۸۲، والصحیح لابن حبان، کتاب الطهارة، باب نواقض الوضوء وصححه ابن حزم فی المحلی ج ۱ ص ۲۳۸

۳) الحدیث مر تخریجه فی الباب السابق

٤) کشف الباری ج ۳ ص ۲۵۲

۵) کشف الباری ج ۳ ص ٤۰۸

٦) کشف الباری ج ٤ ص ۲٦۷

۷) اوګورئ: کشف الباری ج ٤ ص ۲٦۸، ۲٦۹

په دي حديث كښې دلته اگر چه عنعنه ده، خو ابن خزيمهﷺ په خپل صحيح كښې يو روايت د تحديث سره نقل كړې دې. (١)

هم دغه شان ابن المنذرﷺ هم په الاوسط كښې د تحديث صراحت كړې دې. (٢)

لهذا كه د هغه تدليس مضر هم وى نو دلته به په اتصال باندې محمول وى. والله اعلم

**قوله: إِذَا بَالَ أَحَدُكُمْ فَلَا يَأْخُذَنَّ ذَكَرَهُ بِيَمِينِهِ:** چه كله په تاسو كښې څوك متيازې كوى نو خپل ذكر دې په ښى لاس باندې نه نيسى.

د ﴿فلايأخذن﴾ په نون تاكيد سره صرف د ابوذرﷺ په نسخه كښې دې. (٣) د هغه نه علاوه په باقى نسخو كښې ﴿فلايأخذ﴾ بغير د نون تاكيد نه دې او هم دا په ترجمة الباب كښې د راغلى لفظ ﴿لايمسك﴾ عين مطابق دې. (٤)

د مسلم په يو روايت كښې د ﴿لايمسكن احدكم ذكره بيمينه﴾ الفاظ راغلي دى. (٥)

خو د اسماعيلى په روايت كښې د ﴿لايمس﴾ لفظ راغلې دې، پس هغه په امام بخارىﷺ باندې اعتراض كړې دې چه لفظ د ﴿مس﴾ عام دې او امساك خاص دې، د عام لفظ مطابق ترجمه پكار وه.

خو دا اشكال خپله په اسماعيلى باندې كيږى په امام بخارى باندې نه، ځكه چه د امام بخارىﷺ روايت د هغه د ترجمې عين مطابق دې. (٦) والله سبحانه وتعالى اعلم

**قوله: وَلَا يَسْتَنْجِي بِيَمِينِهِ:** او په ښى لاس سره دې استنجاء نه كوى.

**قوله: وَلَا يَتَنَفَّسْ فِي الْإِنَاءِ:** او په لوښى كښې دې ساه نه اخلى.

دا ﴿لا﴾ نافيه ده او د ماقبل نه جدا يوه مستقل جمله ده. او كه ﴿لا﴾ ناهيه وى نو بيا هم دا نه لازميږى چه د معطوف عليه قيد هم په هغې كښې ملحوظ وى اوداسې اوئيلې شى چه د بول كولو په حالت كښې په لوښى كښې ساه وانخستلې شى، بلكه دا يو مستقل حكم دې، چه د هغې د حالت بول سره هيڅ تعلق نشته. (٧)

**د دې جملې د ماقبل جملو سره مناسبت:** دلته د استنجاء د آدابو بيان شروع دې، په ظاهره

---

١) صحيح ابن خزيمه ج ١ ص ٤٣، كتاب الطهارة، باب النهى عن الاستطابة باليمين، رقم ٧٩
٢) الاوسط لابن المنذر ج ١ ص ٣٣٩، كتاب اداب الوضوء، باب مس الذكر باليمين رقم ٢٨٩
٣) اوګورئ: الجامع الصحيح للبخارى برواية ابى ذر الهروى ج ١ ص ٩٣ .
٤) فتح البارى ج ١ ص ٢٥٤
٥) صحيح مسلم، كتاب الطهارة، باب النهى عن الاستنجاء باليمين رقم ٦١٣
٦) فتح البارى ج ١ ص ٢٥٥
٧) پورته حواله

کښې ئې د شرب او تنفس فی الاناء سره هيڅ تعلق نشته!
خو وئيلې کيدې شي چه د اهل ايمان په باره کښې غالبه دا ده چه هغه د رسول اللهﷺ په هر عمل کښې اقتدا کول غواړي او د رسول اللهﷺ معمول وو چه کله به ئې متيازې کولې نو اودس به ئې کولو. بيا دا هم ثابته ده چه رسول اللهﷺ د اودس نه پس بچ شوي اوبه څکلې دي. صاحب ايمان به د رسول اللهﷺ په اقتداء کښې هم دغه شان کوي. نو رسول اللهﷺ ددې معاملې په ذهن کښې ساتلو سره د شرب ادب هم بيان کړو چه په لوښي کښې دې ساه وانخستلې شي. (١) والله اعلم

## ⑳ بَابُ الِاسْتِنْجَاءِ بِالْحِجَارَةِ

**د مخکښې باب سره مناسبت** : د دې باب د ماقبل سره مناسبت د ابواب استنجاء په اِعتبار سره بالکل ظاهر دې.
**د ترجمة الباب مقصد** : د ترجمة الباب په مقصد باندې د ځان پوهه کولو نه مخکښې په دې خان پوهه کړه چه د جمهور علماء کرامو مسلك دا دې چه په استنجاء کښې افضل خو دا ده چه حجر ماء (کاڼړي او اوبه) دواړه جمع کړي. د دې نه روستو افضل اکتفاء بالماء ده. بيا د دې نه روستو د اکتفاء بالحجر درجه ده. (٢)
په شيعه ګانو کښې د فرقه زيديه او قاسميه وينا ده چه د اوبو په موجودګئ کښې اکتفاء بالاحجار صحيح نه دې. (٣)
امام بخاريؒ ترجمه مطلق ذکر کولو سره د دويم قول ترديد کړې دې او دا ئې ثابته کړې ده چه رسول اللهﷺ په کاڼړو باندې اکتفاء کړې ده او په دې روايت کښې هيڅ تعرض نشته چه اوبه وې يا نه وې، لهذا چه کله د اوبو د نيشت والی قيد په روايت کښې نشته نو استنجاء بالاحجار به مطلقا جائز وی. (٤)
حضرت شيخ الحديثؒ فرمائی چه زما په نزد زياته غوره دا ده چه امام بخاريؒ دا بيانول غواړی چه استنجاء په حقيقت کښې مطهر او امر تعبدی دې لکه چه شوافع او جنابله وائی. يا مقلل نجاست او امر معقول دې. لکه چه احناف او مالکيان وائي. (٥)

...

١) فتح الباري ج ١ ص ٢٥٥
٢) اوګورئ: رد المحتار ج ١ ص ٢٤٨
٣) المجموع شرح المهذب ج ٢ ص ١٠١
٤) فتح الباري ج ١ ص ٢٥٥، وعمدة القاري ج ٢ ص ٢٩٨
٥) الكنز المتواري ج ٣ ص ٣٨

١٥٤ : حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مُحَمَّدٍ الْمَكِّيُّ قَالَ حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ يَحْيَى بْنِ سَعِيدِ بْنِ عَمْرٍو الْمَكِّيُّ عَنْ جَدِّهِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ (١) قَالَ اتَّبَعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَخَرَجَ لِحَاجَتِهِ فَكَانَ لَا يَلْتَفِتُ فَدَنَوْتُ مِنْهُ فَقَالَ ابْغِنِي أَحْجَارًا أَسْتَنْفِضْ بِهَا أَوْ نَحْوَهُ وَلَا تَأْتِنِي بِعَظْمٍ وَلَا رَوْثٍ فَأَتَيْتُهُ بِأَحْجَارٍ بِطَرَفِ ثِيَابِي فَوَضَعْتُهَا إِلَى جَنْبِهِ وَأَعْرَضْتُ عَنْهُ فَلَمَّا قَضَى أَتْبَعَهُ بِهِنَّ ﴾ [٣٦٤٧]

## رجال الحديث

① **احمد بن محمد المكى** : دا احمد بن محمد بن الوليد بن عقبه مكى ازرقى رحمه الله دي، د هغه كنيت ابو الوليد يا ابو محمد دې. دا د صاحب اخبار مكه علامه ابو الوليد محمد بن عبدالله ازرقى رحمه الله نيكه دې. (٢)

هغه د امام مالك، سفيان بن عيينه، عمرو بن يحيى سعدى او امام شافعي رحمهم الله نه روايت حديث كوى.

د هغه نه په روايت كونكو كښې امام بخارى، امام ابو حاتم رازى، يعقوب فسوى، عبدالله بن احمد بن ابى ميسره، او د هغه نمسى ابو الوليد ازرقى رحمهم الله وغيره حضرات دى. (٣)

امام ابن سعد رحمه الله فرمائى : ﴿ثقة، كثير الحديث﴾ (٤)

امام ابو حاتم رازى، ابو عوانه اسفرائينى، حافظ ذهبى او حافظ ابن حجر رحمهم الله فرمائى ﴿ثقة﴾ (٥)

امام ابن حبان رحمه الله هغه په كتاب الثقات كښې ذكر كړې دې. (٦)

په ٢١٧ هجرى يا ٢٢٢ هجرى كښې وفات شوې دې. بعض حضراتو ٢١٢ هجرى ته د وفات كال وئيلې دې، كوم چه په ظاهره كښې صحيح نه دې. (٧) والله اعلم

**تنبيه** : هم د هغه په نوم كښې شريك يو بل راوى دې، د هغه نوم احمد بن محمد بن عون القواس دې، هغه د بقى بن مخلد ، مطين او محمد بن على الصائغ وغيره استاذ دې.

---

١) قوله : عن ابى هريرة الحديث اخرجه البخارى فى صحيحه ج ١ ص ٥٤٤ كتاب المناقب، باب ذكر الجن رقم ٣٨٦٠

٢) اوګورئ. تهذيب الكمال ج ١ ص ٤٨٠

٣) د شيوخ او تلامذه د تفصيل دپاره اوګورئ تهذيب الكمال ج ١ ص ٤٨٠، ٤٨١

٤) الطبقات لابن سعد ج ٥ ص ٥٠٢

٥) الجرح والتعديل ج ٢ ص ٢٦، رقم ١٢٨، وتهذيب الكمال ج ١ ص ٤٨١، والكاشف ج ١ ص ٢٠٣، رقم ٨٤، وتهذيب التهذيب ج ١ ص ٧٩، رقم ١٣٤، وتقريب التهذيب ص ٨٤، رقم ١٠٤

٦) الثقات لابن حبان ج ٨ ص ٧، رقم ١٢٠٣٥

٧) اوګورئ: الكاشف ج ١ ص ٢٠٣، رقم ٨٤، وتقريب التهذيب ص ٨٤، رقم ١٠٤، و الثقات لابن حبان ج ٨ ص ٧، رقم ١٢٠٣٥، وطبقات الشافعية الكبرى ج ٢ ص ٦٤، رقم ٩

بعض حضراتو دا دواړه شخصيات يو کړي دي، خو حقيقت دا دي چه دا دواړه جدا جدا شخصيات دي. (١) والله اعلم

② **عمرو بن يحيى بن سعيد بن عمرو المكي** : دا عمرو بن يحيى بن سعيد بن عمرو بن سعيد بن العاص بن اميه قرشي اموي مکي رحمه الله دي، د هغه کنيت ابو اميه دي. (٢)

هغه د خپل پلار يحيى بن سعيد بن عمرو او د خپل نيکه سعيد بن عمرو رحمهما الله نه روايت کوي.

د هغه نه په روايت کونکو کښ سفيان بن عيينه، روح بن عباده، ابو النضر هاشم بن القاسم، احمد بن محمد ازرقي، موسى بن اسماعيل رحمهم الله وغيره دي. (٣)

امام ابن معين رحمه الله فرمائي : ﴿صالح﴾(٤)

هم دغه شان فرمائي : ﴿لا بأس به﴾(٥)

امام دارقطني رحمه الله فرمائي : ﴿ثقة﴾(٦)

ابن حبان رحمه الله هغه په کتاب الثقات کښ ذکر کړي دي. (٧)

حافظ ذهبي رحمه الله فرمائي : ﴿صالح﴾(٨)

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي : ﴿ثقة﴾(٩)

ابن عدي رحمه الله د هغه تذکره په خپل کتاب الکامل کښ کړې ده، خو د هغه په حق کښ ئې د ضعف څه خبره نه ده کړې، بلکه صرف دوه احاديث ئې ذکر کړي دي، چه په هغې کښ هغه متفرد دي، ظاهره ده چه دومره خبره د ضعف باعث نه شي کيدي، او حال دا چه توثيق ئې ثابت شده دي. (١٠) رحمه الله رحمة واسعة

③ **عن جده** : دا سعيد بن عمرو بن سعيد بن العاص بن اميه قرشي اموي رحمه الله دي، ابو عثمان ئې کنيت دي، ابو عنبسه هم ورته وئيلې شي، په اصل کښ د مدينې منورې دي، د

---

١) د تفصيل دپاره اوګورئ: تهذيب الكمال ج ١ ص ٧٩، ٨٠، رقم ١٣٥
٢) تهذيب الكمال ج ٢٢ ص ٢٩٤، رقم ٤٤٧٤
٣) د شيوخ او تلامذه د تفصيل دپاره اوګورئ: تهذيب الكمال ج ٢٢ ص ٢٩٥
٤) الجرح والتعديل ج ٣ ص ٩٨٥، رقم ١١١٩
٥) تهذيب التهذيب ج ٨ ص ١٠٤، رقم ١٩٩
٦) پورته حواله
٧) الثقات لابن حبان ج ٨ ص ٤٨١، رقم ١٤٥٤٩
٨) الكاشف ج ٢ ص ٩١، رقم ٤٢٥١
٩) تقريب التهذيب ص ٤٢٨، رقم ٥١٣٨
١٠) الكامل لابن عدي ج ٥ ص ١٢٢، رقم ١٢٨٨، وهدى الساري ص ٤٣٢، وتهذيب التهذيب ج ٨ ص ١٠٤، رقم ١٩٩

خپل پلار سره په دمشق کښې اوسيدو، د والد د قتل کيدو نه پس هغه د خپل کور والو سره عبدالملك بن مروان حجاز ته ليږلې وو، روستو دې په کوفه کښې اوسيدو. (۱)

هغه د رسولُ الله ﷺ نه مرسلا روايت کوی، په صحابه کرامو رضي الله عنهم کښې د سيدنا عبدالله بن الزبير، عبْدالله بن عباس، عبدالله بن عمر، عبدالله بن عمرو، د خپل والد محترم عمرو بن العاص، معاويه، ابوهريره او عائشه رضي الله عنهم وغيره نه روايت حديث کوی.

د هغه نه په روايت کونکو کښې د هغه ځامن اسحاق بن سعيد، خالد بن سعيد، عمرو بن سعيد او نمسي عمرو بن يحيي بن سعيد شامل دی، د هغوی نه علاوه پکښې اسود بن قيس، بکر بن الأسود، خالد بن سلمه، السائب او امام شعبه رحمهم الله وغيره حضرات شامل دی. (۲)

امام ابو زرعه او امام نسائی رحمهما الله فرمائی: ﴿ثقة﴾ (۳)

امام ابو حاتم رحمه الله فرمائی: ﴿صدوق﴾ (٤)

کنانی د ابو حاتم نه د هغه په باره کښې ﴿ثقة﴾ نقل کړې دی. (۵)

حافظ ذهبی رحمه الله فرمائی: ﴿وكان ثقة، نبيلا، من كبار الاشراف﴾ (٦)

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی: ﴿ثقة﴾ (۷)

ابن حبان رحمه الله هغه په "كتاب الثقات" کښې ذکر کړې دی. (۸) رحمه الله تعالى رحمة واسعة

④ **حضرت ابوهريره رضي الله عنه:** د حضرت ابوهريره (رض) حالات په "كتاب الايمان" کښې د "باب أمور الايمان" لاندې تيرشوی دی. (۹)

**قوله: اتَّبَعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَخَرَجَ لِحَاجَتِهِ فَكَانَ لَا يَلْتَفِتُ:** سيدنا ابوهريره رضي الله عنه فرمائی چه زه په رسول الله ﷺ پسې روان شوم، رسول الله ﷺ د خپل حاجت دپاره وتلې وو، رسول الله ﷺ به يو خوا بل خوا نه متوجه کيدو.

د نبی کريم ﷺ عادت شريف دا وو چه په تلو کښې به ئې اخوا ديخوا نه کتل، دا د حيا او وقار په وجه وو.

---

۱) اوګورئ: تهذيب الكمال ج ۱۱ ص ۱۸، ۱۹، رقم ۲۳۳۲
۲) د شيوخ او تلامذه د تفصيل دپاره اوګورئ: تهذيب الكمال ج ۱۱ ص ۱۹
۳) پورته حواله
٤) الجرح والتعديل ج ٤ ص ٤۸، رقم ۲۰۹
۵) تهذيب التهذيب ج ٤ ص ٦۸، رقم ۱۱۵. والتعديل والتجريح للباجی ج ۳ ص ۱۰۹۱، رقم ۱۲۸۵
٦) تاريخ الاسلام ج ۸ ص ۱۱٦
۷) تقريب التهذيب ص ۲۳۹، رقم ۲۳۷۰
۸) الثقات لابن حبان ج ٦ ص ۳۵۳، رقم ۸۰٦۹
۹) كشف الباري: ۱۱ ٦۵۹.

**قوله**: فَدَنَوْتُ مِنْهُ: زه رسول الله ﷺ ته نزدې شوم!

**قوله**: فَقَالَ ابْغِنِي أَحْجَارًا: رسول الله ﷺ اوفرمائيل زما دپاره كانړې راوړه يا د كانړو په لټون كښ زما مدد اوكړه!

﴿ ابغنى ﴾ يا خو مجرد دې او همزه وصليه ده، د ﴿ بغى يبغى ﴾ معنى د طلب كولو ده او د تلاش كولو ده. وئيلې شى ﴿ بغيتك الشئ، اى طلبته لك ﴾ او يا دا مزيد فيه يعنى د باب افعال نه دې. په دې صورت كښ به همزه قطعى وى، د دې معنى به وى: په طلب كښ مدد كول او اعانت كول. پس وئيلې شى: ﴿ ابغيته الشئ: اى اعنته على طلبه ﴾ يعنى ما د هغه په طلب كښ معاونت اوكړو. (۱)

دلته اگر چه په دواړه طريقو لوستلې شوې دى، خو په مجرد سره لوستل ئې اولى دى، ځكه چه د اسماعيلى په روايت كښ د ﴿ ائتنى ﴾ الفاظ راغلې دى. (۲)

**قوله**: أَسْتَنْفِضْ بِهَا: چه زه په هغه كانړو او لوټو باندې استنجاء اوكړم.

قزاز رحمه الله فرمائى چه ﴿ استنفاض ﴾ د ﴿ نفض ﴾ نه اخستلې شوې دې. د دې معنى يو څيز ته د حركت وركولو او سنډلو ده، چه د هغې دپاسه نه دوړه پاسيږى. دلته د ﴿ استنفض ﴾ په ځائې ﴿ استنظف ﴾ كيدل پكار دى، خو روايت ﴿ استنفض ﴾ دې. (۳)

خو حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى چه ﴿ استنفض ﴾ چه كوم په روايت كښ راغلې دې هغه بالكل صحيح دې، پس په قاموس كښ دى ﴿ استنفضه : استخرجه وبالحجر استنجى ﴾ (٤) او په حقيقت كښ د مطرزى د كلام نه اخستلې شوې دې پس هغه فرمائى!

﴿ الاستنفاض : الاستخراج، ويكنى به عن الاستنجاء، ومنه حديث ابن مسعود : ائتنى بثلاثة احجار استنفض بها، والقاف والصاد غير المعجمة تصحيف ﴾ (۵)

يعنى د استنفاض معنى د يو څيز ويستل دى او په دې سره د استنجاء طرف ته اشاره ده، دا په استنقص قاف او صاد مهمله سره لوستل تصحيف او غلطى ده. (۶)

**قوله**: أَوْنَحْوَهُ: يا ئې د دې په شان اوفرمائيل!

۱) اوگورئ: تاج العروس ج ۳۷ ص ۱۸۱
۲) فتح البارى ج ۱ ص ۲۵۶
۳) پورته حواله
٤) القاموس المحيط ص ٤٨۶، مادة نقض
۵) المغرب ج ۲ ص ۳۱۹
٦) اوگورئ: فتح البارى ج ۱ ص ۲۵۶

د اسماعیلی په روایت کښې د ﴿ استنجی ﴾ الفاظ دی، په دې وجه کیدې شی چه د ﴿ نحوه ﴾ نه هم دا مراد وی. او یو راوی دا په تردد سره روایت کړې وی. (۱)

**قوله: وَلَا تَأْتِنِي بِعَظْمٍ وَلَا رَوْثٍ:** او هډوکې او غوشیان مه راوړه!

رسول الله ﷺ چه کله دا اوفرمائیل چه زما دپاره کاڼی راوړه نو فورا ئې ورسره دا هم اووې چه هډوکې او غوشیان مه راوړه! کیدې شی چه ابوهریره رضی الله عنه دا خیال کړې وو چه د کاڼی ذکر هسې د مثال دپاره کړې شوې دې، کینې هر اوچ څیز مراد دې، رسول الله ﷺ د دې وهم د دفع کولو دپاره ﴿ ولاتاتنی بعظم ولا روث ﴾ اوفرمائیل.

د دې نه په طور د مفهوم معلومه شوه چه د دې نه علاوه په باقی ټولو څیزونو سره استنجاء کیدې شی، په دې کښې د اهل ظواهر تردید کیږی چه وائی چه د استنجاء بالجامد جواز صرف د حجر سره مخصوص دې. د دې نه علاوه په باقی جامدات سره استنجاء جائز نه ده.

سیدنا ابوهریره رضی الله عنه د رسول الله ﷺ نه نقل کړی دی!

﴿ نهی ان یستنجی بروث اوعظم، وقال انهما لایطهران ﴾ (۲)

یعنی رسول الله ﷺ په غوشیانو یا هډوکی سره د استنجاء کولو نه منع فرمائیلې ده، او فرمائیلې ئې دي چه دا دواړه څیزونه پاکول نه کوی.

امام دارقطنی رحمه الله د دې حدیث د نقل کولو نه پس فرمائی: ﴿ اسناده صحیح ﴾ (۳)

محقق ابن الهمام رحمه الله دې روایت ته کتلو سره دا خبره لیکلې ده چه د دې نه معلومیږی چه په کومو څیزونو سره استنجاء کولې شی. مثلا کاڼی هغه مطهر دی، ځکه چه که مطهر نه وې. نو په دې سره به د استنجاء اجازت نه شو ورکولې. (٤)

خو د دې په سند کښې سلمه بن رجاء راوی دې. (۵)

امام ابن عدی رحمه الله په الکامل کښې هم د هغه د ترجمې د لاندې دا روایت ذکر کړې دې او لیکلې ئې دی! ﴿ ولسلمه بن رجاء غیر ما ذکرت من الحدیث، واحادیثه افراد وغرائب، ویحدث عن قوم باحادیث لایتابع علیه ﴾ (٦)

یعنی د سلمه بن رجاء د ذکر شوې احادیثو نه علاوه هم څه روایتونه دی، د هغه احادیث غریب او د افرادو د قبیل نه دی، دې د مختلف خلقو نه داسې احادیث راوړی چه د هغوی متابعت نه شی کولې.

---

۱) پوره حواله

۲) سنن الدارقطنی ج ۱ ص ۸۸، کتاب الطهارة، باب الاستنجاء رقم ۱۵۲ .

۳) پورته حواله

٤) فتح القدیر ج ۱ ص ۲۱٤، فصل فی الاستنجاء

۵) اوګورئ: سنن الدارقطنی ج ۱ ص ۸۸، کتاب الطهارة، باب الاستنجاء رقم ۱۵۲

٦) الکامل لابن عدی ج ۳ ص ۳۳۲

امام یحیی بن معین رحمه الله فرمائی : ﴿ لیس بشئ ﴾(۱)
امام نسائی رحمه الله فرمائی : ﴿ ضعیف ﴾(۲)
امام دارقطنی رحمه الله فرمائی : ﴿ ینفرد عن الثقات باحادیث ﴾(۳)
خو امام ابو زرعه رحمه الله فرمائی : ﴿ صدوق ﴾(٤)
امام ابو حاتم رحمه الله فرمائی : ﴿ ما بحدیثه باس ﴾(۵)
ابن حبان رحمه الله هغه په کتاب الثقات کښې ذکر کړې دې. (۶)
حافظ ذهبی رحمه الله هغه په خپل کتاب من تکلم فیه وهو موثق کښې ذکر کړې دې. (۷)
دې ټولو اقوالو باندې نظر کولو نه پس وئیلې کیدې شی چه د هغه دا حدیث د حسن درجې نه ښکته نه دې.

**صرف په کاڼړی سره استنجاء کولې شی یا هر نجاست لرې کونکی باندې استنجاء صحیح ده؟:** دلته یوه مسئله واورئ، ایا کوم څیزونه چه جامد وی او نجاست لرې کونکې وی ایا په هغې ټولو سره استنجاء کیدې شی یا که صرف په کاڼړی سره به کولې شی؟
د داؤد ظاهری طرف ته نسبت کولې شی چه صرف په حجر سره جائز ده، ځکه چه په حدیث کښې صرف په حجر سره استنجاء کول مذکور دی.
جمهور علماء کرام فرمائی چه د عظم او روث نه علاوه چه کوم څیزونه طاهر او قالع للنجاسة وی، په هغه ټولو سره استنجاء جائز ده، خو روث او عظام یا د هغې نه علاوه چه کوم څیزونه د هغې په حکم کښې وی، په هغې سره استنجاء جائز نه ده. (۸)
د جمهورو دلیل حدیث الباب دې چه په هغې کښې رسول الله ﷺ اول اوفرمائیل : ﴿ ابغنی احجارا، استنفض بها ﴾ یعنی زما دپاره د استنجاء دپاره کاڼړی راوړه. بیا ئې د دې نه روستو اوفرمائیل : ﴿ ولا تاتنی بعظم ولا روث ﴾ یعنی هډوکې او غوشیان مه راوړه!
هم دغه شان په بل حدیث کښې دی! ﴿ کان یامر بثلاثة احجار، ونهی عن الروث والرمة ﴾ (۹)

---

۱) الجرح والتعدیل ج ٤ ص ۱۶۰، رقم ۷۰۵
۲) الضعفاء للنسائی ص ٤۷، رقم ۲٤۲، تهذیب السنن ج ٤ ص ۱۲۷، رقم ۲٤۸
۳) پورته حواله
٤) الجرح والتعدیل ج ٤ ص ۱۶۰، رقم ۷۰۵
۵) پورته حواله
۶) الثقات لابن حبان ج ۸ ص ۲۸۶، رقم ۱۳٤۷۳
۷) ذکر من تکلم فیه وهو موثق ص ۹۲ رقم ۱٤۲
۸) اوګورئ : المجموع شرح المهذب ج ۲ ص ۱۱۳
۹) سنن النسائی، کتاب الطهارة، باب النهی عن الاستطابة رقم ٤۰

يعنى رسول اللهﷺ اوفرمائيل چه په دې کاڼرو باندې استنجاء کول پکار دى او په غوشيانو او زړو هډوکو باندې ئې د استنجاء نه منع اوفرمائيله.

د دې احاديثو نه صفا معلوميږى چه د حجر نه علاوه په نورو جامد څيزونو باندې استنجاء کيدلې شى، ګينې د روث او عظام نه د منع کولو هيڅ معنى نه پاتې کيږى.

هم دغه شان ابن مسعود رضي الله عنه چه د رسول اللهﷺ دپاره کله دوه کاڼړى او د سپياکې ټکړه راوړه نو رسول اللهﷺ کاڼړى واخستل او سپياکه ئې ګزار کړه او وې فرمائيل: ﴿ هذا رکس﴾(۱) چه دا ناپاکه ده.

د دې نه معلومه شوه چه د دې د رد کولو وجه د دې ناپاکى ده، نه غير حجر کيدل. (۲)

**په کومو څيزونو سره چه استنجاء جائز نه ده د هغې علت** : روث او عظام او کوم څيزونه چه د دې په حکم کښې دى په هغې سره استنجاء جائز نه ده د دې علت دا بيان کړې شوې دې چه دا طعام الجن دې، په احاديثو باندې د نظر کولو نه معلوميږى چه عظم طعام الجن دې او روث د هغوى د څاروو خوراک دې، هم دغه شان د ابو نعيمؒ د روايت نه معلوميږى چه بعض روثات خو طعام الجن دې او بعض د هغوى د څاروو دپاره دى.

د دې نه معلومه شوه چه څنګه انسان په يو مطعوم څيز سره استنجاء نه کوى، هم دغه شان د جنات او حيوانات په مطعوماتو سره هم استنجاء کول ممنوع دى.

هم دغه شان چه کوم څيز مطعوم وى هغه قيمتى وى، لهذا د دې ځائې نه دا نتيجه راوتله چه کوم قيمتى څيز وى په هغې سره به استنجاء نه شى کولې.

بله دا چه په هډوکى سره بعض وخت د زخمى کيدو خطره وى، د دې نه معلومه شوه چه کوم څيزونه مضر دى په هغې سره استنجاء کول جائز نه دى.

بيا بعض وخت په هډوکى کښې غوړوالې وى، په هغې کښې د نجاست د جذب کولو يا ختمولو خاصيت نه وى، لهذا داسې څيز چه په هغې سره نجاست نه ختميږى په هغې سره استنجاء صحيح نه ده.

هم دغه شان "روث" د جمهور علماء کرامو په نزد ناپاک دې نو د دې نه معلومه شوه چه کوم څيز ناپاک وى په هغې سره استنجاء کول جائز نه دى. (۳)

**د عظم او روث د جناتو د خوراک کيدو تحقيق** : اوس شاته ذکر راغلې دې چه د عظم او روث د راوړلو نه چه رسول اللهﷺ منع فرمائيلې ده، د دې علت د هغه څيزونو د د جناتو خوراک کيدل دى، پس په دې کښې په بعض طرق کښې منقول دى چه کله رسول اللهﷺ ﴿ ابغنى احجارا استنفض بها، ولا تاتنى بعظم ولا روث ﴾ اوفرمائيل نو سيدنا ابوهريره رضي الله عنه تپوس اوکړو ﴿ ما بال العظم والروثة ﴾ يعنى د عظم او د روث د ممانعت څه وجه ده؟ رسول اللهﷺ ارشاد اوفرمائيلو:

---

۱) صحيح البخارى ج ۱ ص ۲۷، کتاب الوضوء، باب لا يستنجى بروث رقم ۱۵۶
۲) اوګورئ: المجموع شرح المهذب ج ۲ ص ۱۱۳
۳) د تفصيل دپاره اوګورئ: فتح البارى ج ۱ ص ۲۵۶

﴿ هما من طعام الجن، وانه اتاني وفد جن نصيبين، ونعم الجن، فسالوني الزاد، فدعوت الله لهم لا يمروا بعظم ولا بروثة الا وجدوا عليها طعاما ﴾(١)

يعنى دا دواړه څيزونه د جناتو خوراك دي، ماته د مقام نصيبين د جناتو وفد راغلو او دا ډېر ښه جنات دي؛ هغوى زما د خپل خوراك په باره كښې تپوس اوكړو نو ما د الله پاك نه دعا اوكړه چه دا خلق چه كله هم په يو هډوكي يا روث باندې تيرېږي نو په هغې دې هغوى ته خوراك ملاويږي.

خلاصه دا ده چه جناتو د رسول الله ﷺ نه د خوراك سوال كړې وو، رسول الله ﷺ د هغوى دپاره دعا كړې وه چه په كوم عظم او روث باندې چه دوى تيرېږي په هغې باندې دې خوراك بيا مومي، يعنى په هډوكي باندې غوښه او په روث كښې دې ورته غله يا ګيا ملاويږي، حاصل دا چه عظم او روث د جناتو خوراك دې.

په دې روايت كښې خو اجمال دې، چه د هغې نه په ظاهره دا معلوميږي چه عظم او روث دواړه د جناتو خوراك دې، خو كيدې شي چه عظم طعام جن وي او روثه د دواب جن خوراك وي.

امام مسلم رحمه الله د سيدنا عبدالله بن مسعود رضي الله عنه نه يو روايت نقل كړې دې، چه په هغې كښې د جناتو د وفد سره د ملاقات ذكر دې، په هغې كښې دا هم دي چه؛

﴿ لكم كل عظم ذكر اسم الله عليه، يقع في ايديكم اوفر مايكون لحما، وكل بعرة علف لدوابكم ﴾(٢)

يعنى هر هغه هډوكې چه په هغه باندې د الله پاك نوم اخستلې شوې وى هغه به ستاسو لاسونه ته د غوښې نه ډك راځي او هره سوټه به ستاسو د څاروو دپاره ګيا جوړيږي. والله اعلم

**د مسلم شريف اود ترمذى شريف د روايت تعارض اود هغې دفعيه** : اوس چه مونږ د مسلم كوم روايت ذكر كړې دې په دې كښې الفاظ داسې دى چه ﴿ لكل عظم ذكر اسم الله عليه ﴾(٣) خو دا روايت امام ترمذى رحمه الله راوړې دې، په هغې كښې ﴿ كل عظم لم يذكر اسم الله عليه ﴾(٤) الفاظ راغلې دى.

د اول حديث نه معلوميږي چه د جناتو خوراك هغه هډوكى دى چه په هغې باندې بسم الله لوستلې شوې وى، يعنى مذبوحه څاروى وى او د دويم حديث نه معلوميږي چه هغه هډوكى به خوراك جوړيږي چه په هغې باندې بسم الله نه وى لوستلې شوې، يعنى غير مذبوحه مردار څاروى وى، دغه شان د يو روايت په الفاظو كښې اختلاف راغلو.

اصل خبره دا ده چه د دې روايت مدار په داؤد بن ابى هند باندې دې، هغه د شعبى نه نقل

---

١) صحيح البخاري ج ١ ص ٥٤٤. كتاب المناقب. باب ذكر الجن رقم ٣٨٦٠

٢) صحيح مسلم. كتاب الصلاة. باب الجهر بالقراءة في الصبح والقراءة على الجن. رقم ١٠٠٧

٣) پورته حواله

٤) جامع الترمذي. ابواب التفسير باب ومن سورة الاحقاف ٣٥٦٧

كوى، هغه د علقمه نه او هغه د ابن مسعود رضي الله عنه نه.

بيا د داؤد بن ابى هند نه روايت كونكي عبد الاعلى بن عبد الاعلى، ابن ابى زائده، وهيب بن خالد، يزيد بن زريع، اسماعيل بن ابراهيم، ابن ابى عدى او بشر بن المفضل دي.

د دوى نه ابن ابى زائده خو صرف ﴿كل عظم ذكر اسم الله عليه﴾ نقل كوى، نور الفاظ نه نقل كوى.(۱)

او د عبد الاعلى نه محمد بن مثنى جدا جدا روايتونو كښې دواړو طريقو سره نقل كوى. (۲) هم دغه شان د اسماعيل بن ابراهيم نه هم دواړه قسم الفاظ منقول دى. (۳)

د هغه نه علاوه وهيب بن خالد. يزيد بن زريع. ابن ابى عدى او بشر بن مفضل صرف د ﴿كل عظم لم يذكر اسم الله عليه﴾ الفاظ نقل كوى. (٤) نور الفاظ نه نقل كوى.

د امام مسلم رحمه الله د طرز نه معلوميږى چه هغه صرف د ﴿كل عظم ذكر اسم الله عليه﴾ الفاظ راجح ګڼړى، په دې وجه هغه د ټولو نه اول دا حديث د ﴿محمد بن المثنى، عن عبد الاعلى بن عبد الاعلى، عن داؤد بن ابى هند، عن الشعبى، عن علقمة، عن ابن مسعود﴾ په طريق سره مفصلا نقل كړې دې.

د دې نه روستو ئې د ﴿عن على بن حجر، عن اسماعيل بن ابراهيم، عن داؤد﴾ په طريق سره هم دا روايت نقل كړې دې نو د دې الفاظ ئې مختصرا ذكر كړل او په اول سند ئې احاله اوكړه، خو په دواړو كښې ئې لږ شان فرق اوكړو چه په اول روايت كښې پوره حديث مرفوع وو، او په دويم روايت كښې ئې يوه حصه موقوف منقول ده، كومه چه امام مسلم رحمه الله ﴿وقال الشعبى﴾

---

۱) د ابن ابى زائده روايت ابن خزيمه په خپل صحيح كښې ج ۱ ص ٤٤. كتاب الوضوء. باب ذكر العلة التى من اجلها زجر عن الاستنجاء بالعظام والروث. رقم ۸۲ كښې، بيهقى په دلائل النبوة كښې ج ۲ ص ۲۲۹. جماع ابواب المبعث. باب ذكر اسلام الجن كښې، ابن حبان په خپل صحيح ج ٤ ص ۲۸۰. كتاب الطهارة. باب الاستطابة رقم ۱٤۳۲ كښې او امام احمد په خپل مسند ج ۱ ص ٤۳۶. رقم ٤۱٤۹ كښې تخريج كړې دې

۲) د عبد الاعلى ﴿كل عظم ذكر اسم الله عليه﴾ روايت په صحيح مسلم. كتاب الصلاة. باب الجهر بالقراءة فى الصبح والقراءة على الجن. رقم ۱۰۰۷ كښې او د هغوى روايت ﴿كل عظم لم يذكر اسم الله عليه﴾ په مستخرج ابى نعيم على صحيح مسلم ج ۲ ص ۶۹. كتاب الصلاة. باب كيف كان سبب النزول ﴿قل اوحى الى ...﴾ رقم ۹۹۶ كښې كتلې كيدې شى.

۳) د اسماعيل بن ابراهيم روايت ﴿كل عظم ذكر اسم الله عليه﴾ په صحيح مسلم. كتاب الصلاة. باب الجهر بالقراءة فى الصبح والقراءة على الجن. رقم ۱۰۰۸. مسند احمد ج ۱ ص ٤۳۶. رقم ٤۱٤۹. او په دلائل النبوة ج ۲ ص ۲۲۹ كښې كتلې كيدې شى، او د هغه بل روايت ﴿كل عظم لم يذكر اسم الله عليه﴾ سنن الترمذى (ابواب التفسير. باب ومن سورة الاحقاف رقم ۳۵۶۷. كښې تخريج كړې شوې دې.

٤) د وهيب. يزيد. ابن ابى عدى او بشر بن المفضل روايتونه په مستخرج ابى نعيم ج ۲ ص ۶۹ كښې تخريج كړې شوې دى.

وئيلو سره واضحه کړې ده. (۱)

اوس که په ﴿ ذكر اسم الله عليه ﴾ او ﴿ لم يذكر اسم الله عليه ﴾ کښې د هغوی په نزد اختلاف معتبر وي نو هغوی چه څنګه د نورو اختلافاتو طرف ته اشاره کړې ده، دې اختلاف طرف ته به ئې هم اشاره کړې وې، د دې نه معلومه شوه چه هغوی صرف ﴿ كل عظم ذكر اسم الله عليه ﴾ اوزيدلې دې او هم دا د هغوی په نزد راجح دې.

د دې دواړو روايتونو دتعارض په سلسله کښې د ټولو نه اول ابن العربی رحمه الله کلام فرمائيلې دې پس هغه فرمائی : ﴿ فاما المومن منهم فطعامه ما ذكر اسم الله عليه والروث علف دوابهم، واما الكافر فطعامه ما لم يذكر اسم الله عليه ﴾ (۲)

يعنی د جناتو نه د اهل ايمان طعام هغه دې چه په هغې باندې د الله پاك نوم اخستلې شوې وی او روث د هغوی د څاروو ګيا ده، او په هغوی کښې د کفارو طعام هغه دې چه په هغه باندې د الله پاك نوم اخستلې شوې وی.

د ابن العربی تلميذ ابو القاسم سهيلی رحمه الله دا قول نقل کولو سره فرمائی!

﴿ وهذا القول صحيح، تعضده الاحاديث ﴾ (۳)

يعنی دا قول صحيح دې، احاديث د دې تائيد کوی.

علامه بدر الدين شبلی صاحب په اکام المرجان او امام نووی رحمه الله وغيره هم دغه شان جمع کړې ده. (٤)

صاحب د سيرت حلبيه هم دا تعارض هم دغه شان لرې کړې دې. (۵)

خو حضرت شاه صاحب رحمه الله فرمائی چه دا جمع او تطبيق مفيد نه دې، ځکه چه دا حديث يو دې او د الفاظو اختلاف د راويانو په اختلاف باندې بناء دې، لهذا يا خو به داسې وئيلې شی چه د مسلم شريف روايت د ترمذی په روايت باندې ارجح دې، يا دې بيا د محدثينو په يو بل اوصول باندې عمل اوکړې شی. چه د هغې نه په داسې مواقع باندې د تطبيق کار اخستلې شی او هغه اصول دې : ﴿ حفظ كل ما لم يحفظه الاخر ﴾ يعنی بعض وخت داسې کيږی چه رسول الله ﷺ دوه خبرې ارشاد فرمائيلې وی، يو راوی ته يوه خبره ياد پاتې شوې وی، هغه هغه روايت کړې وی، بل راوی ته بله خبره ياده پاتې شوې وی نو هغه ئې روايت کړې وی، په حقيقت کښې دواړه خبرې په خپل خپل ځائې صحيح وی.

دلته به هم رسول الله ﷺ دا ارشاد فرمائيلې وی چه په هډوکی باندې که د الله پاك نوم

---

۱) صحيح مسلم، كتاب الصلاة، باب الجهر بالقراءة في الصبح والقراءة على الجن، رقم ۱۰۰۷، ۱۰۰۸

۲) عارضة الاحوذی ج ۱۲ ص ۱٤۳، ۱٤٤، ابواب التفسير، تفسير سورة الاحقاف

۳) الروض الانف ج ۱ ص ۲٦۳، خروج النبی ﷺ الی الطائف، فصل فی ذكر وفد جن نصيبين

٤) اوګوره : اكام المرجان ص ۵٦، وشرح النووی علی صحيح مسلم ج ٤ ص ۱۷۰

۵) السيرة الحلبيه ج ۱ ص ۳٦۱، و ۳٦۲، باب ذكر خروج النبی ﷺ الی الطائف

واخستلې شي يا نه؛ په دوارو صورتونو كښې به هغه د جناتو خوراك وي، يو راوى اوله خبره روايت كړه او بل راوى بله خبره.

حضرت شاه صاحب رحمه الله فرمائي چه د تطبيق بين الروايات په سلسله كښې د ﴿حفظ كل مالم يحفظه الاخر﴾ دا اصول ډير مفيد دى، خو محدثينو دا د اصول حديث په كتابونو كښې نه دى ذكر كړى، خو حافظ ابن حجر رحمه الله په فتح البارى كښې په مختلف مقاماتو كښې د دې ذكر كړيدې او د دې نه ئې كار اخستلې دې. (۱)

**په ممنوع څيزونو باندې د استنجاء حكم**: په كومو څيزونو مثلا عظم او روثه باندې د استنجاء نه منع راغلې ده، آيا په هغې باندې به د استنجاء كولو په صورت كښې استنجاء اوشى يا نه؟

د احنافو، مالكيانو او په حنابله كښې به د ابن تيميه رحمه الله په نز د تحريم باوجود استنجاء اوشي. او د شوافعو او حنابله په نزد به استنجاء نه كيږى.

شوافع او حنابله په حديث شريف كښې وارد نهى د تحريم دپاره منى.

احناف وائى چه هغه ټول څيزونه كوم چه جامد وى او نجاست ختمونكي وى، په هغې سره به د استنجاء سنت ادا شى، خو د كومو څيزونه چه په احاديثو كښې ممانعت راغلې دې په هغې سره استنجاء مكروه تحريمى ده، ځكه چه د هغې په استعمال كښې د حديث مخالفت دې، خو چونكه د استنجاء حقيقت قلع نجاست دې او هغه په دې سره حاصليږى په دې وجه استنجاء خو ادا شوه، خو د نهى د مخالفت د وجې نه د كراهت تحريمى ارتكاب لازم شو.

(۲) والله اعلم بالصواب

**قوله**: فَأَتَيْتُهُ بِأَحْجَارٍ بِطَرَفِ ثِيَابِي فَوَضَعْتُهَا إِلَى جَنْبِهِ وَأَعْرَضْتُ عَنْهُ: پس ما هغوى ته په خپله لمن كښې كانړى راوړل او د هغوى خواته مې كيخودل او د هغه ځائې نه مې خپل مخ واړولو!

**قوله**: فَلَمَّا قَضَى أَتْبَعَهُ بِهِنَّ: چه كله رسول الله ﷺ فارغ شو نو هغه ئې استعمال كړل.

**قوله**: قضى: اى قضى حاجته: ﴿اتبعه﴾: د باب افعال نه دې، همزه قطعى ده، دا د استنجاء نه كنايه ده والله اعلم

## بَابُ لَا يُسْتَنْجَى بِرَوْثٍ

**د مخكښې باب سره مناسبت**: په دوارو بابونو كښې مناسبت بالكل واضح دې، په مخكښې باب كښې دا بيان كړې شوې وه چه په كومو كومو څيزونو سره استنجاء كول پكار دى او په

(۱) معارف السنن ج۱ ص ۱۲۶، ابواب الطهارة، باب كراهية ما يستنجى به

(۲) د تفصيل دپاره اوګورئ: البحر الرائق ج ۱ ص ۲۵۵، وحاشية الدسوقى ج ۱ ص ۱۱۴، والمغنى ج ۱ ص ۱۱۶

کومو څیزونه سره نه، په دغه ممنوعه څیزونو کښې د روث ذکر هم کړې شوې وو، اوس امام بخاري رحمه الله صراحة په دې باندې باب منعقد کړو. (۱)

**مقصد ترجمة الباب :** د امام بخاري رحمه الله مقصد غالبا هم دا دې چه ﴿ روث ﴾ باندې استنجاء کول صحیح نه دی.

مونږ شاته په دې سلسله کښې د مذاهبو تفصیل بیان کړې دې، د هغې حاصل دا دې چه حنابله او شافعیه په دې باندې د استنجاء د عدم صحت قائل دی، او احناف او مالکیان په کراهت تحریمی سره د دې خبرې قائل دی چه استنجاء به ئې صحیح شي.

۱۵۵: ﴿حَدَّثَنَا أَبُو نُعَيْمٍ قَالَ حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ قَالَ لَيْسَ أَبُو عُبَيْدَةَ ذَكَرَهُ وَلَكِنْ عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ الْأَسْوَدِ عَنْ أَبِيهِ أَنَّهُ سَمِعَ عَبْدَ اللَّهِ (۲) يَقُولُ أَتَى النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْغَائِطَ فَأَمَرَنِي أَنْ آتِيَهُ بِثَلَاثَةِ أَحْجَارٍ فَوَجَدْتُ حَجَرَيْنِ وَالْتَمَسْتُ الثَّالِثَ فَلَمْ أَجِدْهُ فَأَخَذْتُ رَوْثَةً فَأَتَيْتُهُ بِهَا فَأَخَذَ الْحَجَرَيْنِ وَأَلْقَى الرَّوْثَةَ وَقَالَ هَذَا رِكْسٌ﴾

## رجال الحدیث

① **ابو نعیم :** دا مشهور محدث امام ابو نعیم الفضل بن دکین الملائی الکوفی الاحول رحمه الله دې. د هغه حالات په کتاب الایمان کښې د باب فضل من استبراء لدینه د لاندې تیر شوي دی. (۳)

② **زهیر :** دا زهیر بن معاویه بن حدیج بن الرحیل بن زهیر بن خیثمه جعفی کوفی رحمه الله دې، د هغه حالات هم په کتاب الایمان کښې د باب الصلاة من الایمان د لاندې تیر شوې دی. (٤)

③ **ابی اسحاق :** دا ابو اسحاق عمرو بن عبدالله بن عبید سبیعی کوفی رحمه الله دې، د هغه حالات هم د ذکر شوې کتاب او باب د لاندې تیر شوې دی. (۵)

④ **عبدالرحمن بن الاسود :** دا عبد الرحمن بن الاسود بن یزید بن قیس نخعی کوفی رحمه الله دې. د هغه کنیت ابو حفص دې، بعض حضراتو ئې ابوبکر کنیت بیان کړې دې. (۶)

هغه د سیدنا عمر رضي الله عنه زمانه موندلې ده، هغه د سیدنا انس، ابو الشعثاء، عبدالله بن الزبیر، عائشه رضي الله عنها، علقمه بن قیس او محمد بن زید رحمهم الله وغیره نه روایت حدیث کوی.

---

۱) عمدة القاری ج ۲ ص ۳۰۱
۲) قوله عبدالله الحدیث اخرجه النسائی فی سننه، فی کتاب الطهارة، باب الرخصة فی الاستطابة بحجرین، رقم ٤۲. والترمذی فی جامعه، فی ابواب الطهارة، باب الاستنجاء بالحجرین، رقم ۱۷، وباب الرخصة فی الاستطابة بحجرین رقم ٤۲. وابن ماجة فی سننه فی کتاب الطهارة وسننها، باب الاستنجاء بالحجارة والنهی عن الروث والرمة، رقم ۳۱٤
۳) کشف الباری ج ۲ ص ۶۶۹
٤) کشف الباری ج ۲ ص ۳۶۷، ۳۷۰
۵) کشف الباری ج ۲ ص ۳۷۰ تا ۳۷۵
۶) اوګورئ: تهذیب الکمال ج ۱۶ ص ۵۳۰

هغه نه په روايت كونكو كښې امام اعمش، ابو اسحاق السبيعي، ابو اسحاق شيباني، اسماعيل بن ابي خالد، كليب بن شهاب، عاصم بن كليب، مالك بن مغول او محمد بن اسحاق رحمهم الله وغيره ډير حضرات شامل دي. (۱)

ابن سعد رحمه الله هغه د كوفې په فقهاء كښې شمار كړې دې. (۲)

امام يحيى بن معين، امام عجلي او امام نسائي رحمهم الله فرمائي: ((ثقة)) (۳)

ابن خراش هغه ته ثقه وئيلي دي او فرمائي: ((من خيار الناس)) (٤)

ابن حبان رحمه الله په كتاب الثقات كښې ذكر كړې دې. (۵)

حافظ ذهبي رحمه الله فرمائي: ((من العلماء العاملين)) (۶)

هم دغه شان هغه فرمائي: ((الفقيه الامام بن الامام)) (۷)

د عبدالرحمن بن الاسود رحمه الله د عبادت مخصوص ذوق وو. مالك بن مغول د يو سړي نه نقل كړي دي چه هغه اوليدل چه عبدالرحمن بن الاسود د جمعې د مانځه نه مخكښې شپږ پنځوس ركعتونه اوكړل. (۸)

د حج دپاره لاړو، د هغه په يوه خپه كښې تكليف پيدا شو، د بلې خپې په اسره ئې تر سحره پورې مونځ كولو او د ماسخوتن په اودس ئې د سحر مونځ اوكړو. (۹)

روژې به ئې دومره په كثرت سره نيولې چه وئيلې شي چه د هغه ژبه توره شوې وه. (۱۰)

په رمضان كښې به ئې دولس تراويحې وركولې او د هرې تراويحې ترمينځه به ئې خانله دولس دولس ركعتونه كول. روزانه به ئې هره شپه دريمه حصه قران لوستلو، د اختر په شپه ئې هم د جماعت كولو معمول وو او فرمائيل به ئې چه دا د اختر شپه ده. (۱۱)

د حج او د عمرې شوق او ذوق ئې دومره وو چه اتيا حجونه او عمرې ئې كړې وې او د هر يو دپاره به ئې مستقل سفر كولو. (۱۲)

---

۱) د شيوخ او تلامذه د تفصيل دپاره اوګورئ: تهذيب الكمال ج ۱۶ ص ۵۳۰، ۵۳۱
۲) طبقات ابن سعد ج ۶ ص ۲۸۹
۳) تهذيب الكمال ج ۱۶ ص ۵۳۲
٤) پورته حواله
۵) الثقات لابن حبان ج ۵ ص ۷۸، رقم ۳۹۳۶
۶) الكاشف ج ۱ ص ۶۲۱، ۳۱٤۱
۷) سير اعلام النبلاء ج ۵ ص ۱۱
۸) پورته حواله
۹) تهذيب الكمال ج ۱۶ ص ۵۳۲
۱۰) سير اعلام النبلاء ج ۵ ص ۱۱
۱۱) تهذيب الكمال ج ۱۶ ص ۵۳۲
۱۲) پورته حواله

د مرګ په وخت ئې ژړل، تپوس ترې اوشو د څه د وجې نه ژاړئ؟ وې فرمائيل د قران او د مونځ په باره کښې مې افسوس دې چه حق ئې ادا نه شو، پس د تلاوت کولو دوران کښې وفات شو. (۱)
امام شعبي رحمه الله فرمائی چه علقمه، اسود او عبدالرحمن د داسې کورنۍ سره تعلق ساتی کومه چه الله پاك د جنت دپاره پيدا کړې ده. (۲)

په ۹۹ هجری کښې وفات شوې دې. (۳) رحمه الله رحمة واسعة

⑤ ابيه : دا مشهور تابعی اسود بن يزيد بن قيس نخعي کوفي رحمه الله دې، د هغه حالات په

کتاب العلم کښې د باب من ترك بعض الاختيار مخافة ان يقصر فهم بعض الناس عنه، فيقعوا في اشد منه د لاندې تير شوې دی. (٤)
ابن التين رحمه الله هغه د اسود بن يزيد په ځائې الاسود بن عبد يغوث الزهری منلې دې، کوم چه صريح غلطي ده، ځکه چه اسود زهری خو مسلمان شوې هم نه وو، پاتې لا دا چه د عبدالله بن مسعود رضي الله عنه نه روايت اوکړی.(۵)

⑥ عبد الله : د سيدنا عبدالله بن مسعود رضي الله عنه حالات په كتاب الايمان کښې د باب ظلم دون ظلم د لاندې تير شوې دی. (۶)

**قوله: ليس ابو عبيدة ذكره، ولكن عبد الرحمن بن الاسود عن ابيه :** يعنى ابو عبيده دا نه دې ذکر کړې، خو عبدالرحمن بن الاسود د خپل پلار نه نقل کوی.
د ابو اسحاق د دې کلام مطلب ابن دقيق العيد رحمه الله خو دا بيان کړې دې چه هغه د ابو عبيده نه دا روايت نقل کوی. بلکه د عبدالرحمن بن الاسود نه ئې نقل کوی.
د حافظ ابن حجر رحمه الله وغيره شراح بخاری رائې دا ده چه د ابو اسحاق مطلب دا دې چه! زه اګر چه دا روايت د ابو عبيده نه هم نقل کوم، خو اوس فی الحال ئې د ابو عبيده نه نۀ روايت کوم بلکه د عبدالرحمن بن الاسود نه ئې نقل کوم.
او غالبا د دې وجه دا ده چه ابو عبيده على الصحيح د خپل پلار سيدنا عبدالله بن مسعود رضي الله عنه نه سمع نه ده کړې، لهذا د هغه روايت منقطع دې، د هغه انقطاع د وجې نه ئې هغه پريخودلو او په بل طريق سره، چه موصول وو روايت ئې ذکر کړو.
دا حديث د هغه رواياتو نه دې په کوم باندې چه دارقطني وغيره ناقدين فن اعتراض کړې دې او دې ته ئې منتقد وئيلې دې.

---

۱) پورته حواله
۲) سير اعلام النبلاء ج ۵ ص ۱۲
۳) تقريب التهذيب ص ۳۶۹، رقم ۳۸۰۳
٤) كشف البارى ج ٤ ص ۵۵۳
۵) فتح البارى: ۱\۲۵۷.
٦) كشف البارى ج ۲ ص ۲۵۷

په دې حديث باندې محدثانه حيثيت سره دوه اعتراضات کړې شوې دی؛
**اول اعتراض**: دا دې چه د دې په سند کښې اضطراب دې؛
د دې حديث د اضطراب خلاصه دا ده چه په دې کښې مدار اسناد ابو اسحاق السبيعی دې او دا حديث د هغه ډير شاگردان روايت کوی.
① شريك، ② سفيان ثوری، ③ زهير، ④ يوسف بن ابی اسحاق، ⑤ ابو مريم، ⑥ يزيد بن ابی عطاء، ⑦ معمر، ⑧ ابو شيبه، ⑨ شعبه، ⑩ ورقاء، ⑪ سليمان بن قرم، ⑫ عمار بن رزيق. ⑬ ابراهيم الصائغ. ⑭ اسرائيل. ⑮ عبدالرحمن بن دينار، ⑯ محمد بن جابر، ⑰ صباح بن المزنی، ⑱ روح بن مسافر، ⑲ زکريا بن ابی زائده. ⑳ ابو الاحوص، ㉑ سفيان بن عيينه، ㉒ ابو سنان، ㉓ مالك بن مغول، ㉔ جريج، ㉕ علی بن صالح.
په دې حديث کښې په دوه طريقو سره اضطراب دې: يو دا چه د عبدالله بن مسعود رضي الله عنه او د ابو اسحاق ترمينځه يوه واسطه ده يا دوه واسطې دی؟
زهير او شريك (په يو طريق کښې) د يوسف بن ابی اسحاق، ابو مريم، ابو حماد الحنفی او يزيد بن عطاء دوه واسطې نقل کوی، په دوی کښې د يزيد بن ابی عطاء نه سوا باقی حضرات د ابو اسحاق نه ﴿عن عبدالرحمن بن الاسود، عن ابيه، عن عبدالله بن مسعود رضی الله عنه﴾ نقل کوی، او يزيد بن عطاء ﴿عن عبدالرحمن بن الاسود عن ابيه وعلقمة عن عبدالله﴾ روايت کوی.
د ذکر شوې پنځو شاگردانو نه علاوه ئې باقی ټول شاگردان يوه واسطه نقل کوی.
بيا په دې کښې اختلاف دې چه هغه يوه واسطه څوك دې؟
شريك (په بل طريق کښې)، سفيان ثوری او اسرائيل (د يو طريق مطابق) دا واسطه ابو عبيده بيانوی.
معمر، ابو شيبه، شعبه، ورقاء، سليمان بن قرم، عمار بن رزيق، ابراهيم الصائغ، عبدالرحمن بن دينار، محمد بن جابر، صباح المزنی، روح بن مسافر، شريك (د دريم طريق مطابق)، او اسرائيل (د دويم طريق مطابق) دا واسطه علقمه بن قيس گڼړی.
ابو الاحوص، سفيان بن عيينه، زکريا بن ابی زائده (د يو طريق مطابق) او اسرائيل (د دريم طريق مطابق) دا واسطه عبدالرحمن بن يزيد بيانوی.
ابوسنان دا واسطه هبيره بن مريم بيانوی، او مالك بن مغول، جريج، زکريا بن ابی زائده (د دويم طريق مطابق)، يوسف بن ابی اسحاق (د دويم طريق مطابق)، شريك (د څلورم طريق مطابق)، او علی بن صالح دا واسطه اسود بيانوی. (۱) د لاندې نقشې نه دا خبره نوره هم ذهن ته راتلې شی؛

---

۱) د دې حديث د ټولو طرقو او اضطراباتو د تفصيل دپاره اوگورئ: الالزامات والتتبع علی الصحيحين للدارقطنی ۲۲۷ تا ۲۳۰. مسند عبدالله بن مسعود رضي الله عنه رقم ۹۴. والعلل الواردة فی الاحاديث للدارقطنی ج ۵ ص ۲۳ تا ۳۹

## سیدنا عبدالله بن مسعود رضی الله عنه

- ابوعبیدة بن عبدالله بن مسعود ← ابواسحاق ← ① شریك ← سفیان ثوری ← ① اسرائیل
- الاسود ← عبدالرحمن بن الاسود ← ابواسحاق ← زهیر ← ابومریم ← ② شریك ← ① یوسف بن ابی اسحاق ← ابوحماد الحنفی
- الاسود وعلقمة ← عبدالرحمن بن الاسود ← ابواسحاق ← یزید بن عطاء
- علقمة بن قیس ← ابواسحاق ← معمر ← ابوشیبه ← ورقاء ← سلیمان بن قرم ← عمار بن رزیق ← ابراهیم الصائغ ← عبدالرحمن بن دینار ← محمد بن جابر ← صباح بن المزنی ← روح بن مسافر ← ③ شریك ← ② اسرائیل ← شعبة
- عبدالرحمن بن یزید ← ابواسحاق ← زکریا بن ابی زائده ← ابوالاحوص ← سفیان بن عیینه ← ③ اسرائیل
- هبیرة بن مریم ← ابواسحاق ← ابوسنان
- الاسود ← ابواسحاق ← مالك بن مغول ← ② زکریا بن ابی زائده ← ② یوسف بن ابی اسحاق ← ③ شریك ← علی بن صالح

امام ترمذی رحمه الله د دې روایت د لاندې فرمائی چه د دې حدیث په باره کښې چه ما د امام بخاری رحمه الله نه تپوس اوکړو نو هغوی په خوله هیڅ جواب رانکړو، خو غالبا د هغوی په نزد د زهیر روایت اصح وو، هم په دې وجه هغوی په خپل صحیح کښې دا روایت نقل کړې دې.

هم دغه شان هغه فرمائي چه ما د امام دارمي رحمه الله نه هم تپوس اوکړو هغوی هم څه فیصله اونکړه.

امام نسائي رحمه الله هم غالبا د زهیر روایت راجح ګنړي، هم په دې وجه هغوی هم د هغه د طریق اخراج کړې دې. (۱)

امام ترمذي رحمه الله فرمائي چه د زهیر په مقابله کښې د اسرائیل روایت زما په نزد اشبه او اصح دې، ځکه چه یو خو اسرائیل د ابو اسحاق په احادیثو کښې د ټولو نه اثبت دې، بیا قیس بن الربیع د هغه متابعت هم کړې دې، د اسرائیل اثبت کیدل د دې نه هم ښکاره دی چه عبدالرحمن بن مهدي رحمه الله فرمائي چه ما د سفیان ثوری نه د ابو اسحاق په طریق سره نقل کړې شوې روایات په دې وجه پریخودل چه دا روایات ماته د اسرائیل عن ابی اسحاق په طریق سره ملاؤ شوې دی، اسرائیل هغه احادیث د سفیان په مقابله کښې اتم روایت کوی.

هم دغه شان امام ترمذي رحمه الله فرمائي چه د ابو اسحاق په روایاتو کښې زهیر زیات مضبوط راوی نه دې ځکه چه د هغه سماع د ابو اسحاق نه بالکل په اخری عمر کښې شوې وه، او د ابو اسحاق حافظه په اخری عمر کښې متغیر شوې وه.

امام احمد بن حنبل رحمه الله فرمائی چه کله تاسو د زائده او زهیر نه احادیث واورئ نو بیا د بل چا نه د اوریدلو پرواه مه کوئ، خو که زهیر د ابو اسحاق نه روایت کوی نو د هغې هغه مقام نه دې. (۲)

د امام دارقطني رحمه الله په شان امام علل د دې حدیث د طرق نقل کولو نه پس لیکی !

﴿ وفي النفس منه شيء لكثرة الاختلاف عن ابي اسحاق ﴾(۳) یعنی په دې حدیث کښې کثرت اختلاف ته کتلو سره په زړه کښې یو بې اطمینانی او تردد شان دې.

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي چه د دې حدیث ځومره طرق هم دی، په هغې کښې د ائمه کرامو کلام ته کتلو سره معلومیږی چه په دې کښې راجح دوه طرق دی، یو د اسرائیل روایت، کوم چه د ﴿ اسرائيل عن ابي اسحاق عن ابي عبيدة عن عبدالله بن مسعود رضي الله عنه ﴾ روایت دې او دویم طریق د زهیر دې کوم چه ﴿ زهير عن ابي اسحاق عن عبدالرحمن بن الاسود عن ابيه الاسود عن عبدالله ﴾ روایت دې.

بیا د دې دواړو طرقو ترمینځه د اضطراب معامله پاتې کیږی، پس د تحقیق نه پس دا هم منتفی کیږی، ځکه چه اضطراب هلته متحقق کیږی چرته چه وجوه اضطراب مساوی وی چه په هغې کښې یو ته په بل باندې ترجیح ورکول ممکن نه وی، که یو ته پکښې ترجیح ورکړې شی پس هم هغه مقدم دې، د مرجوح د وجې نه صحیح معلول کیدې نه شی.

هم د دې اضطراب د متحقق او مضر کیدو دپاره دا هم ضروری ده چه د وجوه اختلاف د

۱) سنن النسائي، كتاب الطهارة، باب الرخصة فى الاستطابة بحجرين، رقم (٤٢).
۲) اوګورئ : جامع الترمذی، ابواب الطهارة، باب الاستنجاء بالحجرين. رقم ۱۷، وعلل الترمذی الکبیر ص ۲۸، ۲۹، ابواب الطهارة، باب الاستنجاء بالحجرين، رقم ۱۱
۳) الالزامات والتتبع ص ۲۲۹

مساوي کیدو سره سره د قواعد محدثين مطابق جمع او تطبيق هم متعذر وی.
دلته چه څومره هم روایتونه دی په هغې کښې سوا د دې دوه طرقو نه د ټولو په سندونو کښې کلام دې، چه هر کله هم دا دوه طرق پاتې شو نو اوس مونږ د زهير طريق ته ترجيح ورکوو، د ترجيح وجوه لاندې ليکلې شي!

① يوسف بن اسحاق بن ابی اسحاق په دې روايت کښې د زهير متابعت کړې دې.

② هم دا روايت په معجم طبرانی کښې د ﴿يحيى بن ابي زائدة، عن ابيه عن ابي اسحاق﴾ په سند سره نقل دې، چه په هغې کښې د زهير متابعت موندلې شي.

③ هم دغه شان د زهير په شان امام ابن ابی شيبه رحمه الله د ﴿ليث بن ابي سليم، عن عبدالرحمن بن الاسود عن ابيه عن ابن مسعود﴾ روايت نقل کړې دې، په دې طريق کښې ليث بن ابی سليم اګر چه ضعيف الحفظ دې، خو په استشهاد کښې د هغه روايات معتبر دی.

④ بيا که د زهير د روايت په سياق باندې غور اوکړې شي نو معلوميږي چه ابو اسحاق به اول ﴿ابوعبيدة عن عبدالله﴾ روايت کولو، بيا ئې روستو د دې نه عدول اوکړو او د ﴿عبدالرحمن بن الاسود عن ابيه عن عبدالله﴾ په طريق سره ئې نقل کوی، دا ددې خبرې صراحت دې چه هغه ته دواړه سندونه په ذهن کښې دی، د دې باوجود د يو سند نه اعراض کولو سره بل سند ذکر کوی. د دې مطلب دا شو چه يا خو هغه ته محسوس شوې ده چه ماته د ابو عبيده نه د دې حديث سماع نه ده حاصله، يا ورته دا وریاد شو چه د ابوعبيده د خپل والد محترم نه سماع حاصله نه ده، يا په دې وجه هغه د ابوعبيده د سند نه اعراض اوکړو چه ابو اسحاق په هغې کښې د تدليس نه کار اخستلې وو او په زهير والا طريق کښې تدليس نه وو. (د تدليس متعلق تفصيل به وړاندې راشي) بهر حال د هغه سند نه ئې اعراض کولو سره داسې سند ذکر کړو چه په هغې کښې سند هم متصل دې او تدليس هم پکښې نشته.
هرچه د ابوحاتم، ابو زرعه (۱) او د هغوی په اتباع کښې د امام ترمذی رحمه الله د اسرائيل روايت لره د راجح کولو تعلق دې، پس امام ترمذی رحمه الله د هغې په وجوه ترجيح کښې يوه خو دا خبره کړې ده چه د اسرائيل متابعت قيس بن الربيع کړې دې.
د دې جواب دا دې چه د زهير متابعت قاضی شريك کړې دې او قاضی شريك د قيس بن الربيع نه اوثق دې
د دې نه علاوه مونږ دلته د اسرائيل روايت ته غير ثابت نه وايو بلکه د زهير روايت لره ارجح ثابتول مقصود دی.

هر چه د اسرائيل د ﴿زهير عن ابي اسحاق﴾ په مقابله کښې د اثبت کيدو تعلق دې، نو که دا خبره تسليم هم کړې شي نو بيا هم د اسرائيل په دې روايت کښې د ابو عبيده او د هغه د والد محترم سيدنا عبدالله بن مسعود رضي الله عنه ترمينځه انقطاع خو مسلم ده، او حال دا چه د زهير په

۱) اوګورئ: العلل لابن ابی حاتم ج ۱ ص ٥٣٤، ٥٣٥ رقم ٩٠

طریق کښې اتصال سند دی، انقطاع نشته.
خو د امام ترمذی رحمه الله یو اعتراض پاتې کیږی او هغه دا چه زهیر د ابو اسحاق نه په اخری عمر کښې سماع کړې وه، تر هغه وخته پورې د هغه په حافظه کښې تغیر راغلې وو.
پس د دې جواب دا دې چه دا خبره په خپل ځائې د مسلم کیدو باوجود مونږ ته د قرائنو نه معلومه شوه چه په دې روایت کښې د ابو اسحاق نه په ﴿ عن عبدالرحمن بن الاسود، عن ابیه عن عبدالله ﴾ وئیلو کښې هیڅ غلطی نه ده شوې، ځکه چه متابعات او شواهد په دې گواه دی.
دلته دویم اعتراض دا کولې شی چه د ابو اسحاق سبیعی رحمه الله شمار په مدلسینو کښې دې، شاته مونږ ذکر کړل چه دا ممکنه ده چه ابو اسحاق د ابوعبیده په طریق کښې د تدلیس نه کار اخستلې وی، ځنگه چه هلته د تدلیس امکان دې، د زهیر په طریق کښې هم د تدلیس امکان شته.
پس امام حاکم رحمه الله په خپل کتاب معرفة علوم الحدیث کښې د ابو ایوب سلیمان بن داؤد شاذکونی رحمه الله په حوالې سره نقل کوی، هغه فرمائی چه د زهیر په طریق کښې د ابو اسحاق تعبیر ﴿ لیس ابوعبیدة ذکره ولکن عبدالرحمن بن الاسود عن ابیه ﴾ کښې یو مخفی تدلیس دې، چه هغه دا سې او نه وئیل چه ﴿ ولکن عبدالرحمن بن الاسود ذکره لی عن ابیه ﴾ هغه فرمائی: ﴿ ما سمعت بتدلیس اعجب من هذا ولا اخفی ﴾ ما ددې نه زیات د تعجب نه ډك اوپټ تدلیس نه دې اوریدلې.(۱)
د دې جواب دا دې چه د ابو اسحاق د مدلس کیدو د وجې نه دا احتمال ضرور وو چه په دې کښې تدلیس وی، خو امام بخاری رحمه الله د متابع ذکر کولو سره د دې تدلیس احتمال بالکل ختم کړو، ځکه چه په هغې کښې د تحدیث صراحت موجود دې پس فرمائی ﴿ وقال ابراهیم بن یوسف عن ابیه، عن ابی اسحاق حدثنی عبدالرحمن ﴾ د دې تحدیث د صراحت نه پس د زهیر د طریق نه د تدلیس شبه ختمیږی.
په دې باندې دا وئیلې کیدې شی چه د ابراهیم بن یوسف په باره کښې د علماء کرامو ډیر کلام دې پس!
امام یحیی بن معین رحمه الله فرمائی! ﴿ لیس بشیء ﴾
امام نسائی رحمه الله فرمائی: ﴿ لیس بالقوی ﴾
امام جوزجانی رحمه الله فرمائی ﴿ ضعیف الحدیث ﴾
خو ځنگه چه یو طرف ته په هغه باندې کلام دې نو بل طرف ته د هغه توثیق هم کړې شوې دې پس: امام ابو حاتم رحمه الله فرمائی: ﴿ حسن الحدیث، یکتب حدیثه ﴾
امام دارقطنی رحمه الله هغه ته ثقه وئیلې دې، ابن عدی رحمه الله فرمائی:
﴿ له احادیث صالحة، ولیس بمنکر الحدیث، یکتب حدیثه ﴾

---

۱) معرفة علوم الحدیث ص ۱۰۹، النوع السادس والعشرون فی التدلیس، معرفة المدلسین

ابن المديني رحمه الله فرمائي : ﴿ليس كالثوري مايكون﴾(١)
هم دا فيصله كن خبره ده چه دا د ډير اعلى درجه قوى خو نه دې، خو د هغه د احاديثو اعتبار كيدلې شي او په متابعات او شواهد كښې هغه راوړلې كيدې شي، هم دا وجه ده چه امام بخارى رحمه الله په دې مقام كښې د هغه طريق راوړې دې، ګويا دا د دې خبرې صراحت دې چه هغه د هغه په نزد داسې دې چه د هغه د تحديث صراحت قابل اعتبار او مقبول دې.
دلته د تدليس د منتفى كيدو دويم دليل دا دې چه امام اسماعيلى رحمه الله په خپل مستخرج كښې چه كله دا حديث ذكر كړو نو د ﴿امام يحيى القطان من زهير﴾ په طريق سره ئې نقل كړو، په دې سره هغه د ابو اسحاق په دې حديث كښې په تدليس نه كولو باندې استدلال كړې دې پس هغه فرمائي : ﴿لان يحيى بن سعيد لا يرضى ان ياخذ عن زهير ماليس بسماع لشيخه﴾ يعنى يحيى بن سعيد القطان رحمه الله د زهير نه صرف هم هغه روايت قبلوى كوم چه هغه د خپل شيخ ابو اسحاق نه اوريدلې وى، تدليس لره نه قبلوى. (٢)
اوس سوال دا دې چه يحيى القطان داسې روايات نه اخلى د دې علم څنګه اوشو؟
د دې جواب دا دې چه يا خو به يحيى القطان په څه موقع باندې د دې تصريح كړې وى، او يا د امام اسماعيلى خپله استقراء او تتبع ده، چه د هغې په نتيجه كښې هغه دې خبرې ته اورسيدو چه هغه د تدليس والا روايات نه قبلوى. (٣) والله اعلم

**قوله: أَنَّهُ سَمِعَ عَبْدَ اللَّهِ يَقُولُ أَتَى النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْغَائِطَ :** اسود بن يزيد رحمه الله د عبدالله بن مسعود رضي الله عنه نه واوريدل چه رسول الله ﷺ د قضاء حاجت دپاره تشريف يوړلو!

**قوله: فَأَمَرَنِي أَنْ آتِيَهُ بِثَلَاثَةِ أَحْجَارٍ فَوَجَدْتُ حَجَرَيْنِ وَالْتَمَسْتُ الثَّالِثَ فَلَمْ أَجِدْهُ:** رسول الله ﷺ ماته حكم اوكړو چه زه هغوى دپاره درې كانړى راوړم، ما دوه كانړى اوموندل، دريم مې اولټولو خو او مې نه موندلو.

**قوله: فلم اجده:** ضمير سره د كشميهنى په روايت كښې دې په باقى رواياتو كښې بغير د ضمير نه دې. (٤)

**قوله: فَأَخَذْتُ رَوْثَةً فَأَتَيْتُهُ بِهَا :** ما د خاشنړو يوه ټكړه واخستله او هغه مې رسول الله ﷺ ته راوړه.

---

١) دا ټول اقوال د تهذيب التهذيب ج ١ ص ١٨٣ نه اخستلې شوې دى.
٢) اوګورئ: فتح البارى ج ١ ص ٢٥٨
٣) د پوره بحث دپاره اوګورئ : فتح البارى ج ١ ص ٢٥٨، وهدى السارى ص ٣٤٦ تا ٣٤٨، الفصل الثامن من سياق الحديث التى انتقدها عليه حافظ عصره ابو الحسن الدارقطنى وغيره من النقاد، الحديث الاول، من كتاب الطهارة.
٤) اوګورئ: فتح البارى ج ١ ص ٢٥٧

د ابن خزیمه په یو روایت کښې دې سره د ﴿ روثة حمار ﴾ اضافه هم ده، یعنی دا خاشنړۀ د خر وو.(۱)

تیمی رحمه الله فرمائی چه روث د اس، خچر او خر سره مختص دې.(۲)

**قوله: فَأَخَذَ الْحَجَرَيْنِ وَأَلْقَى الرَّوْثَةَ:** رسول الله ﷺ دواړه کانړی واخستل او خاشنړۀ ئې ګزار کړل.

**قوله: وقال هذا رکس:** رسول الله ﷺ اوفرمائیل: دا رکس دې.

﴿ رکس ﴾ کیدې شی د ﴿ رجس ﴾ په معنی کښې وی، پس د امام ابن ماجه و امام ابن خزیمه په روایت کښې ﴿ رجس ﴾ راغلې دې.(۳)

کیدې شی چه د ﴿ رجیع ﴾ په معنی وی، دې ته رکس ګویا په دې وجه اوئیلې شو چه دا د مطعوم کیدو د حالت نه ګویا د غیر مطعوم طرف ته واپس شو، یا د طهارت نه د نجاست طرف ته واپس شو، یا د مطعوم کیدو نه د روثه طرف ته واپس شو.(٤)

امام نسائی رحمه الله فرمائی: ﴿ الرکس طعام الجن ﴾(۵) یعنی رکس د جناتو خوراك ته وائی.
د امام نسائی رحمه الله دا تفسیر د هیڅ لغت نه نهٔ دې ثابت، که دا معنی د لغت نه ثابته شوې و نو ټول اشکال به ختم شوې وې.

خو حضرت ګنګوهی رحمه الله فرمائی چه د امام نسائی رحمه الله د دې ارشاد ﴿ الرکس طعام الجن ﴾ مطلب دا نه دې چه د رکس هم دا معنی ده، بلکه مطلب دا دې چه په روث سره چه د استنجاء نه کوم ممانعت راغلې دې د هغې دوه وجې دی، یو د هغه رکس یعنی نجس کیدل او دویم د هغې سبب دهغې طعام الجن کیدل دی، لکه چه په روایت کښې راغلې دی!

﴿ لا تستنجوا بالروث ولا بالعظام فانه زاد اخوانکم من الجن ﴾(۶) یعنی په روث او هډوکی سره استنجاء مه کوئ، ځکه چه دا ستاسو د رونړو جناتو خوراك دې.
په دې صورت کښې په امام نسائی رحمه الله باندې هیڅ اشکال نه راځی چه هغه د رکس تفسیر

---

۱) د حدیث شریف پوره الفاظ دی: أراد النبی صلی الله علیه وسلم أن یتبرز فقال: ائتنی بثلاثة أحجار فوجدت له حجرین وروثة حمار، فأمسک الحجرین وطرح الروثة، وقال: هی رجس. صحیح ابن خزیمة ج ۱ ص ۳۹و جماع ابواب الاداب المحتاج الیها فی اتیان الغائط والبول الی الی الفراغ منها، باب اعداد الاحجار للاستنجاء عند اتیان الغائط رقم ۷۰

۲) فتح الباری ج ۱ ص ۲۵۷

۳) سنن ابن ماجة. کتاب الطهارة وسننها. باب الاستنجاء بالحجارة والنهی عن الروث والرمة. رقم ۳۱٤، وصحیح ابن خزیمة ج ۱ ص ۳۹، رقم ۷۰

٤) اوګورئ: فتح الباری ج ۱ ص ۲۵۸، وعمدة القاری ج ۲ ص ۳۰۳

۵) سنن النسائی، کتاب الطهارة، باب الرخصة فی الاستطابة بحجرین، رقم ٤۲

۶) جامع الترمذی، ابواب الطهارة، باب کراهیة ما یستنجی به رقم ۱۸

داسې ښکاره بيان کړو چه په لغت کښې ئې څه اصل نشته، د جواب حاصل دا دې چه امام نسائي رحمه الله د رکس لغوي معنی نه ده بيان کړې او نه ئې د هغې د رجس او نجس په معنی کښې د کيدو نه انکار کړې دې بلکه د هغه مطلب خو صرف دا دې چه په هغې کښې دننه رکسيت يعني دنجاست کيدو سره د طعام الجن کيدو صفت هم موجود دې. (۱) والله اعلم

**د استنجاء دپاره ځومره (کانړی) لوټي اخستل پکار دي!**: يوه مسئله خو دا ده چه استنجاء واجب ده يا نه؟ دا مسئله وړاندې په ﴿باب الاستجمار وترا﴾ د لاندې راروانه ده.

دويمه مسئله دا ده چه د استنجاء دپاره کم از کم ځومره کانړي يا لوټې اخستل پکار دي؟ دا مسئله مختلف فيه ده!

امام شافعي، امام احمد بن حنبل، امام اسحاق بن راهويه، ابوثور او ابن المنذر رحمهم الله فرمائي چه کم از کم درې کانړي کيدل پکار دي.

بيا امام شافعي، اسحاق او ابوثور رحمهم الله فرمائي چه درې مسحات کافي دي، هم دا د امام احمد رحمه الله هم مشهور مذهب دې.

ابن المنذر او ابن حزم رحمهما الله فرمائي چه درې کانړي ضروري دي، هم دا د امام احمد رحمه الله يو روايت دې. (۲)

امام ابن حزم د امام سعيد بن المسيب او حسن بصري رحمهم الله نه هم دا نقل کړي دي. (۳) خو د امام حسن بصري رحمه الله نه نقل کول ئې صحيح نه دي، ځکه چه په مصنف کښې د حسن بصري رحمه الله نه نقل دي چه !

﴿لاباس اذاكان الحجر عظيماله حروف ان تحرفه وتقلبه فتستنجي به﴾ (٤)

يعني په دې خبره کښې هيڅ باك نشته چه که لوئې کانړې وي، او د هغې څو مخونه وي نو هغه اړولو سره استنجاء اوکړه.

امام ابوحنيفه. امام مالك او داؤد ظاهري رحمهم الله فرمائي چه مقصود انقاء ده او هم دا واجب ده!(۵)

امام ابوحنيفه رحمه الله چه ترڅو پورې نجاست د مخرج نه متجاوز شوې نه وي نو استنجاء ته

---

۱) اوګورئ : الفيض السمائي على سنن النسائي مع حاشيه ص ۷۸، ۷۹

۲) د مذاهب د تفصيل دپاره اوګورئ : المجموع شرح المهذب ج ۲ ص ۱۰٤، مذاهب العلماء في عدد الاحجار، والانصاف للمرداوي ج ۱ ص ۱۱۲، والمحلی ج ۱ ص ۹۵ تا ۹۸

۳) اوګورئ : المحلی ج ۱ ص ۹۹

٤) المصنف لابن ابي شيبة ج ۱ ص ۱۵۶، كتاب الطهارة، باب ما كره ان يستنجي به، ولم يرخص فيه، رقم ۱۶۶۸

۵) اوګورئ : الدر المختار مع رد المحتار ج ۱ ص ۲٤۶، فصل الاستنجاء والتلقين في الفقه المالكي ج ۱ ص ۲۷. باب في الاستنجاء واداب الاحداث، وحاشية الدسوقي ج ۱ ص ۱۷۶، فصل ندب لقاضي الحاجة، والمغني لابن قدامة ج ۱ ص ۱۰۲، باب الاستطابة والحدث، مسالة رقم ۲۰۷

واجب نه، سنت وائی او چه کله نجاست د مخرج نه د درهم په مقدار متجاوز شی نو واجب ورته وائی او چه کله د دې نه زائد شی نو بیا ورته فرض وائی.
په کوم صورت کښې چه استنجاء فرض یا واجب کیږی په هغه صورت کښې د امام صاحب په نزد د احجار یا مسحات نه هیڅ تحدید واجبی نشته، بلکه مقصود انقاء ده. (۱)

خو په کومو روایاتو کښې چه د ﴿ ثلاث ﴾ وغیره عدد راغلې دې، امام صاحب رحمه الله هغه په استحباب باندې محمول کوی.

**د قائلین ایجاب تثلیث دلائل** : د ایجاب تثلیث قائلینو په خپل مذهب باندې ډیر دلائل پیش کړی دی. کوم چه په کتب حدیث کښې مشهور او معروف دی.

① : سیدنا ابوهریره رضی الله عنه نه امام نسائی، امام ابوداؤد، امام احمد، امام بزار او امام ابن حبان رحمهم الله د استنجاء په باره کښې حدیث نقل کړې دې.

﴿ وکان یامر بثلاثة احجار ﴾(۲) یعنی رسول الله صلی الله علیه وسلم به د درې کانړو اخستلو حکم فرمائیلو.

د سیدنا ابوهریره رضی الله عنه دا روایت په سنن ابن ماجه کښې ﴿ وامر بثلاثة احجار ﴾ په صحیح ابن خزیمه کښې په ﴿ ولا یستنجی بدون ثلاثة احجار ﴾ او په سنن کبری د بیهقی کښې په ﴿ ولیستنج بثلاثة احجار ﴾ الفاظو سره راغلې دې. (۳)

② د سیدنا سلمان فارسی رضی الله عنه روایت چه په صحیح مسلم او سنن اربعه کښې دې؛

﴿ نهانا ان نستقبل القبلة لغائط او بول، او ان نستنجی بالیمین، او ان نستنجی باقل من ثلاثة احجار ﴾ اللفظ لمسلم...(٤)

---

۱) قال ابن عابدين نقلا عن الاختيار : أن الاستنجاء على خمسة أوجه اثنان واجبان أحدهما غسل نجاسة المخرج في الغسل من الجنابة والحيض والنفاس كي لا تشيع في بدنه والثاني إذا تجاوزت مخرجها يجب عند محمد قل أو كثر وهو الأحوط لأنه يزيد على قدر الدرهم وعندهما يجب إذا جاوزت قدر الدرهم لأن ما على المخرج سقط اعتباره والمعتبر ما وراءه والثالث سنة وهو إذا لم تتجاوز النجاسة مخرجها. والرابع مستحب وهو ما إذا بال ولم يتغوط فيغسل قبله. والخامس بدعة وهو الاستنجاء من الريح. رد المحتار ج ۱ ص ۲٤٦

۲) سنن النسائي، كتاب الطهارة، باب النهى عن الاستطابة بالروث، رقم ٤٠، وسنن ابى داؤد، كتاب الطهارة، باب كراهية استقبال القبلة عند قضاء الحاجة، رقم ۸، ومسند احمد ج ۲ ص ۲۵۰، رقم ۷٤۰۳، مسند ابى هريرة ومسند البزار ج ۱۵ ص ۳۵٦، وصحيح ابن حبان ج ٤ ص ۲۸۸، ذكر الاستطابة بثلاثة احجار لمن اراده، رقم ۱٤٤۰

۳) اوګورئ : سنن ابن ماجة، كتاب الطهارة وسننها، باب الاستنجاء بالحجارة والنهى عن الروث والرمة، رقم ۳۱۳، وصحيح ابن خزيمة ج ۱ ص ٤۳، كتاب الوضوء، باب النهى عن الاستطابة بدون ثلاثة احجار، رقم ۸۰، والسنن الكبرى للبيهقي ج ۱ ص ۹۱، كتاب الطهارة، باب النهى عن استقبال القبلة رقم ٤٤۱، و ج ۱ ص ۱۰۲، باب وجوب الاستنجاء بثلاثة احجار رقم ۵۰۹

٤) صحيح مسلم، كتاب الطهارة، باب الاستطابة رقم ٦۰٦، وسنن النسائي، ... (بقيه برصفحه آئنده

دا مضمون د نورو صحابه کرامو رضی اللہ عنہم نه هم ثابت دي چه رسول الله ﷺ د درې کاڼو حکم فرمائيلي دي او د درې نه کم استعمالولو نه ئې منع فرمائيلې ده، د دې نه معلومه شوه چه د درې عدد واجب دی.

**د فریق مخالف دلائل** : کوم حضرات چه وائی چه مقصود انقاء ده او د درې عدد واجب نه دې بلکه مستحب دې د هغوی دلائل دا دی :

① د سیدنا عبدالله بن مسعود رضی اللہ عنہ حدیث الباب، کوم چه امام بخاری رحمہ اللہ دلته لیکلي دې، سيدنا عبدالله بن مسعود رضی اللہ عنہ ته رسول الله ﷺ د درې کاڼو د راوړلو حکم اوکړو، هغه دوه کاڼي او يو روثه راوړه، رسول الله ﷺ روثه اوغورځوله او کاڼي ئې واخستل. ددې نه معلومه شوه چه په دوه کاڼو باندې اکتفاء جائز ده.

امام طحاوی، امام ترمذی او امام نسائی رحمہم اللہ هم په دې بنياد د دې نه استدلال کړې دې.

امام ترمذی رحمہ اللہ په دې باندې ترجمه قائم کړې ده : ﴿باب ما جاء في الاستنجاء بالحجرين﴾ او امام نسائی رحمہ اللہ ترجمه منعقد کړې ده ﴿باب الرخصة في الاستطابة بحجرين﴾(۱)

امام خطابی رحمہ اللہ فرمائی چه د دې نه استدلا ل صحيح نه دې، ځکه چه کیدې شی رسول الله ﷺ سره دریم کاڼې موجود وو. (۲)

امام طحاوی رحمہ اللہ فرمائی چه که د رسول الله ﷺ سره دريم کاڼې موجود وو نو ابن مسعود رضی اللہ عنہ ته به ئې د لټولو دپاره ولې وئيل؟ د لټون حکم ورکول د دې خبرې دليل دې چه چرته رسول الله ﷺ وو هلته کاڼي نه وو او دوه کاڼي ئې واخستل، د دريم امر ئې ورته او نه فرمائيلو، معلومه شوه چه د درې عدد واجب نه دې. (۳)

حافظ ابن حجر رحمہ اللہ فرمائی چه امام طحاوی رحمہ اللہ غافل پاتې شو او دا دعوی ئې اوکړه چه رسول الله ﷺ د دريم کاڼي مطالبه اونکړه، ځکه چه امام احمد، دارقطنی او بیهقی رحمہم اللہ په طريق د ﴿معمر عن ابی اسحاق، عن علقمة عن ابن مسعود﴾ هم دا حديث نقل کړې دې په دې کښې دی چه ﴿فالقى الروثة وقال انها ركس ائتنى بحجر﴾(٤)

---

.....بقيه ازصفحه گذشته) كتاب الطهارة، باب النهى عن الاكتفاء فى الاستطابة، رقم ٤١، وباب النهى عن الاستنجاء باليمين، رقم ٤٩، وسنن ابى داؤد، كتاب الطهارة، باب كراهية استقبال القبلة عند قضاء الحاجة، رقم ٧، وجامع الترمذى، ابواب الطهارة، باب الاستنجاء بالحجارة، رقم ١٦، وسنن ابن ماجة، كتاب الطهارة وسننها، باب الاستنجاء بالحجارة والنهى عن الروث والرمة، رقم ٣١٦

١) اوګورئ : شرح معانى الاثار، كتاب الطهارة، باب الاستجمار، سنن النسائى، كتاب الطهارة، باب الرخصة فى الاستطابة بحجرين رقم ٤٢، وجامع الترمذى،ابواب الطهارة،باب ماجاء فى الاستنجاء بالحجرين، رقم ١٧

٢) اعلام الحديث للخطابى ج ١ ص ٢٤٨، ٢٤٩

٣) شرح معانى الاثار، كتاب الطهارة، باب الاستجمار

٤) مسند احمد ج ١ ص ٤٥٠، مسند عبدالله بن مسعود رضى الله عنه، رقم ٤٢٩٩، وسنن الدارقطنى ج ١ ص ٨٥، كتاب الطهارة، باب الاستنجاء رقم ١ ص ١٤٨، والسنن الكبرى... (بقيه برصفحه آئنده

(بقيه برصفحه آئنده

يعني رسول الله ﷺ روثه ګزار کړه او وې فرمائيل دا رکس دې، يو کانړې راوړه.
حافظ رحمه الله فرمائي چه د معمر متابعت ابو شيبه واسطي کړې دې، دارقطني هغه روايت کړې دې. (۱)
هم دغه شان د دوی دواړو متابعت عمار بن رزيق کړې دې، کوم چه احد الثقات دې. (۲)
خو د ابو شيبه د متابعت هيڅ فائده نشته، هغه خو د امام ابوبکر بن ابی شيبه نيکه دې، د هغه نوم ابراهيم بن عثمان دې، کوم چه سخت ضعيف بلکه منکر الحديث دې. (۳)
هر چه د عمار بن رزيق د متابعت تعلق دې، پس د هغه متابعت بالسند ذکر خو په جامع الترمذی کښې موجود دې، خو متابعت مذکوره په متن کښې هم شته يا نه؟ حافظ صاحب صرف دعوی کړې ده، پيش ئې نه کړې شوه، که د دې لفظ په ذکر کولو کښې متابعت وې نو امام ترمذی رحمه الله به پرې ضرورت تنبيه فرمائيلې وې او حافظ ابن حجر رحمه الله به د دې مخرج ضرور پيش کړې وې او دا به ئې بيان کړې وې چه د عمار روايت چرته دې؟ اصل کښې حافظ صاحب دا اوليدل چه کله امام ترمذی رحمه الله د دې روايت سندونه بيان کړل او اضطراب ئې ذکر کړو نو دا ئې اوفرمائيل: ﴿ وروی معمر وعمار بن رزيق عن ابی اسحاق عن علقمة عن عبدالله ﴾ (٤)
د دې نه حافظ صاحب رحمه الله دا خيال اوکړو چه کله د معمر په الفاظ کښې ﴿ انها رکس، ائتنی بحجر ﴾ دې نو د عمار په الفاظو کښې به هم دا وی، حالانکه دا ضروری نه ده.
هر چه د معمر د روايت تعلق دې نو اګر چه هغه د ثقات نه دې، خو بعض وخت هغه د خپلو ملګرو خلاف بعض داسې خبرې اوکړې چه په هغې باندې محدثين نقد کوی، بلکه علامه ابن تيمية رحمه الله په خپله فتاوی کښې په يو ځائې کښې تردې پورې ليکلې دی چه!
﴿ فَلَوْ لَمْ يَكُنْ فِي الْحَدِيثِ إِلَّا نِسْيَانُ الزُّهْرِيِّ، أَوْ مَعْمَرٍ، لَكَانَ نِسْبَةُ النِّسْيَانِ إِلَى مَعْمَرٍ أَوْلَى بِاتِّفَاقِ أَهْلِ الْعِلْمِ بِالرِّجَالِ، مَعَ كَثْرَةِ الدَّلَائِلِ عَلَى نِسْيَانِ مَعْمَرٍ، وَقَدْ اتَّفَقَ أَهْلُ الْمَعْرِفَةِ بِالْحَدِيثِ عَلَى أَنَّ مَعْمَرًا كَثِيرُ الْغَلَطِ عَلَى الزُّهْرِيِّ ﴾ (۵)
يعني په حديث کښې که په زهری يا معمر کښې دچا د نسيان معامله وی نو د معمر طرف ته د نسيان نسبت کول زيات غوره دی، د ټولو اهل علم په دې اتفاق دې، د دې نه علاوه د معمر

.....بقيه ازصفحه گذشته) للبيهقی ج ۱ ص ۱۰۸، کتاب الطهارة، باب الاستنجاء بما يقوم مقام الحجارة فی الانقاء دون ما نهی عن الاستنجاء به، رقم ۵۳۸
۱) سنن الدارقطنی ج ۱ ص ۸۶، کتاب الطهارة، باب الاستنجاء رقم ۲/۱٤۸
۲) اوګورئ: فتح الباری ج ۱ ص ۲۵۷
۳) اوګورئ: الجرح والتعديل ج ۱ ص ۱۱۵، رقم ۳٤۷
٤) اوګورئ: جامع الترمذی، ابواب الطهارة، باب الاستنجاء بحجرين رقم ۱۷
۵) مجموع فتاوی شيخ الاسلام ابن تيمية ج ۲۱ ص ٤۸٤، ٤۹۵، باب اذا وقعت الفارة فی السمن الجامد او الذنب، والفتاوی الکبری ج ۱ ص ۲٤۷، کتاب الطهارة، باب اذا وقعت الفارة فی السمن الجامد او الذنب.

په نسيان باندې ډير دلائل موجود دي، د علم حديث د علماء كرامو په دې اتفاق دې چه معمر د زهري په احاديثو كښې ډيره زياته غلطي كوي.
د دې نه پس ځان پوهه كړئ چه دا روايت د ابو اسحاق باقي شاګردان مثلاً زهير، اسرائيل، مالك بن مغول. زكريا بن ابي زائده او يونس بن ابي اسحاق وغيره نقل كوي، څوك دا زيادت نه نقل كوي. صرف يواځې معمر ئې نقل كوي يا ابو شيبه د هغه متابعت كوي، نو دا روايت به شاذ وي، كوم چه د محدثينو په نزد مقبول نه دې، لهذا دې لره به اعتبار نه وي.
غالبا هم په دې وجه ابو الحسن بن القصار مالكي رحمه الله دا فرمائيلي دي چه په بعض احاديثو كښې د دريم كاڼي راوړلو ذكر شته خو دا ثابت شوې احاديث نه دي. (١)
علامه كرماني رحمه الله فرمائي چه رسول الله ﷺ په دوه كاڼو باندې اكتفاء نه ده فرمائيلې بلكه د عبدالله بن مسعود رضي الله عنه نه ئې د دريم كاڼي مطالبه اوكړه. يا داسې اوايئ چه رسول الله ﷺ چه په اول كرت د درې كاڼو مطالبه اوكړه نو هم دا د درې كاڼو د وجوب دپاره كافي ده، په دې وجه ئې دوباره حكم ورنكړو، يا ئې په دې وجه مكرر حكم ورنكړو چه رسول الله ﷺ د حجرين په اطراف باندې اكتفاء اوفرمائيله، ځكه چه د حجر واحد په اطراف سره كه درې كرته مسح اوكړې شي نو دا د درې كاڼو قائم مقام دې. (٢)
اصل كښې دا ټوله خبره هغه وخت تسليم كيدې شي چه كله دا خبره ثابته شي چه د درې كاڼو د استعمال حكم ايجابي دې، حال دا چه په دليل سره دا ثابته ده چه دا ايجابي نه دې، بلكه استحبابي دې، د دې دليل وړاندې راروان دې.

② امام نسائي، امام ابوداؤد او امام احمد رحمهم الله د سيده عائشه رضي الله عنها نه مرفوع روايت كړې دې چه : ﴿ اذا ذهب احدكم الى الغائط فليذهب معه بثلاثة احجار، فليستطب بها، فانها تجزئ عنه ﴾(٣)
يعنى چه كله په تاسو كښې څوك د قضاء حاجت دپاره ځي نو خپل ځان سره دې درې كاڼي يوسي، په هغې سره دې استنجاء اوكړي، ځكه چه دا درې كاڼي به دا استنجاء دپاره كافي شي.

③ په مسند الشاشي كښې د سيدنا ابو ايوب انصاري رضي الله عنه نه روايت دې؛
﴿ اذا تغوط احدكم فليمسح بثلاثة احجار، فان ذلك طهوره ﴾(٤)
يعنى چه كله په تاسو كښې څوك قضاء حاجت كوي نو په درې كاڼو سره دې اوكړي، ځكه چه هم دا د هغه طهارت دې.

---

١) اوګورئ: شرح الكرماني ج ٢ ص ٢٠٥
٢) پورته حواله اوګورئ
٣) سنن النسائي، كتاب الطهارة، باب الاجتزاء فى الاستطابة بالحجارة دون غيرها، رقم ٤٤، وسنن ابى داؤد، كتاب الطهارة، باب الاستنجاء بالحجارة، رقم ٤٠، ومسند احمد، ج ٦ ص ١٠٨، رقم ٢٥٢٨٠، و ج ٦ ص ١٣٣، رقم ٢٥٥٢٦، مسند السيدة عائشة رضي الله عنها
٤) مسند الشاشي ج ٢ ص ٢٨ رقم ١١٤١

د طبراني په روايت کښې د ﴿ فليتمسح بثلاثة احجار، فان ذلك كافيه ﴾(۱) الفاظ راغلي دی، يعنی دا درې کانړی د استنجاء دپاره کافي دی.

د دې ټولو روايتونو په اخر کښې ﴿ فانها تجزئ عنه ﴾، ﴿ فان ذلك طهورة ﴾ او ﴿ فان ذلك كافيه ﴾ جملې دا بيانوی چه اصل مقصود انقاء ده او هيڅ عدد مخصوص بالذات نه دې، لهذا چرته چه تثليث حکم کړې شوې دې هلته دا مقصد دې چه دا عدد د انقاء دپاره کافي دې.

④ امام ابوداؤد، امام دارمی، ابن ماجه، بيهقي او طحاوی رحمهم الله وغيره د سيدنا ابوهريره رضی الله عنه مرفوع حديث نقل کړې دې! ﴿ ومن استجمر فليوتر، من فعل فقد احسن، ومن لا فلا حرج ﴾(۲)

يعنی څوك چه استنجاء كوی نو په طاق عدد كانړو دې اوكړی، چا چه په طاق عدد استنجاء اوكړه نو ښه ئې اوكړل، او كه په طاق عدد كښې ئې نه كوی نو هيڅ باك نشته.

خو په دې باندې اشكال دا كړې شوې دې چه په دې كښې حصين حبراني دې كوم چه مجهول دې!

د دې جواب دا وركړې شوې دې چه د هغه په باره كښې امام ابوزرعه فرمائی: ﴿ شيخ ﴾(۳) ابن حبان رحمه الله هغه په كتاب الثقات كښې ذكر كړې دې. (٤)

په دې حديث باندې دويم اشكال دا كړې شوې دې چه د هغه استاذ ابو سعيد هم دغه شان دې. پس امام ابوزرعه فرمائی: ﴿ لا اعرفه ﴾(۵)

علامه عيني رحمه الله : دې جواب دا كړې دې چه دا ابوسعيد الخير دې كوم چه صحابی دې، (۶) امام ابوداؤد رحمه الله د دې تصريح كړې ده. (۷)

خو تحقيق دا دې چه ابو سعيد يو مستقل راوی دې او ابو سعيد الخير بل راوی دې، دواړه يو نه دی. (۸) خو ابوسعيد د چا نه چه حصين حبراني روايت كوی هغه هم امام ابن حبان په كتاب الثقات كښې ذكر كړې دې. (۹)

---

۱) المعجم الكبير للطبراني ج ٤ ص ۱۷٤، رقم ٤۰۵۵، والمعجم الاوسط ج ۳ ص ۲۸۰، رقم ۳۱٤۶

۲) سنن ابی داؤد، كتاب الطهارة، باب الاستتار فی الخلاء رقم ۳۵، وسنن ابن ماجة، كتاب الطهارة وسننها، باب الارتياد للغائط والبول، رقم ۳۳۷، ومسند احمد ج ۲ ص ۳۷۱، مسند ابی هريرة رضی الله عنه، رقم ۸۸۲۵، والسنن الكبرى للبيهقي ج ۱ ص ۹٤، كتاب الطهارة، باب الاستتار عند قضاء الحاجة، رقم ٤۵۸، وسنن الدارمی ج ۱ ص ۱۷۷، كتاب الطهارة، باب التستر عند الحاجة رقم ۶۶۲، وشرح مشكل الاثار للطحاوی ج ۱ ص ۱۲۷، رقم ۱۳۸، وشرح معانی الاثار، كتاب الطهارة، باب الاستجمار برقم ۷٤۲

۳) كتاب الجرح والتعديل لابن ابی حاتم ج ۲ ص ۲۰۰، رقم ۸۶۷

٤) كتاب الثقات لابن حبان ج ۶ ص ۲۱۱، رقم ۷٤۱۱

۵) تهذيب الكمال ج ۳۳ ص ۵۵۳

۶) شرح سنن ابی داؤد للعينی ج ۱ ص ۱۱۹، كتاب الطهارة، باب الاستتار فی الخلاء

۷) سنن ابی داؤد كتاب الطهارة و باب الاستتار فی الخلاء رقم ۳۵

۸) اوګورئ: التلخيص الحبير ج ۱ ص ۱۷۹، ۱۸۰، كتاب الطهارة، باب الاستنجاء، رقم ۱۲۳

۹) كتاب الثقات لابن حبان ج ۵ ص ۵۶۸، رقم ۶۲۸۸

واضحه دي وی چه هغه ابو سعید هم وئیلې شوي دي او ابو سعد هم. (۱)

حافظ ابن حجر رحمه الله د هغه حدیث ته التلخیص الحبیر کښې معلول وئیلي دي، (۲) خو په فتح الباری کښې ئې لیکلي دی چه دا حدیث حسن دې. (۳) امام نووی رحمه الله په شرح المهذب کښې هم دا خبره لیکلې ده. (٤) ابن حبان رحمه الله د دې تصحیح فرمائیلې ده. (۵)

امام بیهقی رحمه الله فرمائی : ﴿ وهذا ان صح فانما اراد والله اعلم وترا یکون بعد الثلاث ﴾ (۶)

یعنی که دا حدیث صحیح وی نو د ﴿ من فعل فقد احسن، ومن لا فلا حرج ﴾ تعلق د درې عدد نه روستو دې. د درې د عدد سره نه دې.

ځکه چه د درې عدد خو بهر حال واجب دې او اختیار په ما فوق الثلاث کښې ورکولې شی که په درې کانړو سره طهارت حاصل نه شی بلکه د درې نه د زیاتو ضرورت وی او اتفاقا په جفت عدد باندې طهارت حاصل شی نو طاق عدد استعمالول مخیر فیه دی، که کوی یا نه کوی.

امام بیهقی رحمه الله د دې دلیل دا پیش کوی چه سیدنا ابوهریره رضی الله عنه مرفوعا روایت کوی!

﴿ اذا استجمر احدکم فلیوتر، فان الله وتر یحب الوتر اما ترى السماوات سبعا والارضین سبعا، والطواف، وذکر اشیاء ﴾ (۷)

یعنی کله چه په تاسو کښې څوك استنجاء کوی نو په طاق عدد کښې دې کوی، ځکه چه الله پاك یو دې، طاق عدد خوښوی، ګورې نه چه اسمانونه اووهٔ دی، زمکې اووه دی، د طواف چکرې اووهٔ دی، دغه شان ئې نور څیزونه هم ذکر کړل.

حافظ ابن الترکمانی رحمه الله فرمائی چه د امام بیهقی رحمه الله دې حدیث لره په مافوق الثلاث باندې حمل کول بغیر د دلیل نه دی او که دا خبره اومنلې شی چه د دې دلیل په رنړا کښې دا لازمیږی چه د درې د عدد نه پس دې ایتار مستحب وی، حال دا چه د شوافع په نزد که په درې کرتو کښې طهارت حاصل شی نو اضافه نه صرف دا چه مستحب نه ده بلکه بدعت ده او که په درې کرتو کښې صفائی حاصله نه شی نو اضافه واجب ده، هم دغه شان ذکر شوې حدیث – برتقدیر صحت – په دې خبره دال نه دې چه د وتر اطلاق په مافوق الثلاث باندې کیږی، بلکه په دې کښې د وتر په افرادو کښې د یو فرد ذکر کړې شوې دې، که په حدیث کښې مذکور د ﴿ سبع ﴾ عدد ملحوظ وی نو بیا به وئیلې شی چه استنجاء په اووهٔ کانړو سره کول

---

۱) اوګورئ: تحفة الاشراف ج ۱۰ ص ٤۵۵، رقم ۱٤۹۳۸
۲) التلخیص الحبیر ج ۱ ص ۱۷۹، ۱۸۰، کتاب الطهارة، باب الاستنجاء، رقم ۱۲۳
۳) قال الحافظ لزیادة فی ابی داؤد حسنة الاسناد .... فتح الباری ج ۱ ص ۲۵۷
٤) شرح المهذب ج ۲ ص ۹۵
۵) اوګورئ: صحیح ابن حبان ج ٤ ص ۲۵۷، ۲۵۸، کتاب الطهارة، باب ذکر الامر بالاستتار لمن اراد البراز رقم ۱٤۱۰
۶) السنن الکبری للبیهقی ج ۱ ص ۱۰٤، باب الایتار فی الاستجمار
۷) پورتنه حواله رقم ۵۱۹

واجب دی، ځکه چه په حدیث کښ د اووۀ ذکر دې. (۱) والله اعلم وعلمه اتم واحکم

**قوله:** وَقَالَ إِبْرَاهِيمُ بْنُ يُوسُفَ عَنْ أَبِيهِ عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ حَدَّثَنِي عَبْدُ الرَّحْمٰنِ: يعني دا حديث څنګه چه د ابو اسحاق نه زهير روايت کوی هم دغه شان ئې يوسف بن اسحاق بن ابی اسحاق د خپل نيکه ابو اسحاق نه روايت کوی، په دې طريق کښ هغه د زهير په شان ﴿ليس ابوعبيدة ذكره، ولكن عبدالرحمن﴾ نه وائی، بلکه ﴿حدثنى عبدالرحمن﴾ وائی.

**د دې متابعت د ذکر کولو مقصد**: د دې متابعت د ذکر کولو مقصد هم واضح دې چه ابو اسحاق سبيعی به تدليس کولو، امام بخاری رحمه الله دې متابع ذکر کولو سره دا خبره بيان کړه چه دلته تدليس نشته، بلکه د تحديث صراحت دې.

په دې سره دهغه خلقو ترديد او شوچه هغوی وائی چه ابو اسحاق په دې حديث کښ د تدليس نه کار اخستلې دې. (۲) په دې حديث کښ د تدليس متعلق بحث مونږ شاته ذکر کړې دې.

## رجال الحديث

① **ابراهيم بن يوسف**: دا ابراهيم بن يوسف بن اسحاق بن ابی اسحاق السبيعی الکوفی رحمه الله دې. (۳)

هغه د خپل والد يوسف بن اسحاق بن ابی اسحاق، د خپل نيکه ابو اسحاق او عبدالجبار بن العباس شبابی نه روايت حديث کوی.

د هغه نه ابو کريب، محمد بن العلاء، شريح بن سلمه تنوخی، اسحاق بن منصور سلولی او ابو غسان مالك بن اسماعيل رحمهم الله وغيره روايت کوی. (٤)

امام يحيی بن معين رحمه الله فرمائی: ﴿ليس بشئ﴾ (۵) امام نسائی رحمه الله فرمائی: ﴿ليس بالقوى﴾ (٦)

امام جوزجانی رحمه الله فرمائی ﴿ضعيف الحديث﴾ (۷)

امام ابو حاتم رحمه الله فرمائی: ﴿حسن الحديث، يكتب حديثه﴾ (۸)

ابن عدی رحمه الله فرمائی: ﴿له احاديث صالحة، وليس بمنكر الحديث، يكتب حديثه﴾ (۹)

---

۱) اوګورئ: الجوهر النقی فی الرد علی البيهقی بهامش السنن الکبری ج ۱ ص ۱۰٤

۲) اوګورئ: فتح الباری ج ۱ ص ۲۵۸

۳) تهذيب الکمال ج ۲ ص ۲٤۹

٤) د شيوخ او تلامذه د تفصيل دپاره اوګورئ: تهذيب الکمال ج ۲ ص ۲۵۰

۵) تاريخ ابن معين رواية الدوری ج ۱ ص ۲۳۰، رقم ۱٤۸۹

٦) تهذيب الکمال ج ۲ ص ۲۵۰

۷) المصدر السابق. ولم اجده فی احوال الرجال المطبوع

۸) الجرح والتعديل ج ۲ ص ۱٤۸ و رقم ٤۸۷

۹) الکامل فی ضعفاء الرجال ج ۱ ص ۲۳۷، رقم ٦۹

ابن حبان رحمہ اللہ هغه په کتاب الثقات کښ ذکر کړې دې. (۱)

امام دارقطنی رحمہ اللہ: «ثقة»(۲) امام ابوداؤد رحمہ اللہ فرمائی: «ضعيف»(۳)

ابن المدینی رحمہ اللہ فرمائی: «ليس كاقوى مايكون»(٤)

د ابراهیم بن یوسف په باره کښ د ائمه جرح والتعدیل اقوال ستاسو مخې ته دی. بعض حضراتو ورته مطلقا ثقه وئیلې دې او بعض ورته مطلقا ضعیف وئیلې دې، خو صحیح خبره هم هغه ده کومه چه ابن المدینی رحمہ اللہ فرمائی: «ليس كاقوى مايكون» یعنی هغه ډیر مضبوط خو نه دې، خو فی الجمله د هغه روایات قابل قبول دی.

هر چه په بخاری کښ د هغه د زوایاتو د تخریج تعلق دې، پس دا احادیث ډیر کم دی او متابعةً دی. (۵)

③ ابیه: دا یوسف بن اسحاق بن ابی اسحاق السبیعی رحمہ اللہ دې، کله ئې د نیکه طرف ته نسبت کولو سره نوم یوسف بن ابی اسحاق هم اخستلې شی. (۶)

هغه د خپل والد اسحاق بن ابی اسحاق، د خپل نیکهٔ ابو اسحاق سبیعی، امام شعبی، محمد بن المنکدر، عبدالله بن محمد بن عقیل او عمار الدهنی رحمہم اللہ نه روایت حدیث کوی.

د هغه نه په روایت کونکو کښ د هغه خوئې ابراهیم بن یوسف، د هغه د ترهٔ ځامن اسرائیل بن یونس بن ابی اسحاق، عیسی بن یونس بن ابی اسحاق او سفیان بن عیینه رحمہم اللہ وغیره حضرات روایت کوی. (۷)

سفیان بن عیینه رحمہ اللہ فرمائی: د ابو اسحاق په اولاد کښ د هغه نه زیات احفظ نشته. (۸)

ابن حبان رحمہ اللہ هغه په کتاب الثقات کښ ذکر کړې دې او فرمائی: «كان احفظ ولد ابى اسحاق، مستقيم الحديث على قلته»(۹)

امام ابوحاتم رحمہ اللہ فرمائی: «يكتب حديثه»(۱۰) امام دارقطنی رحمہ اللہ فرمائی: «ثقة»(۱۱)

---

۱) الثقات لابن حبان ج ۸ ص ۶۱، رقم ۱۲۲۵۲
۲) تهذيب التهذيب ج ۱ ص ۱۶۰، رقم ۳۳۳
۳) پورته حواله
٤) پورته حواله
۵) اوګورئ: هدى السارى ص ۲٤۹
۶) تهذيب الكمال ج ۳۲ ص ٤۱۱
۷) د شیوخ او تلامذه د تفصیل دپاره اوګورئ: تهذيب الكمال ج ۳۲ ص ٤۱۱، ٤۱۲
۸) تهذيب الكمال ج ۳۲ ص ٤۱۲
۹) الثقات لابن حبان ج ۷ ص ۶۳۶، رقم ۱۱۸٤۱
۱۰) الجرح والتعديل ج ۹ ص ۲۱۸، رقم ۹۰۹
۱۱) تهذيب التهذيب ج ۱۱ ص ۳۵۹، رقم ۶۹۶

حافظ ذهبی رحمه الله فرمائی : ﴿حافظ﴾(۱)
حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی : ﴿ثقة﴾(۲)
خو عقیلی رحمه الله وئیلې دی چه ﴿یخالف فی حدیثه﴾(۳) یعنی هغه په خپلو احادیثو کښې مخالفت کوی خو هغه خپله د دې جواب کړې دې چه ﴿لعله اتی من منصور بن وردان﴾(٤) یعنی دا مخالفت کیدې شی چه د یوسف بن ابی اسحاق د طرف نه نه وی، بلکه د هغه د شاګرد منصور بن وردان د طرف نه دې.
حافظ ابن حجر رحمه الله د امام عقیلی رحمه الله د دې جرح نقل کولو نه پس لیکی ﴿وهذا جرح مردود﴾(۵) د هغه نه اصحاب د اصول سته احادیث اخستلې دی. (۶) په ۱۵۷هجری کښې هغه وفات شوې دې. (۷) رحمه الله رحمة واسعة

③ **ابو اسحاق** : دا ابو اسحاق السبیعی رحمه الله حالات په کتاب الایمان کښې د باب الصلاة من الایمان د لاندې تیر شوې دی. (۸)
④ **عبدالرحمن** : دا عبد الرحمن بن الاسود رحمه الله دې. د هغه حالات هم شاته هم په دې باب کښې تیر شوې دی.

## (۲۱) بَابُ الْوُضُوءِ مَرَّةً مَرَّةً

**د مخکښې باب سره مناسبت** : امام بخاری رحمه الله د استنجاء د ابواب نه فارغ شو، د دې نه روستو د اودس بیان شروع کوی. (۹)
**د ترجمة الباب مقصد** : د ترجمة الباب مقصد د اودس د فرضیت مقدار بیانول دی چه په اودس کښې اندمونه کم از کم یو کرت وینځل فرض دی.
حضرت شیخ الحدیث رحمه الله فرمائی چه د رسول الله ﷺ نه یو یو کرت، دوه دوه کرته او درې درې کرته وینځل ثابت دی، امام بخاری رحمه الله په دې کښې د هر یو په جواز باندې باب قائم کړې دې او دا تنبیه ئې هم کړې ده چه درې درې کرته وینځل اکمل او اعلی درجه ده، او په

---

۱) الکاشف للذهبی ج ۲ ص ۳۹۸، رقم ۶۴۲۶
۲) تقریب التهذیب ص ۶۱۰، رقم ۷۸۵۶
۳) کتاب الضعفاء للعقیلی ج ۲ ص ۱۵۵۳، رقم ۲۰۸٤
٤) پورته حواله
۵) هدی الساری ص ۶۳۳
۶) پورته حواله
۷) تقریب التهذیب ص ۶۱۰، رقم ۷۸۵۶
۸) کشف الباری ج ۲ ص ۳۷۰ تا ۳۷۵
۹) اوګورئ : عمدة القاری ج ۳ ص ۲

دوه یا یو کرت باندې اکتفاء کول جائز دی. (۱)

واضحه دې وی چه دا حدیث دلته مجمل دې، شاته په باب غسل الوجه بالیدین من غرفة واحدة د لاندې دا حدیث د ابن عباس رضی الله عنهما په تفصیل سره تیر شوې دې. (۲)

۱۵۶: ﴿حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يُوسُفَ قَالَ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ زَيْدِ بْنِ أَسْلَمَ عَنْ عَطَاءِ بْنِ يَسَارٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ (۳) قَالَ تَوَضَّأَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَرَّةً مَرَّةً﴾

## رجال الحديث

① **محمد بن یوسف** دا محمد بن یوسف فریابی دې یا بیکندی دې؟ حافظ ابن حجر رحمه الله په فریابی باندې جزم کړې دې او د بیکندی کیدو نفی ئې کړې ده، هم دغه شان ئې د هغه په شیخ کښې په سفیان ثوری کیدو باندې جزم کړې دې او فرمائی چه ابوداؤد او اسماعیلی په خپل روایت کښې تصریح کړې ده چه سفیان ثوری رحمه الله د زید بن اسلم نه سماع کړې ده. (٤)

خوعلامه کرمانی رحمه الله دلته دواړه احتمالات ذکر کړې دی چه د محمد بن یوسف نه مراد فریابی هم کیدې شی او بیکندی هم، هم دغه شان سفیان ثوری هم کیدې شی او ابن عیینه هم.

هم دغه شان هغه فرمائی که فریابی وی نو شیخ به سفیان ثوری وی، ځکه چه فریابی اکثر د ثوری نه روایت کوی، اګر چه سفیان بن عیینه هم د هغه شیخ دې او که بیکندی وی نو د سفیان نه به عیینه مراد وی ځکه چه بیکندی هم د هغه نه روایت کوی، او زید بن اسلم د دواړو سفیانین شیخ دې. (۵)

علامه عینی رحمه الله د کرمانی تائید کولو سره فرمائی چه جزم کول صحیح نه دی، کرمانی چه کوم احتمالات ذکر کړې دی هغه عین ممکن دی. (۶)

د محمد بن یوسف فریابی رحمه الله حالات په کشف الباری کښې په کتاب العلم کښې د باب ما کان النبی صلی الله علیه وسلم یتخولهم بالموعظة والعلم کیلا ینفروا د لاندې تیر شوې دی. (۷)

د محمد بن یوسف بیکندی رحمه الله حالات هم په کتاب العلم باب متی یصح سماع الصغیر؟ د لاندې

---

۱) اوګورئ: الکنز المتواری علی لامع الدراری ج ۳ ص ۴۳

۲) فتح الباری ج ۱ ص ۲۵۸، وعمدة القاری ج ۳ ص ۲

۳) قوله عن ابن عباس رضی الله عنهما، الحدیث اخرجه النسائی فی سننه، فی کتاب الطهارة، باب الوضوء مرة مرة، رقم ۸۰، وباب مسح الاذنین رقم ۱۰۱، وابوداؤد فی سننه، فی کتاب الطهارة، باب الوضوء مرة مرة، رقم ۱۳۸، والترمذی فی جامعه، فی ابواب الطهارة، باب ما جاء فی الوضوء مرة مرة، رقم ۴۲، وابن ماجة فی سننه، فی کتاب الطهارة، وسننها، باب ما جاء فی الوضوء مرة مرة، رقم ۴۱۱

٤) فتح الباری ج ۱ ص ۲۵۸

۵) شرح الکرمانی ج ۲ ص ۲۰۶

٦) عمدة القاری ج ۳ ص ۲

۷) کشف الباری ج ۳ ص ۲۵۲

تیر شوې دی. (۱)

② **سفیان** : که دا امام سفیان ثوری رحمه الله وی نو د هغه حالات په کتاب الایمان باب علامة المنافق کښې تیر شوې دی. (۲)

او که سفیان بن عیینه رحمه الله وی نو د هغه حالات په کتاب بدء الوحی کښې د رومبی حدیث د لاندې مختصرا او په کتاب العلم کښې د باب قول المحدث حدثنا او اخبرنا او انبانا د لاندې تفصیلا ذکر شوې دی (۳)

③ **زید بن اسلم** : دا مشهور مفسر او محدث تابعی زید بن اسلم قرشی مدنی رحمه الله دې، د هغه حالات په کتاب الایمان کښې د باب کفران العشیر وکفر دون کفر د لاندې تیر شوې دی. (٤)

④ **عطاء بن یسار** : دا امام عطاء بن یسار الهلالی المدنی رحمه الله دې. د هغه حالات په کتاب الایمان کښې د باب کفران العشیر وکفر دون کفر د لاندې تیر شوې دی. (۵)

⑤ **ابن عباس** : د سیدنا عبدالله بن عباس رضی الله عنهما حالات په بدء الوحی کښې د څلورم حدیث د لاندې، او هم دغه شان په کتاب الایمان کښې د باب کفران العشیر وکفر دون کفر د لاندې تیر شوې دی. (۶)

**قوله:** قَالَ: تَوَضَّأَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَرَّةً مَرَّةً: سیدنا ابن عباس رضی الله عنهما فرمائی چه رسول الله صلی الله علیه وسلم یو یو کرت اودس اوکړو (یعنی د اودس اندامونه ئې یو یو کرت وینځل) یو یو کرت اودس کول فرض دی او د دې په فرضیت د امت اجماع ده، بعض حضراتو تثلیث واجب کړې دې، صاحب د الابانة د ابن ابی لیلی رحمه الله نه دا نقل کړې دی، خو دا باطل مذهب دې، د هیڅ عالم نه دا په صحیح طریقې نه دې منقول، که وی نو هم قابل قبول نه دې، ځکه چه د اجماع او احادیث صحیحه خلاف دې. (۷)

امام بخاری رحمه الله په دې ترجمة الباب او بیا د دې حدیث شریف په ذریعه د داسې خلقو تردید کړې دې د چا طرف ته چه د تثلیث د وجوب نسبت کولې شی. دا حدیث د مصنف په مدعا باندې صراحة دلالت کوی.

---

۱) کشف الباری ج ۳ ص ۳۷۸
۲) کشف الباری ج ۲ ص ۲۷۸
۳) کشف الباری ج ۱ ص ۲۳۸، و ج ۳ ص ۱۰۲
٤) کشف الباری ج ۲ ص ۲۰۳
۵) کشف الباری ج ۲ ص ۲۰٤
۶) اوګورئ: کشف الباری ج ۱ ص ٤٤۵، و ج ۲ ص ۲۰۵
۷) اوګورئ: المجموع شرح المهذب ج ۱ ص ٤۳۷

**قوله**: مرة مرة: مفعول مطلق هم كيدې شى، يعنى ﴿توضاء وضوءا مرة مرة﴾ او كيدې شى چه دا ظرف وى. يعنى ﴿توضاء فى وقت واحد﴾(۱)

تفصيلى حديث شاته د ﴿باب غسل الوجه باليدين من غرفة واحدة﴾ د لاندې ذكر شوې دې.

## ⑫ بَابُ الْوُضُوءِ مَرَّتَيْنِ مَرَّتَيْنِ

دا باب: د اودس په اندامونو كښې هر يو لره دوه دوه كرته د وينځلو په بيان كښې دې.

د شاته باب نه د دې مناسبت بالكل واضح دې، مخكښې يو يو كرت د اودس د اندامونو د وينځلو حكم وو او اوس ئې دا باب قائم اوفرمائيلو چه دوه دوه كرته هم وينځلې شى.

**مقصود ترجمه** د ترجمة الباب مقصد بالكل واضح دې چه په اودس كښې دوه دوه كرته وينځلو باندې اكتفاء كول جائز دى.

۱۵۷: ﴿حَدَّثَنَا حُسَيْنُ بْنُ عِيسَى قَالَ حَدَّثَنَا يُونُسُ بْنُ مُحَمَّدٍ قَالَ حَدَّثَنَا فُلَيْحُ بْنُ سُلَيْمَانَ عَنْ عَبْدِاللَّهِ بْنِ أَبِي بَكْرِ بْنِ عَمْرِو بْنِ حَزْمٍ عَنْ عَبَّادِ بْنِ تَمِيمٍ عَنْ عَبْدِاللَّهِ بْنِ زَيْدٍ(۲) أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَوَضَّأَ مَرَّتَيْنِ مَرَّتَيْنِ﴾

### رجال الحديث

① **حسين بن عيسىٰ**: دا حسين بن عيسى بن حمران طائى بسطامى (۳) دامغانى رحمه الله دې، ابو على د هغه كنيت دې. (٤)

هغه د ازهر بن سعد بن السمان، ابو ضمره انس بن عياض، جعفر بن عون، ابو اسامه حماد بن اسامه، سفيان بن عيينه، عبدالله بن يزيد المقرئ، عبد الصمد بن عبدالوارث، عبيدالله بن موسى. عفان بن مسلم. د خپل پلار عيسى بن حمران، قبيصه بن عقبه، امام وكيع، يزيد

---

۱) اوګورئ: عمدة القارى ج ۳ ص ۳

۲) قوله: عن عبدالله بن زيد: الحديث، من أفراد البخارى، لم يخرجه غيره، انظر العمدة: ۳\ ٤، وتحفة الأشراف: ١٤ \ ٣٤٠.

۳) بسطامى ضبطه ابن خلكان بفتح الباء الموحدة، انظر وفيات الاعيان ج ۲ ص ۵۳۱. ترجمة ابى يزيد البسطامى. وكذلک ضبطه السمعانى اولا، وقال هذه النسبة الى بسطام، وهى بلدة بقومس مشهورة، ثم ضبطه بكسر الباء وقال هذه نسبة الى بسطام وهو اسم رجل ... انظر الانساب للسمعانى ج ۱ ص ۳۵۱، ۳۵۳. قال محققه: وفى معجم البلدان ان اسم البلدة بسطام بالكسر، وكذا فى اللباب، وجزم بان الصواب: البسطامى بالكسر سواء اكان نسبة الى البلد ام الى الجد، وجرى فى المشتبه على التفرقة وتبعه التبصير اما التوضيح فتعقبه بانه تبع شيخه الفرضى التابع لابن السمعانى، وذكر تعقب اللباب .. انظر التعليقات على الانساب للسمعانى ج ۱ ص ۳۵۳

وقال بن الجزرى فى اللباب ص ۱۵۳ بعد ذكر الضبطين: فيا ليت شعرى! اى فرق بين الاسمين، حتى يجعل احدهما مفتوحا والاخر مكسورا، انما الجميع المكسور، لانه اسم اعجمى، عرب بكسر الباء ....

٤) اوګورئ: عمدة القارى ج ۳ ص ٤، وتهذيب الكمال ج ۶ ص ٤۶۰

بن هارون او یونس المؤدب رحمهم الله وغیره حضرات نه روایت حدیث کوی.
د هغه نه په روایت کونکو کښې امام بخاری، امام مسلم، امام ابوداؤد، امام نسائی، احمد بن سلمه، احمد بن محمد بن سریج، امام ابو حاتم الرازی، امام محمد بن اسحاق بن خزیمه او یحیی بن محمد بن یحیی الذهلی رحمهم الله وغیره ډیر حضرات دی. (۱)

امام ابو حاتم رحمه الله فرمائی: ﴿صدوق﴾(۲)

امام حاکم رحمه الله فرمائی: ﴿من کبار المحدثین وثقاتهم، من ائمه اصحاب العربیة﴾(۳)

امام نسائی او امام دارقطنی رحمهما الله فرمائی: ﴿ثقة﴾(٤)

ادریسی رحمه الله فرمائی: ﴿کان عالما فاضلا کثیر الحدیث﴾(۵)

حافظ ذهبی رحمه الله فرمائی: ﴿ثقة من ائمه العربیة﴾(۶)

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی: ﴿صدوق، صاحب حدیث﴾(۷)

خو په دې باندې تعقب کړې شوې دې چه امام نسائی، دارقطنی، حاکم او ابن حبان رحمهم الله د هغه توثیق کړې دې او امام بخاری او مسلم رحمهما الله په خپل خپل صحیح کښې روایات اخستلې دی لهٰذا هغه ته ﴿ثقة﴾ وئیل پکار وو. (۸)

ابن حبان رحمه الله هغه په کتاب الثقات کښې ذکر کړې دې. (۹)

په ۲۴۷ هجری کښې هغه وفات شوې دې. (۱۰) رحمه الله رحمة واسعة

⑦ **یونس بن محمد**: دا یونس بن محمد بن مسلم البغدادی المؤدب رحمه الله دې، ابو محمد ئې کنیت دې، د حرمی په نسبت سره معروف دې. (۱۱)

دا د داؤد بن ابی الفرات، صالح المری، حماد بن زید، حماد بن سلمه، نافع بن عمر جمحی، فلیح بن سلیمان، لیث بن سعد، مفضل بن فضاله، معتمر بن سلیمان، او سلام بن ابی مطیع رحمهم الله وغیره نه روایت کوی.

---

۱) د شیوخ او تلامذه د تفصیل دپاره اوګورئ: تهذیب الکمال ج ۶ ص ۴۶۰، ۴۶۲
۲) الجرح والتعدیل ج ۳ ص ۶۰، رقم ۲۷۱
۳) تهذیب الکمال ج ۶ ص ۴۶۲
٤) تهذیب التهذیب ج ۲ ص ۲۱۳، رقم ۶۶۱
۵) پورته حواله اوګورئ
۶) الکاشف ج ۱ ص ۳۳۵، رقم ۱۱۰۲
۷) تقریب التهذیب ص ۱۶۸، رقم ۱۳۴۰
۸) اوګورئ: تحریر تقریب التهذیب ج ۱ ص ۲۹۱، رقم ۱۳۴۰
۹) الثقات لابن حبان ج ۸ ص ۱۸۸، رقم ۱۲۹۰۵
۱۰) پورته حواله
۱۱) تهذیب الکمال ج ۳۲ ص ۵۴۰، ۵۴۱

د هغه نه په روايت کونکو کښې د هغه خوئي ابراهيم بن يونس او احمد بن يونس، على بن المديني، ابوبكر بن ابى شيبه، عثمان بن ابى شيبه، عبدالله المسندی، ابو خيثمه، حجاج بن الشاعر، حسين بن عيسى بسطامي، عبد بن حميد او عباس دوري رحمهم الله وغيره دی. (۱)

امام ابن معين رحمه الله فرمائي: ﴿ثقة﴾(۲)

يعقوب بن شيبه رحمه الله فرمائي: ﴿ثقة، ثقة﴾(۳)

امام ابو حاتم رحمه الله فرمائي: ﴿صدوق﴾(٤)

ابن حبان رحمه الله هغه په كتاب الثقات كښې ذكر كړې دې. (۵)

حافظ ذهبي رحمه الله فرمائي: ﴿الامام، الحافظ، الثقة﴾(۶)

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي: ﴿ثقة، ثبت﴾(۷)

هغه په ۲۰۷ هجرى کښې وفات شوې دې. (۸) رحمه الله رحمة واسعة

③ **فليح بن سليمان** : دا فليح بن سليمان بن ابى المغيره خزاعى اسلمى مدنى رحمه الله دې. د هغه نوم عبدالملك دې، فليح ئې لقب دې.

د هغه حالات په كتاب العلم كښې د باب من سئل علما وهو مشتغل فى حديثه د لاندې تير شوې دی.(۹)

④ **عبدالله بن ابى بكر بن عمرو بن حزم** : دا عبدالله بن ابى بكر بن عمرو بن حزم مدنى انصاری رحمه الله دې، ابو محمد ئې كنيت دې، ابوبكر ئې هم كنيت ذكر كړې شوې دې. (۱۰)

دې د سيدنا انس رضي الله عنه نه علاوه، د حميد بن نافع، سالم بن عبدالله بن عمر، عباد بن تميم انصاري، ابو الزناد عبدالله بن ذكوان، امام زهري، د خپل پلار ابوبكر بن محمد بن عمرو بن حزم، د پلار د ترور عمرة بنت عبدالرحمن او ام عيسى الجزار رحمهم الله وغيره نه روايت كوى. دهغه نه په روايت کونکو کښې اسماعيل بن عليه، سفيان ثوري، سفيان بن عيينه، ابو اويس مدنى، عبدالله بن لهيعه، عبدالملك بن جريج، فليح بن سليمان، امام مالك، امام

---

۱) د شيوخ او تلامذه د تفصيل د پاره اوګورئ: تهذيب الكمال ج ۳۲ ص ٥٤١، ٥٤٢
۲) تاريخ عثمان بن سعيد الدارمي رحمه الله ص ۲۲۸، رقم ۸۷۶
۳) تاريخ بغداد ج ١٤ ص ۳۵۱
٤) الجرح والتعديل ج ۹ ص ٢٤٦، رقم ۱۰۳۳
٥) الثقات لابن حبان ج ۰ ص ۲۸۹، رقم ١٦٤٨٩
٦) سير اعلام النبلاء ج ۹ ص ٤٧٣
٧) تقريب التهذيب ص ٦١٤، رقم ٧٩١٤
٨) پورته حواله
٩) كشف البارى ج ۳ ص ٥٥
١٠) تهذيب الكمال ج ١٤ ص ٣٤٩

زهری(وهومن شیوخه ایضا) هشام بن عروه او یحيٰ بن ایوب مصری رحمهم الله وغیره حضرات دی.(۱)
امام مالك رحمه الله فرمائی : ﴿كان كثير الحديث، وكان رجل صدق﴾(۲)
امام احمد رحمه الله فرمائی : ﴿حديثه شفاء﴾(۳)
امام یحیی بن معین او ابو حاتم رحمهما الله فرمائی : ﴿ثقة﴾(٤)
امام نسائی رحمه الله فرمائی : ﴿ثقة، ثبت﴾(۵)
ابن سعد رحمه الله فرمائی : ﴿كان ثقة، كثير الحديث، عالما﴾(۶)
امام دارقطنی رحمه الله فرمائی : ﴿من الثقات الرفعاء﴾(۷)
امام عجلی رحمه الله فرمائی : ﴿مدني، تابعي، ثقة﴾(۸)
ابن عبد البر رحمه الله فرمائی : ﴿كان من اهل العلم، ثقة، فقيها، محدثا، مامونا، حافظا، وهو حجة فيما نقل وحمل﴾(۹)
ابن حبان رحمه الله هغه په کتاب الثقات کښې ذکر کړې دې. (۱۰)
حافظ ذهبی رحمه الله فرمائی : ﴿حجة﴾(۱۱)
په ۱۳۵ هجری کښې د اویا کالو په عمر باندې وفات شوې دې. (۱۲) رحمه الله رحمة واسعة
⑤ **عباد بن تمیم** : دا عباد بن تمیم بن غزیه انصاری مدنی رحمه الله دې، د هغه حالات (هم په دې جلد کښې) په کتاب الوضوء کښې د باب لايتوضاء من الشك حتى يستيقن د لاندې تیر شوې دی.
⑥ **عبدالله بن زید رضی الله عنه** : دا سیدنا عبدالله بن زید بن عاصم انصاری مازنی مدنی رضی الله عنه دې. د هغه حالات هم په کتاب الوضوء کښې د باب لايتوضاء من الشك حتى يستيقن د لاندې تیر شوې دی.

---

۱) د شیوخ او تلامذه د تفصیل د پاره اوګورئ : تهذیب الکمال ج ١٤ ص ٣٥٠، ٣٥١
۲) الجرح والتعدیل لابن ابی حاتم ج ۵ ص ۱۷، رقم ۷۷
۳) پورته حواله
٤) پورته حواله
۵) تهذیب الکمال ج ١٤ ص ٣٥١
٦) تعلیقات تهذیب الکمال ج ١٤ ص ٣٥١
۷) سنن الدارقطنی ج ۳ ص ۱۳۰، کتاب الصیام، باب النية فی الصيام، رقم ۲۲۱۶
۸) الثقات للعجلی ج ۳ ص ۲۳، رقم ۸۶۱
۹) التمهيد لابن عبدالبر ج ۱۷ ص ۱۵۵، حديث مالک عن عبدالله بن ابی بکر بن حزم
۱۰) الثقات لابن حبان ج ۷ ص ۱۰، رقم ۸۷۷۹
۱۱) الکاشف ج ۱ ص ۵٤۱، رقم ۲۶۵٤
۱۲ الکاشف ج ۱ ص ۵٤۱، رقم ۲۶۵٤، وتقریب التهذیب ص ۲۹۷، رقم ۳۲۳۹

**عبدالله بن ابی بکر بن عمرو بن حزم** : دلته په بعض نسخو کښې هم دغه شان دی، پس د هروی په نسخه کښې پوره نوم دې، ﴿عبدالله بن ابی بکر بن محمد بن عمرو بن حزم﴾ پس د عمدة القاری په نسخه کښې پوره نوم موجود دې او علامه عینی رحمه الله په شرح کښې تصریح کړې ده چه په بعض نسخو کښې لفظ ﴿محمد﴾ د مینځه نه ساقط شوې دې. (۱) فتنبه

**قوله:** أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَوَضَّأَ مَرَّتَيْنِ مَرَّتَيْنِ: رسول الله ﷺ دوه دوه کرته اودس او کړو. یعنی په اودس کښې ئې هغه اندامونه چه وینځلې شی دوه دوه کرته وینځل.

**په اودس کښې د تثلیث غسل حیثیت:** په اودس کښې یو کرت وینځل خو فرض دی، د هغې نه روستو سنت دی یا دواړه جدا جدا دی؟

په دې سلسله کښې مختلف اقوال منقول دی:

① یو قول دا دې چه اول کرت فرض دی، دویم کرت سنت دې او دریم کرت اکمال دې.

② دویم قول دا دې چه اول کرت فرض دې، باقی دواړه سنت دی.

③ دریم قول دا دې چه اول کرت وینځل خو فرض دی، دویم کرت سنت دی او دریم کرت نفل دی. ④ څلورم قول دا دې چه دویم کرت نفل دی او دریم کرت سنت دی.

⑤ ابوبکر الاسکاف رحمه الله فرمائی چه دریواړه کرته وینځل ئې فرض دی.

⑥ ابن الهمام رحمه الله په فتح القدیر کښې فرمائی چه حق خبره دا ده چه په دویم او دریم کرت وینځلو مرتبه مجموعه سنت واحده دې، صاحب د البحر الرائق هم دا قول اختیار کړې دې او د دې علت ئې دا بیان کړې دې چه دویم کرت یا دریم کرت وینځلو لره مستقل د سنیت سره نه شی موصوف کیدې، چه ترڅو پورې یو د بل سره ضم نه کړې شی.

⑦ صاحب د السراج الوهاج فرمائی چه اول کرت فرض دې او دویم او دریم کرت وینځل ئې د صحیح قول مطابق سنت مؤکده دی.

په النهر الفائق کښې د دې تائید کړې شوې دې او فرمائی هم دا مناسب خبره ده، ځکه چه په سنیت باندې د رسول الله ﷺ عمل ﴿توضاء مرتین مرتین﴾ نه استدلال کولې شی، چه په هغې باندې دا ارشاد دې چه: ﴿هذا وضوء من یضاعف له الاجر مرتین﴾ (۲) یعنی دا هغه اودس دې په کوم چه دوچند اجر ورکولې شی.

---

(۱) اوګورئ: صحیح البخاری ج ۱ ص ٤٣، طبع طوق النجاة، تحقیق زهیر بن ناصر الناصر، وعمدة القاری ج ۳ ص ٤

(۲) وعن ابن عمر قال: توضأ النبی صلی الله علیه و سلم مرة مرة ثم قال هذا وضوء من لا تقبل له صلاة إلا به ثم توضأ مرتین مرتین ثم قال هذا وضوء من یضاعف له الأجر مرتین ثم توضأ ثلاثا ثلاثا ثم قال هذا وضونی ووضوء المرسلین من قبلی. السنن الکبری للبیهقی ج ۱ ص ۸۰. کتاب الطهارة، باب فضل التکرار فی الوضوء. رقم ۳۸۳. وسنن الدارقطنی ج ۱ ص ۸۰. کتاب الطهارة، باب وضوء رسول الله صلی الله علیه وسلم رقم ٤

او په درې درې کرته وینځلو باندې ئې اوفرمائیل : ﴿ هذا وضوئي ووضوء الانبياء من قبلي ﴾ (۱)
یعنی دا زما اودس دې او زما نه د مخکښې انبیاء ﷺ اودس دې.
اوګورئ ! رسول الله ﷺ په دوه دوه کرته وینځلو باندې د مستقل جزاء زیرې ورکړو، د دې نه معلومه شوه چه دا مستقل سنت دې، نه جزء د سنت، چه په دې باندې دې بالکل اجر مرتب نه شي. (۲) والله اعلم

**د ترجمة الباب په ثبوت باندې اشکال او د هغې جواب** : امام بخاری رحمه الله دلته ترجمه قائم کړې ده ﴿ باب الوضوء مرتين مرتين ﴾ او د هغې د لاندې ئې د عبدالله بن زید بن عاصم رضی الله عنه روایت ذکر کړې دې. ﴿ ان النبي ﷺ توضا مرتين مرتين ﴾ د دې نه د ترجمة الباب اثبات واضح دې، خو په دې باندې اشکال دا دې چه د سیدنا عبدالله بن زید رضی الله عنه یو روایت وړاندې تفصیلي راروان دې په هغې کښې دی چه ! ﴿ فدعا بماء فافرغ على يديه، فغسل مرتين، ثم مضمض واستنثر ثلاثا، ثم غسل وجهه ثلاثا، ثم غسل يديه مرتين مرتين الى المرفقين ﴾ (۳)
یعنی عبدالله بن زید بن عاصم رضی الله عنه ته چه کله دا خواهش ښکاره کړې شو چه هغه شان اودس اوښائي څنګه چه به رسول الله ﷺ کولو نو هغه اوبه راطلب کړې، په خپلو دواړو لاسونو باندې ئې اوبه واړولې، او هغه ئې دوه کرته وینځل، بیا ئې درې کرته خولهٔ کښې اوبه واچولې او پوزه ئې صفا کړه، بیا ئې خپله پوزه درې کرته وینځله، بیا ئې دوه دوه کرته د څنګلو پورې لاسونه وینځل....
په دې روایت مفصله باندې د نظر اچولو نه دا معلومیږی چه په اندامونو کښې تفریق کړې شوې دې، بعض دوه کرته او بعض درې کرته وینځلې شوې دی، لهذا د مؤلف ترجمه نه ثابتیږی.
د دې جواب دا دې چه د مصنف رحمه الله دا عادت دې چه څنګه هغه د روایت بعض طرق ته اشاره کولو سره خپله مدعا اخذ کوی، هم دغه شان بعض وخت صرف د هم هغه الفاظو نه استدلال کولو سره خپله مدعا اخذ فرمائی کوم چه د هغه مخې ته وی.
داسې معلومیږی چه امام بخاری رحمه الله د سیدنا عبدالله بن زید رضی الله عنه دا روایت مختصره د راتلونکی روایت مطوله نه جدا او مستقل ګڼړی، پس په ابوداؤد او ترمذی کښې د سیدنا

۱) اوګورئ : السنن الکبری للبیهقی ج ۱ ص ۸۰ کتاب الطهارة، باب فضل التکرار فی الوضوء، رقم ۳۸٤، ومسند الطیالسی ج ۳ ص ٤٣٤، رقم ۲۰۳۶
۲) دا ټول تفاصیل په : السعایة ج ۱ ص ۱۳۱، البحث السادس فی شرح قوله تثلیث الغسل نه اخستلې شوې دې، هم دغه شان اوګورئ : فتح القدیر ج ۱ ص ۳۱، ۳۲، والبحر الرائق ج ۱ ص ۲٤، ورد المحتار علی الدر المختار ج ۱ ص ۸۷
۳) صحیح البخاری ج ۱ ص ۳۱، کتاب الوضوء، باب مسح الراس کله، رقم ۱۸۵

ابوهريره رضی الله عنه نه نقل دی ﴿ ان النبی ﷺ توضا مرتين مرتين ﴾ (۱) نو كيدي شی چه څنګه ابوهريره رضی الله عنه وضوء مرتين مرتين نقل کوی، هم دغه شان ئې عبدالله بن زيد رضی الله عنه هم نقل کوی او دا واقعه جدا وی او په کوم حديث کښې چه تفريق اعضاء مذکور دې هغه جدا وی. والله اعلم

د سيدنا عبدالله بن زيد رضی الله عنه په حديث کښې تفريق اعضاء يعنی په يو اودس کښې بعض اندامونه دوه دوه کرته او بعض درې درې کرته وينځل مذکور دی، د دې نه علماء کرامو په دې خبره باندې دا استدلال کړې دې چه دغه شان په اندامونو کښې تفريق کيدلې شی، پس امام ترمذی، امام بيهقی او ابو اسحاق شيرازی رحمهم الله وغيره دا استدلال کړې دې، امام نووی رحمه الله ليکلې دی چه په دې باندې اجماع ده. (۲)

قاضی عياض رحمه الله فرمائی چه په يو اودس کښې د رسول الله ﷺ نه يو شان يا ﴿ مرتين ﴾ يا ﴿ثلاث مرات﴾ وينځل ثابت دی، خو په يو اودس کښې چه په داسې طريقه تفريق وی چه بعض اندامونه دوه دوه کرته وينځلې شی او بعض درې درې کرته وينځلې شوې وی دا د رسول الله ﷺ نه ثابت نه دی. دا د راوی د طرف نه څه نقصان راغلې دې او کله راوی هغه ذکر کړې دې او کله ئې ساقط کړې دې، يا دا د راوی په نسيان باندې محمول دې. (۳)

خو ابو عبدالله ابی رحمه الله فرمائی چه د راوی د طرف نه به دا ترک او نسيان هله منلې کيدې چه هغه څه عدد نه ذکر کولې، چه هر کله هغه باقاعده عدد ذکر کوی، نو بيا د راوی د طرف نه د اسقاط او نسيان څه احتمال پاتې کيږی، خصوصا چه کله د عبدالله بن زيد رضی الله عنه د دې حديث په راويانو کښې هيڅ اختلاف نشته. (٤) والله اعلم

## (۲۳) بَابُ الْوُضُوءِ ثَلَاثًا ثَلَاثًا

**د ترجمة سابقه سره مناسبت او د ترجمه مقصد** : د دې باب د مخکښې باب سره مناسبت بالکل واضحه دې او د ترجمة الباب مقصد هم واضح دې چه د اودس اندامونه درې ځله وينځل د اودس کمال دې، د دې بيانول مقصود دی.

---

۱) سنن ابی داؤد، کتاب الطهارة، باب الوضوء مرتين، رقم ۱۳٦، وجامع الترمذی، ابواب الطهارة، باب الوضوء مرتين مرتين، رقم ٤۳

۲) اوګورئ : جامع الترمذی، ابواب الطهارة، باب فيمن يتوضاء بعض وضوئه مرتين وبعضه ثلاثا رقم ٤۷، والسنن الکبری للبيهقی ج ۱ ص ۸۰ کتاب الطهارة، باب توضوء بعض الاعضاء ثلاثا وبعضها اثنين وبعضها واحدة، رقم ۳۸۲، والمهذب مع شرح المجموع ج ۱ ص ٤۳۸.

۳) اکمال المعلم بفوائد مسلم ج ۲ ص ۱٤، کتاب الطهارة، باب صفة الوضوء وکماله

٤) اکمال اکمال المعلم ج ۲ ص ۱۸

۱۵۸: ﴿ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ الْأُوَيْسِيُّ قَالَ حَدَّثَنِي إِبْرَاهِيمُ بْنُ سَعْدٍ عَنْ ابْنِ شِهَابٍ أَنَّ عَطَاءَ بْنَ يَزِيدَ أَخْبَرَهُ أَنَّ حُمْرَانَ مَوْلَى عُثْمَانَ أَخْبَرَهُ أَنَّهُ رَأَى عُثْمَانَ بْنَ عَفَّانَ (۱) دَعَا بِإِنَاءٍ فَأَفْرَغَ عَلَى كَفَّيْهِ ثَلَاثَ مِرَارٍ فَغَسَلَهُمَا ثُمَّ أَدْخَلَ يَمِينَهُ فِي الْإِنَاءِ فَمَضْمَضَ وَاسْتَنْشَقَ ثُمَّ غَسَلَ وَجْهَهُ ثَلَاثًا وَيَدَيْهِ إِلَى الْمِرْفَقَيْنِ ثَلَاثَ مِرَارٍ ثُمَّ مَسَحَ بِرَأْسِهِ ثُمَّ غَسَلَ رِجْلَيْهِ ثَلَاثَ مِرَارٍ إِلَى الْكَعْبَيْنِ ثُمَّ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ تَوَضَّأَ نَحْوَ وُضُوئِي هَذَا ثُمَّ صَلَّى رَكْعَتَيْنِ لَا يُحَدِّثُ فِيهِمَا نَفْسَهُ غُفِرَ لَهُ مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِهِ ﴾

## رجال الحديث

① **عبدالعزيز بن عبدالله الاويسى** : دا عبدالعزيز بن عبدالله بن يحيى بن عمرو بن اويس قرشى اويسى مدنى رحمه الله دي. د هغه حالات په كتاب العلم كښ د باب الحرص على الحديث د لاندې تير شوي دى. (۲)

② **ابراهيم بن سعد** : دا ابراهيم بن سعد بن عبدالرحمن بن عوف زهرى قرشى مدنى رحمه الله دي. د هغه حالات مختصرا په كتاب الايمان كښ د باب تفاضل اهل الايمان فى الاعمال د لاندې او په تفصيل سره په كتاب العلم كښ د باب ما ذكر فى ذهاب موسى صلى الله عليه وسلم فى البحر الى الخضر د لاندې تير شوي دى. (۳)

③ **ابن شهاب** : دا امام محمد بن مسلم بن عبيدالله بن عبدالله بن شهاب زهرى مدنى رحمه الله دي. د هغوى حالات په (بدء الوحى) كښ د دريم حديث د لاندې تير شوي دى. (٤)

④ **عطاء بن يزيد** : دا ابو محمد يا ابو يزيد عطاء بن يزيد الليثى ثم الجندعى المدنى ثم الشامى رحمه الله دي. د هغه حالات په كتاب الوضوء كښ د باب لا تستقبل القبلة بغائط او بول الا عند البناء جدار او نحوه... د لاندې تير شوي دى.

---

۱) قوله : عثمان بن عفان الحديث اخرجه البخارى فى صحيحه ج ۱ ص ۲۸ فى نفس الكتاب والباب، رقم ۱۶۰، وفى ج ۱ ص ۲۸، كتاب الوضوء، باب المضمضة فى الوضوء، رقم ۱۶٤، وفى ج ۱ ص ۲۵۹، كتاب الصوم، باب السواك الرطب واليابس للصائم، رقم ۱۹۳٤، وفى ج ۲ ص ص ۹۵۲، كتاب الرقاق، باب قول الله تعالى ﴿ ان وعد الله حق فلا تغرنكم الحياة الدنيا ﴾ رقم:٦٤٣٣، ومسلم فى صحيحه، كتاب الطهارة، باب صفة الوضوء وكماله، رقم ۵۵۰، ۵۵۱، والنسائى فى سننه، فى كتاب الطهارة، صفة الوضوء، باب المضمضة والاستنشاق رقم ۸٤، وباب باى اليدين يتمضمض؟ رقم ۸۵، وابوداؤد فى سننه، فى كتاب الطهارة، باب صفة وضوء النبى صلى الله عليه وسلم رقم ۱۰٦- ۱۱۰

۲) كشف البارى ج ٤ ص ٤۸

۳) كشف البارى ج ۲ ص ۱۲۰، و ج ۳ ص ۳۳۳

٤) كشف البارى ج ۱ ص ۳۲٦

⑤ **حمران مولى عثمان** : دا حمران بن ابان بن خالد بن عبد عمرو بن عقيل بن عامر نمرى (۱) تمرى رحمه الله دي. د پلار نوم ئې اُبّى يا آبا هم بيان كړې شوې دې.
دي د عين التمر نه قيد كيدو سره د مسيب بن نجبه په حصه كښې راغلې وو، د هغه نه سيدنا عثمان رضي الله عنه اخستلو سره ازاد كړې وو، په دې وجه ورته حمران مولى عثمان وئيلې شى. (۲)
د هغه ملاقات د سيدنا ابوبكر او سيدنا عمر رضي الله عنهما سره هم شوې دې، خو هغه د خپل مولى سيدنا عثمان او سيدنا معاويه بن ابى سفيان رضي الله عنهما نه روايت حديث كوى.

د هغه نه په روايت كونكو كښې ابو وائل شقيق بن سلمه «وهومن اقرانه»، ابو صخره جامع بن شداد محاربى، بكير بن عبدالله الاشج، حضرت حسن بصرى، عروه بن الزبير، معاذ بن عبدالرحمن التيمى، معبد جهنى، ابو التياح يزيد بن حميد ضبعى او ابو سلمه بن عبدالرحمن بن عوف رحمهم الله وغيره ډير حضرات دى. (۳)

حافظ ابن عبد البر رحمه الله فرمائى : ﴿ وكان حمران احد العلماء الجلة، اهل الوداعة والرای والشرف بولائه ونسبه ﴾(٤)
يعنى حمران د جليل القدر علماء كرامو نه دې، اهل وجاهت، صاحب رائې او د خپل ولاء او نسب په اعتبار سره د اوچتې درجې مالك وو.
حافظ ذهبى رحمه الله فرمائى : ﴿ ثقة نبيل ﴾(۵)
هم دغه شان فرمائى : ﴿ حجة، ... قال الحاكم : تكلم فيه بما لا يؤثر فيه، قلت : هو ثبت ﴾(۶)
حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى : ﴿ ثقة ﴾(۷)
ابن حبان رحمه الله هغه په خپل كتاب الثقات كښې ذكر كړې دې. (۸)
خو امام بخارى رحمه الله هغه په خپل كتاب الضعفاء كښې ذكر كړې دې. (۹)

---

۱) قال ابن سعد : نزل البصرة، وادعى ولده انه من النمر بن قاسط. سير اعلام النبلاء ج ٤ ص ۱۸٤
۲) اوګورئ : تهذيب الكمال ج ۷ ص ۳۰۱
۳) د شيوخ او تلامذه د تفصيل دپاره اوګورئ : تهذيب الكمال ج ۷ ص ۳۰۱، ۳۰۲
٤) التمهيد لما فى الموطاء من المعانى والاسانيد ج ۲۲ ص ۲۱۱، قال محققه فى نسخة : الاجلة مكان الجلة والوجاهة مكان الوداعة. هذا، وان ابن عبدالبر قال : وحمران مولى عثمان هو حمران بن اعين بن خالد وهو خطاء، والصحيح حمران بن ابان، واما حمران بن اعين فهو راو اخر، اخو عبد الملك بن اعين، انظر التقريب ص ۱۷۹ وغيره.
۵) ذكر اسماء من تكلم فيه وهو موثق ص ۷۲، رقم ۹۵
٦) الرواة الثقات المتكلم فيهم بما لا يوجب ردهم، ص ۸۸ رقم ۳۱
۷) تقريب التهذيب ص ۱۷۹، رقم ۱۵۱۳
۸) الثقات لابن حبان ج ٤ ص ۱۷۹، رقم ۲۳۷۱
۹) ميزان الاعتدال ج ۱ ص ٤ ۶۰، رقم ۲۲۹۱

هم دغه شان ابن سعد رحمه الله فرمائی: ﴿ وكان كثير الحديث، ولم ارهم يحتجون بحديثه ﴾(۱) يعنى هغه کافي احاديث روايت کوی. زه اهل علم نه وينم چه د هغه په احاديثو سره به احتجاج کوی.
حقيقت دا دې چه د هغه په احاديثو باندې د شيخين نه علاوه اصحاب سنن اربعه احتجاج کړې دې، امام بخاری رحمه الله اګر چه هغه په الضعفاء کښې ذکر کړې دې، خو د جرح څه وجه ئې نه ده ذکر کړې، هم دغه شان ابن سعد هم يوه مبهم خبره کړې ده، د جرح سبب ئې نه دې واضح کړې، او حال دا دې چه خپله د امام بخاری رحمه الله سره د اصول سته ټولو مصنفينو په هغه احتجاج کړې دې او د ابن عبدالبر، ابن حبان، حافظ ذهبی او حافظ ابن حجر رحمهم الله توثيقات او تعديلات موجود دی، په دې وجه به هغه ثقه ګڼړلې شی. والله اعلم
غالبا هم دا وجه ده چه حافظ ابن حجر رحمه الله د هدی الساری په هغه فصل کښې د هغه بالکل ذکر نه دې کړې په کوم کښې چه هغه د صحيح بخاری په متکلم فيه راويانو باندې کلام کړې دې.(۲)
⑨ **عثمان** رضی الله عنه : دا امير المومنين سيدنا عثمان بن عفان بن ابی العاص بن اميه بن عبد شمس بن عبد مناف قرشی (اموی) رضی الله عنه دې. ابوعمرو، ابو عبدالله او ابو ليلی ئې کنيتونه بيانولې شی. ذوالنورين ئې لقب دې.
د مور نوم ئې اروی بنت کريز بن ربيعه بن حبيب بن عبد شمس بن عبد مناف وه، دا د رسول الله صلی الله عليه وسلم د ترور لور ده.
د عثمان رضی الله عنه نيا (د مور د طرف نه) ام حکيم البيضاء بنت عبدالمطلب ده، کومه چه د رسول الله صلی الله عليه وسلم ترور ده. (۳)

---

۱) الطبقات لابن سعد ج ۵ ص ۲۸۳
۲) د تحرير تقريب التهذيب مصنفين د حافظ ابن حجر رحمه الله په کلام ﴿ ثقه ﴾ باندې تبصره کولو سره ليکی: بل صدوق فی احسن اقواله، فما وجدت احدا وثقه سوى ابن حبان والذهبی، وقال ابن سعد: لم اراهم يحتجون بحديثه. و اورد البخاری فی الضعفاء. قلت (القائل صاحبا التحرير): ويظهر من جماع ترجمته ان الرجل لم يكن امينا، الامانة التی تؤدی الى توثيقه توثيقا مطلقا، فلعل هذا هو الذی تبين للبخاری، على ان البخاری ومسلما قد احتجا به فی الصحيح. تحرير تقريب التهذيب ج ۱ ص ۳۲۱، ۳۲۲
خو د هغه حالات کوم چه اصحاب تراجم ذکر کړې دی د هغې د مطالعه کولو نه معلوميږی چه په هغه باندې يو محدث يا اصحاب جرح وتعديل نه چا هم څه جرح نه ده کړې، هر چه د ﴿ لم يكن رجلا امينا ﴾ تعلق دې، پس غالبا د دې نه د هغه واقعې طرف ته اشاره ده کوم چه اصحاب سير ذکر کړې ده چه سيدنا عثمان رضی الله عنه د خپل يو مرض په موقع باندې وصيت ليکلې وو او په هغې کښې ئې سيدنا عبدالرحمن بن عوف رضی الله عنه خپل خليفه نامزد کړې وو، هغه وخت سيدنا عبدالرحمن بن عوف رضی الله عنه حج له تلې وو. روستو چه کله هغه راغلو نو حمران دا راز هغه ته بيان کړو، سيدنا عثمان رضی الله عنه ته چه کله دا معلومه شوه نو هغه ډير ناراضه شو او هغه ئې جلا وطن کړو.
خو د دې واقعې په روايت حديث کښې د عدالت او ضعف په اعتبار سره په ظاهره کښې هيڅ اثر نشته، که يقينی دا خبره مؤثر وې نو امام بخاری رحمه الله به د هغه نه ځائې په ځائې په خپل صحيح کښې ولې احتجاج کولې. والله اعلم
۳) اوګورئ: تهذيب الکمال ج ۱۹ ص ۴۴۵، ۴۴۶

سیدنا عثمان رضی الله عنه په شروع شروع کښې مسلمان شوې وو، د حبشې او مدينې منورې دواړه هجرتونه ئې کړې دی، رسول الله ﷺ اول خپله لور سيده رقيه رضی الله عنها د هغه په نکاح کښې ورکړه، د هغې د وفات کيدو نه پس ئې بله لور سيده ام کلثوم رضی الله عنها د هغه په نکاح کښې ورکړه. (۱)

هغه د رسول الله ﷺ، سيدنا ابوبكر او سيدنا عمر فاروق رضی الله عنهما نه د حديث روايت كوى.

د سيدنا عثمان رضی الله عنه نه په روايت كونكو كښې د هغه په خامنو كښې ابان، سعيد، عمرو او په غلامانو كښې د حمران نه علاوه ابو صالح، ابو سهله، (دغه شان) مروان بن الحكم، عبدالله بن مسعود، زيد بن ثابت، عمران بن حصين، ابو قتاده، ابوهريره، انس بن مالك، السائب بن يزيد، سلمه بن الاكوع، ابو امامه الباهلى، ابو امامه سهل بن حنيف، طارق بن شهاب، عبدالله بن عباس، عبدالله بن عمر، عبدالله بن الزبير او ابو سلمه بن عبدالرحمن بن عوف رضى الله عنهم ورحمهم الله جميعا.... وغيره ډير حضرات شامل دى. [حواله بالا]

سيدنا عثمان رضی الله عنه د فيل د واقعې نه شپږ كاله زوستو پيدا شوې دې، د حبشه طرف ته ئې د خپلې بى بى سيده رقيه رضی الله عنها سره د ټولو نه مخكښې هجرت اوكړو، روستو نور حضرات په هغوى پسې لاړل، بيا ئې د مدينې منورې طرف ته هجرت اوكړو، په بدر كښې د شريكيدو دپاره تيار وو چه د سيده رقيه رضی الله عنها بيمارئ د وجې نه رسول الله ﷺ هغه پاتې كړو او د بدر د حصې نه ئې هم هغه ته وركړه او هغه ئې د بدريانو نه هم شمار كړو.

د حديبيه په موقع باندې ضرورت پيښ شو چه څوك مكې مكرمې ته اوليږلې شى، د عثمان رضی الله عنه نه موزون بل څوك نه وو، په دې وجه عثمان رضی الله عنه هلته اوليږلې شو، د هم هلته نه دا دروغژن خبر خور شو چه عثمان رضی الله عنه شهيد كړې شو.

په دې موقع باندې رسول الله ﷺ د ټولو صحابه كرامو رضی الله عنهم نه په جهاد او قتال باندې بيعت واخستلو، رسول الله ﷺ خپل يو لاس په بل لاس باندې ږدلو سره اوفرمائيل چه دا د عثمان رضی الله عنه لاس دې، كوم چه زما په لاس باندې بيعت كوى.

رسول الله ﷺ پرله پسې خپلې دوه لونړه د هغه په نكاح كښې وركړې او وې فرمائيل كه زما بله لور وې نو هغه به مې هم ستا په نكاح كښې دركړې وې.

سيدنا عثمان رضی الله عنه په هغه لس خوش قسمته صحابه كرام رضی الله عنهم كښې شامل دې چاته چه رسول الله ﷺ په يو مجلس كښې د جنت زيرې وركړې وو.

عثمان رضی الله عنه د هغه اصحاب الرائى خلقو نه يو وو چاته چه سيدنا عمر فاروق رضی الله عنه د خلافت ذمه دارى سپارلې وه.

عثمان رضی الله عنه په خلفاء راشدينو كښې په دريم نمبر دې، د ټول اهل سنت والجماعت په نزد د ابوبكر او عمر رضی الله عنهما نه پس عثمان رضی الله عنه (د ټول امت نه) افضل دې. (۲)

---

۱) تهذيب الكمال ج ۱۹ ص ۴۴۶، ۴۴۸
۲) دا ټول تفصيلات د تهذيب الكمال ج ۱۹ ص ۴۴۵ تا ۴۵۰ نه اخستلې شوې دى.

سیدنا عبدالله بن مسعود رضي الله عنه د بیعت عثمان رضي الله عنه په موقع باندې اوفرمائیل : ﴿ بایعنا خیرنا، ولم نال ﴾(۱)

یعنی مونږ په ټولو کښې د غوره انسان په لاس بیعت اوکړو او مونږ هیڅ کوتاهی نه ده کړې.

سیدنا علی رضي الله عنه فرمائی چه سیدنا عثمان رضي الله عنه په مونږ کښې د ټولو نه زیات صله رحمی کونکې وو او هغه د داسې خلقو نه وو چه د هغوی په باره کښې راغلې دی ﴿ ثم اتقوا وامنوا ثم اتقوا واحسنوا .. والله یحب المحسنین ﴾(۲)

سیده عائشه رضي الله عنها فرمائی : ﴿ ولقد قتلوه، وانه لمن اوصلهم للرحم، واتقاهم لربه ﴾(۳) یعنی هغه باغیانو عثمان رضي الله عنه قتل کړو، حال دا چه هغه د ټولو نه زیات صله رحمی کونکې او د خپل رب نه زیات ویریدونکې وو.

بئر رومه په مدینه منوره کښې د یو یهودی کوهې وو، هغه به په مسلمانانو باندې اوبه خرڅولې، رسول الله صلى الله عليه وسلم ترغیبا اوفرمائیل څوك دې چه دا کوهې واخلی او د مسلمانانو دپاره ئې وقف کړې او خپله ئې هم د عامو مسلمانانو په شان اوبه استعمالوی؟ د هغې په بدل کښې به الله پاك هغه ته په جنت کښې یو ګودر ورکړی. سیدنا عثمان رضي الله عنه یهودی ته ورغلو او هغه سره ئې سودا اوکړه او نیم کوهې ئې په دولس زره درهم باندې واخستلو او هغه سره دا مقرر شوه چه کوهې به یوه ورځ یهودې استعمالوی او یوه ورځ به ئې سیدنا عثمان رضي الله عنه. بیا داسې اوشوه چه د سیدنا عثمان رضي الله عنه د نمبر والا ورځ کښې به مسلمانانو دومره اوبه ډکې کړې چه د دوه ورځو دپاره به کافی شوې، یهودی چه کله دا اولیدل نو ډیر غمژن شو. د دې نه پس ئې د کوهی باقی نیمه حصه په اته زره درهم باندې د عثمان رضي الله عنه په لاس باندې خرڅه کړه. (٤)

رسول الله صلى الله عليه وسلم چه کله دا خواهش ظاهر کړو چه د مسجد نبوی توسیع کیدل پکار دی نو سیدنا عثمان رضي الله عنه د پنځه ستنو په مقدار ځائې اخستلو سره په مسجد کښې شامل کړو. (۵)

د غزوه تبوك په موقع باندې ئې نهه نیم سوه (۹۵۰) اوښان او پنځوس (۵۰) اسونه ورکړل، بلکه په یو روایت کښې زر اوښان او اویا اسونه منقول دی. (۶)

**عبادت** : د عبادت ئې دا حال وو چه په یو یو رکعت کښې به ئې پوره قران کریم ختمولو، تردې چه کله د هغوی د شهادت دپاره محاصره اوکړې شوه نو په هغه موقع باندې به هم هغه د شپې پاسیدلو سره عبادت کولو او په یو یو رکعت کښې به ئې یو یو قران کریم ختمولو.

---

۱) الاصابة ج ۲ ص ۲۲۳
۲) پورته حواله
۳) پورته حواله
٤) تهذیب الکمال ج ۱۹ ص ٤۵۰
۵) پورته حواله
٦) پورته حواله

د سيدنا عثمان رضي الله عنه په زمانه كښې مالونه دومره ډېر فراخه شو او بركت پيدا شو چه خلقو يوه يوه وينزه د هغې د وزن برابر چاندئ باندې واخستله، يو يو اس ئې په يو يو لاكهـ درهم باندې او يوه يوه د كجهورې اونه ئې په زر درهم باندې واخستله. سيدنا عثمان رضي الله عنه به هميشه روژې نيولې. (١)

**شهادت** : د سيدنا عثمان رضي الله عنه په اخرى دور كښې څه اشرار داسې پيدا شو چا چه دا كلكه اراده كړې وه چه عثمان رضي الله عنه شهيد كړى، بل طرف ته رسول الله ﷺ سيدنا عثمان رضي الله عنه ته د ابتلاء او ازميښت پيش ګوئى كړې وه، او د شهادت پيش ګوئى ورته كړې وه او په دې موقع ئې ورته د صبر تلقين هم كړې وو. (٢)

پس په دې موقع باندې نه صرف دا چه هغه د صبر لمن پرې نه خودله بلكه د صحابه كرام رضي الله عنهم د اجازت باوجود ئې چاته هم د تورې د راويستلو اجازت ورنكړو. (٣)

په داسې حال كښې چه سيدنا عثمان رضي الله عنه د قران كريم تلاوت كولو او مصحف ئې پرانستلې وو، هغه ظالمانو شهيد كړو، اكثر حضرات دا روايت كوى چه د وينې څو قطرې د قران كريم په آيت ﴿فسيكفيكهم الله﴾ باندې پريوتلې. (٤)

**خلافت او د خلافت موده** : د سيدنا عمر رضي الله عنه د شهادت او تدفين نه درې ورځې پس په يكم محرم ٢٤ هجرى باندې ټولو خلقو په اتفاق سره د سيدنا عثمان رضي الله عنه په لاس باندې د خلافت بيعت اوكړو. په ١٧ يا ١٨ ذى الحجه ٣٥ هجرى كښې د سيدنا عثمان رضي الله عنه د شهادت عظيم مصيبت راغلو، په تاريخ وفات كښې ئې نور اقوال هم دى. (٥)

**فضائل او مناقب** : د سيدنا عثمان رضي الله عنه مناقب او فضائل بيشماره دى؛

رسول الله ﷺ فرمائى : ﴿الا استحيى من رجل تستحيى منه الملائكة﴾(٦)

يعنى زه د هغه سړى نه حياء اونكړم د چا نه چه ملائك هم حياء كوى؟

رسول الله ﷺ فرمائيلې وو : ﴿من يحفر بئر رومة فله الجنة﴾(٧) او هم دغه شان ئې فرمائيلې وو : ﴿من جهز جيش العسرة فله الجنة﴾(٨)

يعنى څوك چه بئر رومه اوكنى نو د هغه دپاره جنت دې او څوك چه جيش عسره (د غزوه

---

١) تهذيب الكمال ج ١٩ ص ٤٥٠، ٤٥١

٢) قال عثمان يوم الدار : ان رسول الله صلى الله عليه وسلم قد عهد الى عهدا، فانا صابر عليه. جامع الترمذى ابواب المناقب، باب فى مناقب عثمان بن عفان رضى الله عنه، رقم ٣٧١١

٣) اوګورئ : تهذيب الكمال ج ١٩ ص ٤٥٦

٤) پورته حواله

٥) اوګورئ : تهذيب الكمال ج ١٩ ص ٤٥٤

٦) مسند احمد ج ٦ ص ٢٨٨، رقم ٢٦٩٩٩، ٢٧٠٠٠

٧) اخرجه البخارى تعليقا، انظر صحيح البخارى، كتاب فضائل الصحابة، باب مناقب عثمان بن عفان

٨) پورته حواله

تبوك مجاهدين لره، زاد راه برابر کړی او سامان ورته ورکړی هغه جنتي دي. سیدنا عثمان رضی الله عنه دا دواړه کارونه اوکړل
د سیدنا انس رضی الله عنه نه روایت دې چه رسول الله ﷺ د احد غر ته اوختلو، هغه سره سیدنا ابوبکر، سیدنا عمر او سیدنا عثمان رضی الله عنهم وو، د احد غر په خوزیدو شو، رسول الله ﷺ اوفرمائیل: اې احده! په قلار شه! او هغه ته ئې په خپه باندې ګزار هم ورکړو! او وې فرمائیل. په تا باندې یو نبي، یو صدیق او د دوه شهیدانو نه علاوه هیڅوك نشته! (۱)
د غزوه تبوك په موقع باندې چه سیدنا عثمان رضی الله عنه ښه ډیر سامان راوړلو نو رسول الله ﷺ د خوشحالئ نه اوفرمائیل: ﴿ ما علی عثمان ما عمل بعد هذه، ما علی عثمان ما عمل بعد هذه ﴾ (۲)
یعني د دې نه روستو چه عثمان رضی الله عنه هر څه کوی هیڅ باك نشته.
دبیعت رضوان په موقع باندې رسول الله ﷺ اوفرمائیل: ﴿ان عثمان فی حاجة الله وحاجة رسوله﴾ (۳)
یعني عثمان رضی الله عنه د الله پاك او دهغه درسول ﷺ په کار کښې دې، د دې نه پس ئې خپل یو لاس په بل باندې ږدلو سره اوفرمائیل چه دا لاس د عثمان دې او د هغه د طرف نه بیعت دې.
**د روایاتو تعداد**: د سیدنا عثمان رضی الله عنه احادیث په اصول سته کښې ذکر دی، د عثمان رضی الله عنه نه ټول یو سل څلوېښت احادیث نقل دی، په هغې کښې درې احادیث متفق علیه دی، او امام بخاری په اته احادیثو کښې او امام مسلم رحمه الله په پنځو احادیثو کښې متفرد دی. (٤) والله اعلم، رضی الله عنه وارضاه

**د اودس په سلسله کښې د امام بخاری رحمه الله ترتیب**: امام بخاری رحمه الله د ټولو نه اول ﴿باب الوضوء مرة مرة﴾ قائم کړو، بیائې ﴿باب الوضوء مرتین مرتین﴾ او په اخر کښې ئې ﴿باب الوضوء ثلاثا﴾ ذکر کړو. امام ابوداؤد رحمه الله بالکل د دې عکس ذکر کړې دې، ځکه چه وضوء ثلاثا د ټولو نه اکمل او افضل دې، لهذا اول ئې هغه راوړې دې، د هغې نه روستو ئې وضوء مرتین، چه دا درمیانه دې او په اخر کښې ئې وضوء مرة ذکر کړې دې، کومه چه ادنی درجه ده.
امام بخاری رحمه الله دا خبره مخې ته کړه چه وضوء مرة خو فرض دې او اول هم دا وی، پس هغوی د ادنی نه اعلی طرف ته ترقی اوکړه، بله خبره دا د چه مرتین او ثلاثا دا په مرة باندې مرتب دی، اول به د مرة تحقق وی، بیا د مرتین او بیا د ثلاثا، نو د وجود په اعتبار سره هم مرتین او ثلاثا موخر دی. لهذا امام بخاری رحمه الله چه یو طرف ته د ادنی نه اعلی طرف ته ترقی کړې ده نو بل طرف نه ئې د ظاهری وجود په لحاظ چه کوم صورت دې د هغې رعایت ئې هم کړې دې. والله اعلم

۱) صحیح البخاری، کتاب فضائل الصحابة، باب مناقب عثمان بن عفان رضی الله عنه رقم ۳۶۹۹
۲) جامع الترمذی، ابواب المناقب، باب فی مناقب عثمان بن عفان رضی الله عنه رقم ۳۷۰۰
۳) جامع الترمذی، ابواب المناقب، باب فی مناقب عثمان بن عفان رضی الله عنه رقم ۳۷۰۲
٤) اوګورئ: خلاصة الخزرجی، ص ۲۶۱، وتهذیب الاسماء واللغات ج ۱ ص ۳۲۲

**د ائمه مجتهدین په نزد د تثلیث غسل حیثیت**: امام بخاری رحمه الله دلته د ﴿الوضوء ثلاثا ثلاثا﴾ باب قائم کړې دې، دا دټولونه اکمل اودس دې، دده په حیثیت کښې د علماء کرامو اختلاف دې.
جمهور علماء کرام خو ورته سنت وائي؛ د ابن ابی لیلی نه نقل کړې شوې دی چه هغه درې واره کرت وینځلو ته واجب وائي: (۱)
علامه موفق رحمه الله د امام مالک رحمه الله نه نقل کړی دی چه د یو کرت یا درې کرته هیڅ تحدید نشته، یعنی تثلیث مباح دې، د سنت یا واجب تحدید نشته. (۲)
قاضي باجي مالکي رحمه الله فرمائی چه ابن القاسم رحمه الله د امام مالک رحمه الله نه نقل کړی دی چه په اودس کښې هیڅ تحدید نشته.
خو قاضي باجي فرمائی چه د دې مطلب دا نه دې چه په دې باندې کمې بیشې نه شی کیدلې، هسې خو د امام مالک رحمه الله نه بیشکه دا منقول دی چه یو کرت وینځل فرض دی. (۳)
مالکیان د اودس په ټولو اندامونو کښې د تثلیث قائل دی، خو په رجلین کښې هم تثلیث دې یا انقاء. په دې کښې دواړه اقوال دی، خو دا د اقوالو اختلاف په هغه صورت کښې دې چه کله په دواړو خپو باندې خیری حائل نه شی، او که دواړه خپې د خیرو نه پاکې وی نو بیا به تثلیث وی ګینې انقاء به وی. (٤)
سعید بن عبدالعزیز او امام اوزاعی رحمهما الله فرمائی چه په رجلین کښې تنقیه او په باقی اندامونو کښې تثلیث مستحب او مندوب دې. (۵)
د شوافع په نزد هم د اودس اندامونه درې درې کرته وینځل مستحب دی. (۶)
د احنافو په نزد هم تثلیث مسنون او مستحب دې، لکه چه په تیر شوی باب کښې پوره تفصیل تیر شوې دې. والله سبحانه وتعالی اعلم

**قوله: أَنَّهُ رَأَى عُثْمَانَ بْنَ عَفَّانَ دَعَا بِإِنَاءٍ فَأَفْرَغَ عَلَى كَفَّيْهِ ثَلَاثَ مِرَارٍ فَغَسَلَهُمَا ثُمَّ أَدْخَلَ يَمِينَهُ فِي الْإِنَاءِ فَمَضْمَضَ وَاسْتَنْشَقَ**: حمران رحمه الله فرمائی چه ما عثمان رضی الله عنه اولیدو چه هغه (د اوبو) یو لوښې راطلب کړو او په خپلو لاسونو باندې ئې درې کرته اوبه واچولې او هغه ئې وینځل، بیا ئې خپل ښې لاس په لوښی کښې داخل کړو او خوله کښې ئې اوبه واچولې او پوزه کښې ئې اوبه واچولې.

---

۱) المجموع شرح المهذب ج ۱ ص ٤۳۷
۲) المغنی لابن قدامة ج ۱ ص ۹٤
۳) المنتقی للباجی ج ۱ ص ۲۷۱، باب بیان غسل الوجه
٤) اوګورئ: حاشیة الدسوقی ج ۱ ص ۱۶۹، فصل یذکر فیه احکام الوضوء
۵) المغنی لابن قدامة ج ۱ ص ۹٤
٦) المجموع شرح المهذب ج ۱ ص ٤۳۱

دلته د كشمهيني په روايت كښ ﴿اُستنشق﴾ دي، او د اكثر راويانو په نزد ﴿استنثر﴾ دي. (١) وړاندې د شعيب روايت راروان دې، په هغې كښ د مضمضه استنشاق او استنثار درې واړو ذكر دې. (٢)

بيا په دې حديث كښ دا خبره چه مضمضه او استنشاق ئې څو كرته اوكړل، د دې ذكر په هيڅ طريق كښ نشته، خو ابن المنذر د ﴿يونس عن الزهري﴾ په طريق سره د عدد ذكر كړې دې. (٣) هم دغه شان امام ابوداؤد رحمه الله د سيدنا عثمان رضي الله عنه په احاديثو كښ په دوه طريقو كښ هم د عدد ذكر كړې دې. (٤)

**قوله: ثُمَّ غَسَلَ وَجْهَهُ ثَلَاثًا وَيَدَيْهِ إِلَى الْمِرْفَقَيْنِ ثَلَاثَ مِرَارٍ:** بيا ئې خپل مخ درې كرته، او دواړه لاسونه د څنګلو سره درې درې كرته وينځل.

**د مضمضه او استنشاق په غسل وجه باندې د تقديم حكمت:** په غسل وجه باندې د مضمضه او استنشاق د مقدم كولو وجه دا ده چه د اودس مقصود د اتباع حكم شريعت سره ظاهري طور تطهير او تنظيف هم دې، تطهير او تنظيف په پاكو اوبو سره حاصليږي، اوبه كه ناپاكه وي نو په هغې سره تطهير او تنظيف نه حاصليږي. او ناپاكي كله خو د رنګ نه معلوميږي، كله د بوئې نه او كله د خوند نه، چه كله انسان په لاس كښ اوبه واخلي، چه نظر ته ئې لاړ شي نو رنګ به ئې ورته ښكاره شي، په خوله كنګالولو سره به ورته د خوند او په استنشاق او استنثار سره به ورته د بوئې پته لګي كه اوبه ناپاكې وي نو باقي بدن به د ناپاك كيدو نه بچ شي. خكه چه غسل وجه فرض دې، لهذا د دې دپاره په طور د احتياط او اهتمام اول مضمضه او استنشاق مقرر كړې شو، چه د اوبو پاكولې معلوم شي، د هغې نه روستو اوبو په فرض كښ استعمال كړې شي. والله اعلم(٥)

**قوله: ثُمَّ مَسَحَ بِرَأْسِهِ:** بيا ئې په خپل سر مسح اوكړه.

د دې روايت په يو طريق كښ هم عدد ذكر نه دې.

**مسح به يو كرت كولې شي يا متعدد كرته؟:** جمهور علماء كرام فرمائي چه يو كرت به مسح كولې شي، امام شافعي رحمه الله د درې كرته مسح قائل دې. (٦)

---

١) اوګورئ: فتح الباري ج ١ ص ٢٥٩

٢) اوګورئ: صحيح البخاري ج ١ ص ٢٨، كتاب الوضوء باب المضمضة في الوضوء رقم ١٦٤

٣) فتح الباري ج ١ ص ٢٥٩

٤) اوګورئ: سنن ابي داؤد، كتاب الطهارة، باب صفة وضوء النبي صلى الله عليه وسلم رقم ١٠٨، ١٠٩

٥) اوګورئ: فتح الباري ج ١ ص ٢٦٠

٦) قال النووي رحمه الله: مذهبنا المشهور الذى نص عليه الشافعي رضى الله عنه فى كتبه وقطع به جماهير الاصحاب انه يستحب مسح الراس ثلاثا كما يستحب تطهير باقى الاعضاء ثلاثا. المجموع شرح المهذب ج ١ ص ٤٣٢

د امام شافعي رحمه الله دليل د امام مسلم رحمه الله روايت كړې شوې د سيدنا عثمان رضي الله عنه د حديث ظاهرى الفاظ دى؛ ﴿ الا اريكم وضوء رسول الله ﷺ؟ثم توضاء ثلاثا ثلاثا ﴾(۱)

يعنى رسول الله ﷺ درې درې كرته اودس اوكړو.

خو دا روايت مجمل دې، د سيدنا عثمان رضي الله عنه په تفصيلى رواياتو كښې په يو كښې هم مسح د څه قيد سره نه ده ذكر كړې شوې، او د اودس په باقى اندامونو كښې عدد ذكر دې، دا د دې خبرې دليل دې چه په مسح كښې عدد نشته. (۲)

د سيدنا عثمان رضي الله عنه په كومو رواياتو كښې چه تثليث راغلې دې، محدثين هغه غير ثابت ګڼرى. پس امام ابو داؤد رحمه الله فرمائى : ﴿ احاديث عثمان الصحاح كلها تدل على مسح الراس انه مرة، فانهم ذكروا الوضوء ثلاثا، وقالوا فيها : ومسح راسه، لم يذكروا عددا، كما ذكروا فى غيره ﴾(۳)

يعنى د سيدنا عثمان رضي الله عنه ټول صحيح احاديث په دې باندې دلالت كوى چه د سر مسح به يو كرت وى، ځكه چه راويانو چه څنګه د وضوء ثلاثا ذكر كړې دې هم هغه شان ئې ﴿ ومسح راسه ﴾ هم فرمائيلې دى، د اودس په مغسولاتو كښې چه ئې څنګه د عدد ذكر كړې دې، دلته ئې په مسح كښې د هيڅ عدد ذكر نه دې كړې.

امام بخارى رحمه الله وړاندې تلو سره د ﴿ مسح الراس مرة ﴾ باب قائم كړې دې، هلته به انشاء الله تفصيل راشى.

**قوله:** ثُمَّ غَسَلَ رِجْلَيْهِ ثَلَاثَ مِرَارٍ إِلَى الْكَعْبَيْنِ : بيا ئې درې درې كرته خپلې خپې د ګيټو سره وينځلې.

**قوله:** ثُمَّ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ تَوَضَّأَ نَحْوَ وُضُوئِي هٰذَا:

بيا ئې اوفرمائيل چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه څوك زما د دې اودس په شان اودس اوكړى.

امام نووى رحمه الله فرمائى چه دلته رسول الله ﷺ ﴿ نحو وضوئى ﴾ اوفرمائيل او ﴿ مثل وضوئى ﴾ ئې اونه فرمائيلو ځكه چه ﴿ مثل ﴾ كلى مماثلت غواړى او حقيقى كلى مماثلت ممكن نه دې.(٤)

خو په دې باندې اشكال دا دې چه هم دا روايت په كتاب الرقاق كښې را روان دې په هغې كښې ﴿ من توضاء مثل هذا الوضوء ﴾ الفاظ راغلې دى. (۵)

---

۱) صحيح مسلم، كتاب الطهارة، باب فضل الوضوء والصلاة عقبه، رقم ۵۴۵
۲) صحيح مسلم، كتاب الطهارة، باب صفة الوضوء وكماله رقم ۵۳۸، ۵۳۹
۳) سنن ابى داؤد، كتاب الطهارة، باب فى صفة وضوء النبى ﷺ رقم ۱۰۸
٤) شرح النووى على صحيح مسلم ج ۳ ص ۱۰۸، كتاب الطهارة، باب صفة الوضوء وكماله
۵) صحيح البخارى، ج ۲ ص ص ۹۵۲، كتاب الرقاق، باب قول الله تعالى ﴿ ان وعد الله حق فلا تغرنكم الحياة الدنيا ﴾، رقم ۶۴۳۳

هم دغه شان په مسلم شریف کښې هم د ﴿زید بن اسلم عن حمران﴾ په طریق کښې د ﴿رایت رسول الله ﷺ توضاء مثل وضوئی هذا﴾ الفاظ راغلي دي. (۱)

په دې وجه دا به وئیلې شي چه د ﴿نحو وضوئی﴾ تعبیر د راوی تصرف دې، ځکه چه د دې لفظ اطلاق په ﴿مثلیت﴾ باندې مجازا کولې شي، او په دې وجه هم چه د ﴿مثل﴾ لفظ حقیقی مساوات لره مقتضی دې خو د دې اطلاق هلته هم کولې شي چرته چه کلی مساوات نه وی، بلکه اکثر او اغلب مساوات موجود وی. دغه شان به په دواړه قسم روایاتو کښې تطبیق راشی. (۲)

**قوله: ثُمَّ صَلَّى رَكْعَتَيْنِ لَا يُحَدِّثُ فِيهِمَا نَفْسَهُ:** بیا دوه رکعته اوکړی، په داسې طریقه چه د خپل نفس سره خبرې نه کوی.

**د حدیث نفس نه څه مراد دې؟:** دلته د حدیث نفس نه څه مراد دې؟ حدیث اختیاری مراد دې یا اضطراری؟

اکثر علماء کرام مازری، قاضی عیاض او امام نووی ﷫ فرمائی چه د دې نه حدیث اختیاری مراد دې، ځکه چه وساوس اضطراریه خو د چا په قبضه کښې هم نه وی، خو په دې کښې هیڅ شك نشته چه په کوم مونځ کښې د وساوس اضطراریه نه هم حفاظت وی هغه د انتهائی اعلی درجې مونځ دې. (۳)

خو قاضی عیاض ﷫ د بعض علماء کرامو نه نقل کړی دی چه د وساوس اختیاریه سره سره وساوس غیراختیاریه هم مراد دی. (٤) د امام ابن دقیق العید رجحان هم دې طرف ته معلومیږی.

د هغه دلیل دا دې چه دا حدیث د اعمال تکلیفیه سره متعلق نه دې، بلکه د فضیلت سره متعلق دې، کیدې شی چه د څه اعلی درجې د فضیلت حاصلولو دپاره د انسان نه د یو زبردست مشقت مطالبه اوکړې شی.

او دا هم بعیده نه ده چه یو سړې د دنیاوی مشاغلو نه مجرد شی او د الله پاك په ذکر باندې خپل زړه اباد کړی، نو هغه ته هیڅ قسم اختیاری او اضطراری خیال بالکل رانشی. (۵)

---

۱) صحیح مسلم، کتاب الطهارة، باب فضائل الوضوء، والصلاة عقبه، رقم ٥٤٤

۲) فتح الباری ج ۱ ص ۲۶۰

۳) اوګورئ: شرح النووی علی صحیح مسلم ج ۳ ص ۱۰۹، کتاب الطهارة، باب صفة الوضوء وکماله، واکمال المعلم بفوائد مسلم للقاضی عیاض ج ۲ ص ۱۹

٤) اوګورئ: اکمال المعلم بفوائد مسلم للقاضی عیاض ج ۲ ص ۱۹

۵) قال ابن دقیق العید: ویصح ان یحمل علی النوعین، لان الحدیث لیس فی التکلیف، حتی یرفع فیه العسر، وانما فیه ترتیب ثواب مخصوص علی عمل مخصوص، فمن حصل له ذلک العمل حصل له الثواب قال وغیره بعید ان یحصل لمن تجرد عن شواغل الدنیا، وعمر قلبه بذکر الله عزوجل، اکمال اکمال المعلم لابی ج ۲ ص ۱۳

**ايا په دې حديث کښې د حديث دنيوى سره سره حديث دينى هم داخل دى؟**: د دې نه پس په دې هم ځان پوهه کړه چه په حديث شريف کښې چه کومه د حديث نفس نه نهى راغلې ده په هغې کښې حديث نبوى خو بالاتفاق منهى عنه دې، ځکه چه د امام ابن المبارك، ابن ابى شيبه او د حکيم ترمذى رحمهم الله په رواياتو کښې ﴿ لايحدث نفسه بشئ من الدنيا ﴾ الفاظ راغلې دى. (۱)

خو هغه وساوس د کومو تعلق چه د دين سره دې هغه مطلقا غير مضر دى، يا که په هغې کښې هم څه تفصيل شته؟

د علامه عينى رحمه الله رائې دا ده چه هغه غير مضر دى، که د مانځه سره متعلق وى او که د بل څه خيال وى، پس سيدنا عمر رضي الله عنه فرمائى: ﴿ انى لاجهز جيشى وانا فى الصلاة ﴾(۲)

د حافظ ابن حجر عسقلانى رحمه الله رائې دا ده چه د کومو خيالاتو تعلق د مانځه سره دې، مثلا په قراءت کښې غور او فکر کول نو هغه مضر نه دې او کوم چه د بهر خيالات دى اګر چه د عبادت د جنس نه وى، هغه مضر دى. (۳)

د سيدنا عمر رضي الله عنه په باره کښې منقول دى چه هغه به د مانځه په حالت کښې د جيش تجهيز فرمائيلو، امام ابن تيميه رحمه الله فرمائى چه سيدنا عمر رضي الله عنه مامور بالجهاد وو، هغه يو طرف ته خو امير المومنين وو نو بل طرف ته ورسره امير الجهاد هم وو، پس هغه د بعض وجوه په بنياد د صلاة الخوف ادا کونکى مونځ ګزار په شان شو، کوم چه د دشمن مخې ته ولاړ وى، چونکه عين د قتال حالت وى يا داسې حالت نه وى، د هغه په حق کښې دواړه حکمونه دى چه مونځ هم اوکړى او جهاد هم اوکړى، لهذا د هغه په ذمه لازمه ده چه د امکان د حده پورې دواړه حکمونه پوره کړى.

او دا خبره مسلم ده چه په جهاد قلبى کښې د اطمينان هغه کيفيت نه وى. کوم چه په حالت امن کښې وى نو که دا خبره اومنلې شى چه د جهادى عمل د وجې نه د هغه په مانځه کښې څه نقص واقع شوې دې نو د بنده په کمال ايمان او کمال طاعت کښې به هيڅ کمې نه واقع کيږى، هم د دې وجې نه صلاة الخوف د صلاة الامن په مقابله کښې کم او خفيف ګڼړلې شى، پس الله پاك چه کله د صلاة الخوف ذکر اوفرمائيلو نو وې فرمائيل:

﴿ فَإِذَا اطْمَأْنَنتُمْ فَأَقِيمُوا الصَّلَاةَ إِنَّ الصَّلَاةَ كَانَتْ عَلَى الْمُؤْمِنِينَ كِتَابًا مَّوْقُوتًا ﴾(٤)

بيا چه کله تاسو ته «د دشمن د طرف نه اطمينان حاصل شى، نو مونځ د قاعدې مطابق کوئ،

---

۱) ذکره الحافظ فى الفتح ج ۱ ص ۲۶۰، وانظر المصنف لابن ابى شيبة ج ۵ ص ۲۰۶، کتاب الصلاة، باب فى فضل الصلاة، رقم ۷۷۱۳

۲) انظر صحيح البخارى ج ۱ ص ۱۶۳، باب يفکر الرجل الشئ فى الصلاة، والمصنف لابن ابى شيبة ج ۵ ص ۳۰۶، کتاب الصلاة، باب فى حديث النفس فى الصلاة، رقم ۸۰۳٤

۳) فتح البارى ج ۱ ص ۲۶۰

٤) النساء : ۱۰۳

بیشکه مونږ د مسلمانانو په ذمه یوه داسې فریضه ده کومه چه د وخت پابند ده.
معلومه شوه چه په حالت د اطمینان کښې کوم اقامت صلاة مطلوب دې هغه د ویرې په حالت کښې نه دې.
بیا په خلقو کښې هم ډیر تفاوت موندلې شي، که د بنده ایمان قوي وي نو په مانځه کښې د مختلف امورو د فکر کولو سره سره زړه حاضر وي او سیدنا عمر رضي الله عنه خو هغه شخصیت دې چه د چا په ژبه او زړه باندې الله پاك حق اچولې دې، هغه محدث او ملهم من الله دې، د هغه دپاره دا هیڅ بعیده نه ده چه هغه په مونځ کښې د حاضریدو سره سره په مانځه کښې تدبیر جیش هم کولو، او نورو ته دا خبره نه وي حاصله. (۱)
حافظ ابن القیم رحمه الله فرمائي چه رسول الله صلی الله علیه وسلم په مانځه کښې التفات فرمائیلې وو، ځکه چه یو شهسوار ئې د دشمنانو په نقل او حرکت باندې د نظر ساتلو دپاره لیږلې وو، د سحر په مانځه کښې رسول الله صلی الله علیه وسلم بار بار د هغه شهسوار د لیدلو کوشش کولو، دا په اصل کښې په مانځه کښې التفات اشتغال بالجهاد فی الصلاة دې او دا من باب مداخل العبادات دې، یعنی په یو عبادت کښې ګویا بل عبادت داخل شي لکه چه صلاة الخوف دې چه په دې کښې د مانځه سره سره باقاعده د دشمنانو دفاع کولې شي. ګویا په مانځه کښې دننه عملا جهاد کیږي، هم دغه شان د سیدنا عمر رضي الله عنه دا ارشاد چه ﴿ انی لاجهز جیشی وانا فی الصلاة ﴾ (یعنی زه د مانځه په حالت کښې لښکر تیاروم) هم د جمع بین الجهاد مظهر دې، د دې مثال هم داسې دې لکه د مانځه په حالت کښې د قران کریم په معاني کښې فکر کول، یا د علمي نکات او اسرارو استخراج، ګویا په دې کښې جمع بین الصلاة والعلم ده، دا هم یو قسم التفات دې.یو التفات د غافلانو دې، چه په هغې کښې هغوی په ظاهره خو په مانځه کښې وي، لیکن په حقیقت کښې په عبادت کښې نه وي. (۲) والله اعلم
حضرت مولانا حاجي امداد الله مهاجر مکي رحمه الله فرمائي چه په اصل کښې دا د سیدنا عمر رضي الله عنه وسوسې او خیالات نه وو، په مانځه کښې هغه ته حضوري کیفیت حاصل وو، د الله پاك د طرف نه به په هغه باندې د علوم القاء کیدله.
حضرت مرزا مظهر جان جانان رحمه الله هم په خپلو مکتوباتو کښې هم دا لیکلې دي. والله اعلم
**قوله: غُفِرَ لَهُ مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِهِ:** نو د هغه ټول ګناهونه کوم چه تیر شوې دی، هغه به معاف کولې شي.
امام نووي رحمه الله فرمائي چه د دې نه صغائر مراد دی، ځکه چه د کبائرو د د معاف کیدو دپاره خو ضابطه توبه ده. (۳)

---

۱) الفتاوی الکبری ج ۲ ص ۲۲٤
۲) اوګورئ: زاد المعاد فی هدی خیر العباد ج ۱ ص ۲۵۰، فصل فی هدیه صلی الله علیه وسلم فی الصلاة.
۳) قال النووي : قال القاضي عياض هذا المذكور في الحديث من غفران الذنوب ما لم تؤت كبيرة هو مذهب أهل السنة وأن الكبائر انما تكفرها التوبة أو ... (بقيه برصفحه آئنده)

بعض علماء كرام فرمائي چه كيدې شي د كبائرو هم مغفرت اوشي. (۱) ځكه چه هر كله انسان په طريقه باندې اودس اوكړي، د اودس د ټولو اركانو، آداب او مستحباتو رعايت اوكړي د هغه په زړه كښې به انابت هم پيدا كيږي، كوم چه به داعي الى الندامة وي.
خو دا بعيده ده، ځكه چه په دې تقرير كښې د كبائرو مغفرت په توبه باندې مرتب شو نه په حديث كښې ذكر شوي عمل باندې. والله اعلم

**د دوه احاديثو ترمينځه تعارض او د هغې دفعيه** : په دې حديث كښې مغفرت لره د اودس او صلاة په مجموعه باندې معلق كړې شوې دې. او د مسلم په يو روايت كښې دي!

﴿ من توضاء هكذا غفر له ما تقدم من ذنبه، وكانت صلاته ومشيه الى المسجد نافلة ﴾(۲)

يعني څوك چه داسې اودس اوكړي نو د هغه مخكښې ټول ګناهونه به معاف كړې شي، بيا به د هغه د مونځ او مسجد طرف ته تلل د زيات ثواب باعث وي.
ددې حديث نه معلوميږي چه مغفرت به صرف په اودس باندې مرتب وي.
په دې دواړو احاديثو كښې حقيقة هيڅ تعارض نشته، ځكه چه اودس كونكي يو شان نه وي، د بعض اخلاص د اعلى درجې وي، د هغوي مغفرت صرف په اودس سره كيږي او د بعض اخلاص د كمې درجې وي، د هغه مغفرت په دواړو څيزونو باندې مرتب وي.
دغه شان ذنوب هم يو شان نه وي، لهذا كيدې شي چه د يو سړي اودس صرف د ګناهونو د ختمولو دپاره كافي شي او د بل په اودس كښې صلاة هم شامل كړي. والله اعلم
حضرت شيخ الحديث رحمه الله فرمائي چه په دې قسم تعارض كښې قاعده دا ده چه په كوم روايت كښې د يو زائد څيز اثبات اوشي او يو فضيلت بيان كړې شوې وي، هغه واخستلې شي او د الله پاك نه اميد اوساتلې شي، دلته به داسې وئيلې شي چه اول د مغفرت ترتب په دواړو څيزونو باندې بيان كړې شوې وو، بيا الله پاك احسان او تفضل اوفرمائيلو او صرف په اودس ئې د مغفرت زيرې وركړو، لهذا اوس به هم دا وئيلې شي چه صرف په اودس باندې به ئې انشاء الله مغفرت اوشي. (۳)

.....بقيه ازصفحه گذشته) رحمة الله تعالى وفضله والله أعلم. شرح النووى على صحيح مسلم ج ۳ ص ۱۱۲، كتاب الطهارة، باب فضل الوضوء، والصلاة عقبه.
وقال ابن دقيق العيد : ظاهره العموم في جميع الذنوب، وقد خصوا مثله بالصغائر وقالوا: إن الكبائر إنما تكفر بالتوبة وكأن المستند في ذلك: أنه ورد مقيدا في مواضع كقوله صلى الله عليه وسلم: "الصلوات الخمس والجمعة إلى الجمعة ورمضان إلى رمضان: كفارات لما بينهن ما اجتنبت الكبائر" فجعلوا هذا القيد في هذه الأمور مقيدا للمطلق في غيرها. احكام الاحكام شرح عمدة الاحكام ج ۱ ص ۳۲
۱) پس علامه عيني رحمه الله په شرح سنن ابى داؤد ج ۵ ص ۲۷۵، باب فى قيام شهر رمضان د لاندې ليكي : اللفظ عام ينبغي ان يشمل الصغيرة والكبيرة، والتخصيص بلا مخصص باطل.
۲) صحيح مسلم، كتاب الطهارة، باب فضل الوضوء والصلاة عقبه، رقم ٥٤٤
۳) ازګورئ: الكنز المتوارى تعليقات لامع الدرارى ج ۳ ص ٤٥

يو امکان دا هم دي چه د صحيح مسلم په روايت کښې چه په کوم کښې صرف د اودس ذکر دې، په هغې کښې مقصود د اودس فضيلت بيانول دی، او د بخاري په دې روايت کښې اصلا او قصدا د رکعتين ثواب او د هغې فضيلت بيانول مقصود دی، د اودس ذکر تبعا دې. (۱) والله اعلم

**د يو اشکال دفعه کول**: دلته يو اشکال دا کولې شي چه په دې حديث کښې په اودس او مونځ سره د گناه د بخښلو زيرې ورکړې شوې دې! او د مسلم شريف په يو حديث کښې دی!

﴿ الصلوات الخمس، والجمعة الى الجمعة، ورمضان الى رمضان مكفرات ما بينهن اذا اجتنب الكبائر ﴾(۲)

يعنی پنځه وارهم مونځونه، د يوې جمعې نه بلې جمعې پورې، د يو رمضان نه بل رمضان پورې، که د کبائرو نه اجتناب اوکړې شي نو دا اعمال د گناهونو کفاره ده.

هم دغه شان په مسلم کښې يو روايت دې! ﴿ صيام يوم عرفة احتسب على الله ان يكفر السنة التي قبله، والسنة التي بعده، وصيام يوم عاشوراء احتسب على الله ان يكفر السنة التي قبله ﴾(۳)

يعنی د عرفې د ورځې روژه زه د الله پاك نه اميد لرم چه په هغې سره به د يو کال مخکښې او يو کال روستو دپاره کفاره جوړه شي او د عاشورې روژه زه د الله پاك نه اميد لرم چه هغه به د يو کال مخکښې گناهونو دپاره کفاره شي.

اوس که په صلوات خمسه سره د گناهونو مغفرت اوشو نو په نورو طاعتونو سره به د څه مغفرت کيږی، که په اودس سره مغفرت اوشو نو په باقی طاعاتو سره به د مغفرت رخ کوم طرف ته وی.؟

د دې جواب دا دې چه که يو سړې د صغائرو مرتکب دې نو د هغه د معاصی دپاره به طاعات مکفر وی او که صغائر نه وی نو د هغه د درجاتو د اوچتيدلو سبب به جوړيږی، ځکه چه قاعده ده! ﴿ ان المغفرة اذا تصادفت مع المحل المغفور، فانها تكون سببا لرفع الدرجات وعلو المراتب عند الله ﴾(٤)

يعنی کله چه مغفرت په بخښلې شوی محل باندې وارد شی نو مغفرت د رفع درجات او د مرتبې د اوچت والی سبب جوړيږی.

امام نووی رحمه الله فرمائی چه د دې اعمالو نه هر عمل د مکفر جوړيدو قابل دې، پس که صغائر وی نو د هغوی به تکفير کولې شی او که صغائر او کبائر هيڅ نه وی نو نيکئ ليکلې

---

۱) پورته حواله

۲) صحيح مسلم، کتاب الطهارة، باب الصلوات الخمس، والجمعة الى الجمعة، ورمضان الى رمضان مكفرات لما بينهن ما اجتنبت الكبائر، رقم (۵۵۰).

۳) صحيح مسلم، کتاب الصيام، باب استحباب صيام ثلاثة ايام من کل شهر وصوم يوم عرفة وعاشوراء والاثنين والخميس رقم ۲۷۴۶.

٤) الكنز المتواری تعليقات لامع الدراری ج ۳ ص ٤۵.

شي او رفع درجات به وی او که صغائر نه وی، بلکه کبائر وی نو امید دې چه تخفیف به اوشي. والله اعلم(۱)

﴿وَعَنْ إِبْرَاهِيمَ قَالَ قَالَ صَالِحُ بْنُ كَيْسَانَ قَالَ ابْنُ شِهَابٍ وَلَكِنْ عُرْوَةُ يُحَدِّثُ عَنْ حُمْرَانَ فَلَمَّا تَوَضَّأَ عُثْمَانُ قَالَ أَلَا أُحَدِّثُكُمْ حَدِيثًا لَوْلَا آيَةٌ مَا حَدَّثْتُكُمُوهُ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ لَا يَتَوَضَّأُ رَجُلٌ يُحْسِنُ وُضُوءَهُ وَيُصَلِّي الصَّلَاةَ إِلَّا غُفِرَ لَهُ مَا بَيْنَهُ وَبَيْنَ الصَّلَاةِ حَتَّى يُصَلِّيَهَا قَالَ عُرْوَةُ الْآيَةَ: إِنَّ الَّذِينَ يَكْتُمُونَ مَا أَنْزَلْنَا مِنَ الْبَيِّنَاتِ﴾
[۱۶۲، ۱۸۳۲، ۲۰۲۹]

## رجال الحديث

① **ابراهيم** : دا هم هغه ابراهيم بن سعد بن ابراهيم بن عبد الرحمن بن عوف دې، چه د هغه په مخکښې حديث کښې ذکر راغلې دې، د هغه تذکره په كتاب الايمان کښې د باب تفاضل اهل الايمان في الاعمال او په كتاب العلم کښې د باب ما ذكر في ذهاب موسى صلى الله عليه وسلم في البحر الى الخضر د لاندې تيره شوې ده. (۲)

② **صالح بن كيسان** : دا صالح بن كيسان مدني رحمه الله دې. د هغه حالات هم په كتاب الايمان کښې د باب تفاضل اهل الايمان في الاعمال د لاندې تير شوی دی. (۳)

③ **ابن شهاب** د امام محمد بن مسلم بن عبيد الله بن عبد الله بن شهاب الزهري رحمه الله حالات هم په بدء الوحي کښې د ﴿بدء الوحي﴾ د دريم حديث د لاندې تير شوې دی. (٤)

④ **عروه** : د عروه بن عبد الله بن الزبير رحمه الله حالات په بدء الوحي کښې د دويم حديث د لاندې، او په كتاب الايمان کښې د باب احب الدين الى الله ادومه د لاندې تير شوې دی. (۵)

⑤ **حمران** : د حمران بن ابان رحمه الله حالات اوس د مخکښې حديث د لاندې تير شو.

**قوله**: وَعَنْ إِبْرَاهِيمَ قَالَ قَالَ صَالِحُ بْنُ كَيْسَانَ : علامه كرماني او علامه مغلطائي رحمهما الله فرمائي چه دا تعليق دې. (۶) خو صحيح دا ده چه دا موصول بالاسناد السابق دې او په ﴿حدثني ابراهيم بن سعد﴾ باندې معطوف دې او مطلب دا دې چه څنګه اولنې

۱) شرح النووي على صحيح مسلم ج ۳ ص ۱۳۳، كتاب الطهارة، باب فضل الوضوء والصلاة عقبه.
۲) كشف الباري ج ۲ ص ۱۲۰، ج ۳ ص ۳۳۳
۳) كشف الباري ج ۲ ص ۱۲۱
٤) كشف الباري ج ۱ ص ۳۲۶
۵) كشف الباري ج ۱ ص ۲۹۱، و ج ۲ ص ٤۳۶
۶) اوګورئ شرح الكرماني ج ۲ ص ۲۰۹، وفتح الباري ج ۱ ص ۲۶۱

حديث عبدالعزيز اويسى د ابراهيم بن سعد نه نقل كوى، هم دغه شان دا دويم حديث هم عبدالعزيز اويسى د ابراهيم نه نقل كوى.
د موصول بالاسناد السابق منلو قرينه دا ده چه دا دواړه احاديث امام مسلم او امام اسماعيلى رحمه الله د ﴿يعقوب بن ابراهيم﴾ په واسطې سره موصولا نقل كړې دى (۱) نو كيدې شى چه څنګه د يعقوب سره دواړه احاديث وى، د هغه دويم ملګرى عبدالعزيز اويسى سره هم دواړه احاديث وى. (۲)
بيا په صحيح ابى عوانه كښې دا حديث د عبدالعزيز اويسى نه روايت دې، (۳) لهذا دا خبره معلومه شوه چه دا حديث په صحيح بخارى كښې موصول بالاسناد السابق دې، معلق نه دې.
والله اعلم

**قوله: قَالَ ابْنُ شِهَابٍ وَلَكِنْ عُرْوَةُ يُحَدِّثُ عَنْ حُمْرَانَ:** ابن شهاب زهرى رحمه الله فرمائى خو عروه د حمران نه داسې روايت كوى.
مطلب دا دې چه د ابن شهاب زهرى دوه استاذان دى، يو په مخكښې روايت كښې عطاء بن يزيد دې، يو په دې روايت كښې عروة بن الزبير دې. عطاء بن يزيد ئې بل شان نقل كوى او عروه بن الزبير ئې په بله طريقه باندې نقل كوى.
خو واضحه دې وى چه دا څه د روايتونو اختلاف نه دې بلكه په اصل كښې دوه احاديث دى، يو د عطاء سره او دويم د عروه سره، دا دواړه روايتونه معاذ بن عبدالرحمن روايت كړې دى. امام بخارى رحمه الله د هغه په طريق سره د عطاء د سياق مطابق روايت كړې دې. (٤) او امام مسلم رحمه الله هم د هغه په طريق سره د عروه د سياق مطابق روايت كړې دې. (۵) هم دغه شان امام مسلم رحمه الله د ﴿هشام بن عروة عن ابيه﴾ په طريق سره هم نقل كړې دې. (۶)

**قوله: فَلَمَّا تَوَضَّأَ عُثْمَانُ قَالَ أَلَا أُحَدِّثُكُمْ حَدِيثًا لَوْلَا آيَةٌ مَا حَدَّثْتُكُمُوهُ:** بيا چه كله سيدنا عثمان رضى الله عنه اودس اوكړو نو وې فرمائيل چه زه تاسو ته يو حديث واورم! كه آيت نه وې نو ما به تاسو ته كله هم نه وې اورولې.

---

۱) اوګورئ: صحيح مسلم، كتاب الطهارة، باب صفة الوضوء بكماله، رقم ۵۳۹ و ۵۴۲، وفتح البارى ج ۱ ص ۲۶۱
۲) فتح البارى ج ۱ ص ۲۶۱
۳) اوګورئ: مسند ابى عوانة ج ۱ ص ۱۹۳، كتاب الطهارة، باب بيان الترغيب فى الوضوء وثواب اسباغه، رقم ۶۱۱
٤) اوګورئ صحيح البخارى ج ۲ ص ۹۵۲، كتاب الرقاق، باب قول الله تعالى: ان وعد الله حق فلا تغرنكم الحياة الدنيا ... رقم ۶۴۳۳
۵) صحيح مسلم، كتاب الطهارة، باب فضل الوضوء، والصلاة عقبه، رقم ۵۴۹
٦) صحيح مسلم، كتاب الطهارة، باب فضل الوضوء والصلاة عقبه، رقم ۵۴۰- ۵۴۲

د دې آيت كريمه نه مراد لكه چه د عروه رحمه الله د دې حديث په اخر كښې را روان دې ﴿ ان الذين يكتمون ما انزلنا الخ ﴾(۱) دى.

مطلب دا دې كه د كتمان علم وعيد په قران كريم كښې نه وې نو ما به دا حديث نه بيانولو، ځكه چه په لړ شان عمل باندې د ډير ثواب وعده ده تاسو به په اعمالو باندې اتكال شروع كړې او په زياتو اعمالو كښې به كوتاهى كوئ.

په موطاء امام مالك كښې دا روايت د ﴿ لولا اية ... ﴾ په ځائې د ﴿ لولا انه فى كتاب الله ﴾ الفاظو سره راغلې دې او امام مالك رحمه الله د دې مصداق آيت كريمه ﴿ وَأَقِمِ الصَّلَاةَ طَرَفَيِ النَّهَارِ وَزُلَفًا مِّنَ اللَّيْلِ إِنَّ الْحَسَنَاتِ يُذْهِبْنَ السَّيِّئَاتِ ذَٰلِكَ ذِكْرَىٰ لِلذَّاكِرِينَ ﴾(۲) مراد كړې دې. (۳)

اوس مطلب دا شو چه كه په قران كريم كښې دا مضمون نه وې راغلې نو ما به تاسو ته دا حديث نه اورولو، خو چونكه په قران كريم كښې دا مضمون موجود دې او تاسو ته دا معلوم دې نو اوس په حديث اورولو كښې هيڅ باك نشته، په دې وجه زه تاسو ته حديث اوروم. (٤)

حافظ ابن حجر رحمه الله وغيره شارحينو د ﴿ انه ﴾ روايت د ﴿ اية ﴾ نه تحريف ګنړلې دې؛ (۵)

حقيقت دا دې چه د بخارى په روايت كښې عروه رحمه الله بالجزم د آيت كريمه تعيين اوكړو، او د موطاء په روايت كښې امام مالك رحمه الله ﴿ اراه يريد هذه الاية ﴾ وئيلو سره احتمالا يو آيت كريمه ذكر فرمائيلې دې، اګر چه د معنى او مضمون په اعتبار سره مطلب بالكل واضح دې، په دې كښې هيڅ خرابى نشته، خو د عروه رحمه الله جزما بيانول به د امام مالك رحمه الله د احتمالى مصداق په مقابله كښې راجح ګنړلې شى. (۶) والله اعلم

﴿ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ لَا يَتَوَضَّأُ رَجُلٌ يُحْسِنُ وُضُوءَهُ وَيُصَلِّي الصَّلَاةَ إِلَّا غُفِرَ لَهُ مَا بَيْنَهُ وَبَيْنَ الصَّلَاةِ حَتَّى يُصَلِّيَهَا ﴾

ما د رسول الله ﷺ نه واوريدل. وې فرمائيل چه څوك چه كله په ښه طريقه باندې اودس اوكړى او مونځ ادا كړى نو د هغه د دې مونځ او د راروان مونځ ترمينځه ګناهونه معاف كولې شى، تردې چه د هغه مونځ نه فارغ شى يا بل مونځ شروع كړى.

**قوله:** ويصلي الصلاة: او مونځ اوكړى.

---

۱) البقرة ۱۵۹

۲) هود : ۱۱٤

۳) اوګورئ : موطاء امام مالک، كتاب الطهارة، باب جامع الوضوء.. رقم ۵۹

٤) اوګورئ : شرح النووى على صحيح مسلم ج ۳ ص ۱۱۱، كتاب الطهارة، باب فضل الوضوء والصلاة عقبه. هم دغه شان اوګورئ : مصفى شرح موطاء از شاه ولى الله رحمه الله : ج ۱ ص ۶۹

۵) فتح البارى ج ۱ ص ۲۶۱

۶) شرح النووى على صحيح مسلم ج ۳ ص ۱۱۱. وفتح البارى ج ۱ ص ۲۶۱

د مسلم په يو روايت كښې د ﴿ المكتوبة ﴾ قيد موجود دې. (۱)

هم دغه شان د مسلم په يو روايت كښې ﴿ فيصلى هذه الصلوات الخمس ﴾ ذكر دې. (۲)

**قوله:** إِلَّا غُفِرَ لَهُ مَا بَيْنَهُ وَبَيْنَ الصَّلَاةِ: مګر دا چه د هغه د هغه فرض مونځ چه اوس ئې كړې دې او د وړاندې مونځ ترمينځه كړې ټول ګناهونه به معاف شي.

حضرت ګنګوهى رحمه الله د ﴿ ما بينه ﴾ ضمير د ﴿ نفس ﴾ طرف ته راجع كړې دې يعنى د هغه سړى طرف ته ئې واپس كړې دې او مطلب ئې دا بيان كړې دې چه د هغه سړى د بالغ كيدو او مكلف كيدو نه تر مونځ كولو پورې به ټول ګناهونه معاف كړې شي، فرمائى چه دا معنى به په هغه صورت كښې وى چه كله ﴿ ما ﴾ د فعل مجهول مفعول اومنلې شى او كه ﴿ ما ﴾ ظرفيه اومنلې شى نو مطلب به دا وى چه ﴿ غفر له ذنوبه فى وقت من اوقات ابتدائه الوضوء الى وقت اتمامه الصلاة ﴾ يعنى د هغه د اودس د شروع كولو نه تر د اتمام صلاة پورې ټول ګناهونه به معاف كړې شى. (۳)

دويم احتمال دا دې چه د ﴿ ما بينه ﴾ ضمير د ﴿ مصلى ﴾ يا ﴿ متوضى ﴾ طرف ته راجع شى، په دې صورت كښې د دې ضمير نه مخكښې به يو مضاف محذوف وى، د عبارت تقدير به داسې وى: ﴿ غفر له ما بين صلاته وبين الصلاة التى تليها ﴾ يعنى هغه سړى چه كوم فرض مونځ ادا كړو، د هغې نه واخله تر د مونځ ادا كولو پورې به ټول ګناهونه معاف كړې شى.

بيا د صحيح مسلم په روايت كښې د ﴿ التى تليها ﴾ د قيد اضافه ده. (٤)

اوس به د پوره جملې مطلب دا وى چه دا سړې هر كله په ښه طريقه اودس اوكړى د هغې نه روستو څه فرض مونځ اداكړى او دهغې نه روستو يو بل مونځ اداكړى نو دهغه دواړو مونځونو ترمينځه چه ئې څومره ګناهونه (صغائر) كړې وى هغه به ټول معاف كړې شى. والله اعلم

**قوله:** حَتَّى يُصَلِّيَهَا: تردې چه د هغه دويم مونځ نه فارغ شى.

شاته چه كوم ﴿ غفر له ما بينه وبين الصلاة ﴾ راغلې دې، په هغې كښې يو احتمال دا دې چه هغه چه كوم مخكښې مونځ ادا كړې دې، د هغې نه واخله تر د دوئم مونځ د شروع كولو پورې به ئې ټول ګناهونه معاف شى.

---

۱) وفى حديث ابى اسامة : فيحسن وضوءه ثم يصلى المكتوبة. صحيح مسلم، كتاب الطهارة، باب فضل الوضوء، والصلاة عقبه، رقم ٥٤١

۲) ما من مسلم يتطهر فيتم الطهور الذى كتب الله عليه، فيصلى هذه الصلوات الخمس الا كانت كفارات لما بينهن. (صحيح مسلم، كتاب الطهارة، باب فضل الوضوء والصلاة عقبه رقم ٥٤٦

۳) اوګورئ: لامع الدرارى مع الكنز المتوارى ج ۳ ص ٤٧ تا ٤٩

٤) اوګورئ: صحيح مسلم، كتاب الطهارة، باب فضل الوضوء والصلاة عقبه، رقم ٥٤٠، ٥٤٢

دويم احتمال دا دې چه د دې اولنى مونځ نه واخله تر د دويم مونځ د اختتام پورې او د هغې نه د فارغ كيدو پورې ټول ګناهونه به معاف شي.

د ﴿حتى يصليها﴾ جملې دا دويم احتمال متعين کړو چه دا مغفرت به د دويم مونځ د ختم پورې ممتد وي.

حافظ ابن حجر رحمه الله د ﴿حتى يصليها﴾ معنى ﴿حتى يشرع فى الصلاة الثانية﴾ کړې ده، او د اولنۍ معنى ذکومې ته چه علامه عينى رحمه الله راجحه وئيلې ده، په رڼړا کښې به د دې معنى وى ﴿حتى يفرغ من الصلاة الثانية﴾ (۱) والله اعلم

**قوله: قَالَ عُرْوَةُ الآيَةَ: إِنَّ الَّذِينَ يَكْتُمُونَ مَا أَنْزَلْنَا مِنَ الْبَيِّنَاتِ:** عروه رحمه الله فرمائى چه په حديث کښې د آيت کريمه نه مراد: ﴿إِنَّ الَّذِينَ يَكْتُمُونَ....﴾ والا آيت دې. (۲)

د مسلم په روايت کښې د ﴿اللاعنون﴾ پورې تصريح ده. (۳)

★★★★★

## (۲۴) بَابُ الِاسْتِنْثَارِ فِي الْوُضُوءِ

**د مخکښې باب سره مناسبت:** په مخکښې باب د ﴿الوضوء ثلاثا ثلاثا﴾ ذکر وو، په دې باب کښې د ﴿الاستنثار فى الوضوء﴾، دا دويم باب د اول باب جزء دې. (٤)

**د استنثار لغوى او اصطلاحى تحقيق:** ﴿استنثار﴾ د باب استفعال نه د ﴿نثر﴾ نه اخستلې شوې دې، چه د هغې معنى ده: منتشر کول، خورول.

بعض حضرات فرمائى چه دا د ﴿نثرة﴾ نه اخستلې شوې دې، چه معنى ئې د طرف الانف ده، علامه خطابى رحمه الله فرمائى چه ﴿نثرة﴾ انف يعنى پوزې ته وائى، خو مشهوره اوله معنى يعنى طرف الانف ده.

امام فراء رحمه الله فرمائى ﴿نثر الرجل وانتثر واستنثر: استنشق وحرك النثرة، وهى طرف الانف﴾

په اصطلاح کښې انتثار وئيلې شى: ﴿ان يستنشق الماء ثم يستخرج ما فيه من اذى او مخاط﴾ يعنى اوبه د پوزې په ذريعه اوچتول او بيا سوړو لو سره د ګندګئ بهر كول.

---

۱) اوګورئ: عمدة القارى ج ۳ ص ۱۳، وفتح البارى ج ۱ ص ۱۶۱

۲) پوره آيت كريمه داسې دې: ﴿إِنَّ الَّذِينَ يَكْتُمُونَ مَا أَنْزَلْنَا مِنَ الْبَيِّنَاتِ وَالْهُدَى مِنْ بَعْدِ مَا بَيَّنَّاهُ لِلنَّاسِ فِي الْكِتَابِ أُولَئِكَ يَلْعَنُهُمُ اللَّهُ وَيَلْعَنُهُمُ اللَّاعِنُونَ﴾ سورة البقرة: ۱۵۹

۳) اوګورئ: صحيح مسلم، كتاب الطهارة، باب فضل الوضوء والصلاة عقبه، رقم ۵۴۲

٤) اوګورئ: عمدة القارى ج ۳ ص ۱۳

علامه جوهري رحمه الله فرمائي ﴿ الانتثار والاستنثار نثر ما في الانف بنفس ﴾ يعني پوزه كښ چه څه دي هغه د ساه په ذريعه بهر راويستل.
حاصل دا دې چه د ساه په ذريعه په پوزه كښ اچولې شوې اوبه د ساه په ذريعه راويستل، چه د ننه ګندګي وغيره صفا شي، دې ته استنثار يا انتثار وئيلې شي. (۱)

**مؤلف د استنشاق باب ولې منعقد نه کړو؟**: امام بخاري رحمه الله دلته د ﴿ استنثار ﴾ باب خو قائم کړو خو د ﴿ استنشاق ﴾ باب ئې نه دې قائم کړې، د دې څه وجه ده؟

ابن الاعرابي او ابن قتيبه رحمهما الله فرمائي چه استنثار او استنشاق يو څيز دې. (۲)
که د امام بخاري رحمه الله هم دا رائې وي نو بيا خو هيڅ اشکال نشته، خو که هغه په دواړو کښ تفريق کوي لکه چه د عام اهل لغت رائې ده. (۳) او هم دا صحيح هم ده، د حديث شريف نه ئې هم تفريق ثابت دې، (٤) نو په دې صورت کښ دا جواب دې چه د استنثار دپاره استنشاق لازم دې، مصنف رحمه الله ملزوم ذکر کړو، د دې نه د لازم خپله معلومات اوشو، ځکه چه ملزوم په لازم باندې دلالت کوي. (۵)
خو سوال دا دې چه امام بخاري رحمه الله د استنثار په ځائې د استنشاق ذکر ولې اونکړو؟
ددې جواب دادې چه که استنشاق ئې وئيلې وې نو د دې نه به د استنثار معلومات نه کيدو؛ يوه بله وجه دا هم ذهن ته راځي چه اصل استنثار دې، ځکه چه مقصود د پوزې باطن صفا کول دي او دا صرف په استنشاق سره نه حاصليږي، په استنثار سره حاصليږي، ځکه چه کله انسان پوزه سونړوي او هغه صفا کوي نو هله دننه حصه صفا کيږي. والله اعلم

**استنثار لره په مضمضه باندې د مقدم کولو وجه** : دلته يو سوال دا هم پيدا کيږي چه امام بخاري رحمه الله د باب الاستنثار في المضمضه ترجمه اول قائم کړې ده او باب المضمضه في الوضوء ترجمه ئې روستو ذکر کړه، حال دا چه ترتيب وجودي د دې برعکس دې چه اول مضمضه وي او بيا استنشاق او استنثار، نو مصنف رحمه الله لره هم د دې ترتيب وجودي اتباع کول پکار وو، د دې ترتيب معهود خلاف ئې ولې اوکړل؟

---

۱) اوګورئ: المغرب في ترتيب المعرب ج ۲ ص ۲۸۶، ۲۸۷، ومعالم السنن ج ۱ ص ٤۹، كتاب الطهارة، ومن باب صفة وضوء النبي صلى الله عليه وسلم
۲) اوګورئ: تاج العروس ج ١٤ ص ۱۷۳، مادة نثر. وشرح النووي على صحيح مسلم ج ۳ ص ۱۰۵، كتاب الطهارة، باب صفة الوضوء وكماله
۳) اوګورئ: تاج العروس ج ١٤ ص ۱۷٤، ۱۷۵، مادة نثر
٤) پس وراندې په بخاري ج ۱ ص ۲۸، كتاب الوضوء، باب المضمضة في الوضوء رقم ١٦٤، کښې د سيدنا عثمان رضي الله عنه په روايت کښې دي: ثم تمضمض، واستنشق واستنثر.
هم دغه شان په صحيح البخاري ج ۱ ص ۳۱، كتاب الوضوء، باب غسل الرجلين الى العقبين رقم ۱۸٦ کښې د سيدنا عبدالله بن زيد بن عاصم رضي الله عنه په روايت کښې دي: فمضمض، واستنشق، واستنثر
۵) اوګورئ: لامع الدراري مع الكنز المتواري ج ۳ ص ٤۹

د دې جواب دا ورکړې کیدې شي چه په استنثار کښې چونکه د پوزې د باطن صفائی کیږي او د پوزې باطن د خولې په اعتبار سره باطن دې او خوله د پوزې د باطن په اعتبار سره ظاهر دې، ګویا دې خبرې طرف ته ئې اشاره اوکړه چه تنظیف بواطن په تنظیف ظواهر باندې مقدم دې
او دا هم ممکنه ده چه په دې تقدیم سره د استنثار اهمیت طرف ته متوجه کول مقصود وی، د دې وجه دا ده چه د حکم په اعتبار سره استنثار د مضمضه نه ارجح دې او په دې ځان پوهه کول د مذاهب په پوهیدو باندې موقوف دی.
په اودس او غسل کښې د مضمضه او استنشاق په باب کښې د علماء کرامو څلور اقوال دی!

① امام مالك او امام شافعی رحمهما الله فرمائی چه دواړه په اودس او غسل کښې سنت دی.
② د امام احمد رحمه الله په نزد د هغه د مشهور روایت مطابق دواړه، په دواړو کښې واجب دی.
③ امام ابو حنیفه رحمه الله فرمائی چه دواړه په اودس کښې سنت او په غسل کښې واجب دی، هم دا د امام احمد رحمه الله یو روایت دې.
④ او امام احمد رحمه الله په یو روایت کښې فرمائی چه استنشاق په دواړو کښې واجب دې او مضمضه په دواړو کښې سنت ده. (۱)

اولنی درې واړه اقوال خو برابر دی، خو دا اخری څلورم قول استنشاق ته ترجیح ورکوی، ځکه چه د څلورم قول مطابق استنشاق په دواړو کښې واجب دې او مضمضه په دواړو کښې سنت ده او د واجب درجه د سنت نه زیاته ده، لهذا هغه احق بالتقدیم دې، نو کیدې شی چه امام بخاری رحمه الله د دې خبرې لحاظ ساتلې وی.
خو په دې باندې اشکال دا دې چه دا ټول اختلاف خو په مضمضه او استنشاق کښې دې او امام بخاری رحمه الله خو د استنثار او مضمضه ابواب قائم کړې دی او د استنثار د وجوب په قول د امام نووی رحمه الله خوك هم قائل نه دی. (۲)
د دې جواب دا دې چه دا د امام نووی رحمه الله خپله رائې ده، او ابن بطال رحمه الله د بعض علماء کرامو نه وجوب نقل کړې دې. (۳) او کوم حضرات چه د استنشاق د وجوب قائل دی لکه امام احمد بن حنبل، امام اسحاق بن راهویه، ابوثور او ابو عبیده رحمهم الله وغیره، د هغوی په

---

۱) د مذاهبو د تفصیلاتو دپاره اوګورئ : بدائع الصنائع ج ۱ ص ۲۱، مطلب فی کیفیة الاستنجاء، ومواهب الجلیل شرح مختصر الخلیل ج ۱ ص ۴۵۸، والمجموع شرح المهذب ج ۱ ص ۳۶۲، ۳۶۳، والانصاف ج ۱ ص ۱۵۲

۲) قال النووی رحمه الله وأما قوله صلی الله علیه و سلم فلیجعل فی أنفه ماء ثم لینثر ففیه دلالة ظاهرة علی أن الاستنثار غیر الاستنشاق ... وفیه دلالة لمذهب من یقول الاستنشاق واجب لمطلق الامر ومن لم یوجبه حمل الأمر علی الندب بدلیل أن المأمور به حقیقة وهو الانتثار لیس بواجب بالاتفاق. شرح النووی علی صحیح مسلم ج ۳ ص ۱۲۶، کتاب الطهارة، باب الایتار فی الاستنثار والاستجمار

۳) قال ابن بطال : وقد اوجب بعض العلماء الاستنثار بظاهر الحدیث ... شرح ابن بطال ج ۱ ص ۲۵۱

مسلك باندې استنثار هم واجب کیدل پکار دی، (۱) ځکه چه په حدیث کښې ﴿ من توضاء فليستنثر ﴾ د امر صیغه راغلې ده. كمافي الحديث
حافظ رحمه الله فرمائی چه د موفق د کلام نه هم دا معلومیږی چه دا خلق د استنثار د وجوب قائل دی. (۲)
او که بالفرض اومنلې شی چه استنشاق خو واجب دې، استنثار نه دې، نو بیا هم په پورته تقریر باندې هیڅ اشکال نشته. ځکه چه د استنثار دپاره استنشاق لازم دې نو ګویا استنشاق د استنثار په ضمن کښې راغلو. والله سبحانه وتعالى اعلم

﴿ذَكَرَهُ عُثْمَانُ وَعَبْدُاللَّهِ بْنُ زَيْدٍ[ر:۱۵۸، ۱۸۳] وَعَبْدُاللَّهِ بْنُ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ﴾

يعنى سيدنا عثمان، سيدنا عبدالله بن زيد او ابن عباس رضي الله عنهما د استنثار ذکر د رسول الله ﷺ نه نقل کړې دې.
د سيدنا عثمان رضي الله عنه حدیث وړاندې راروان دې. (۳)
د سيدنا عبدالله بن زيد بن عاصم رضي الله عنه حدیث هم وړاندې راروان دې. (٤)
د سيدنا ابن عباس رضي الله عنهما د صفت وضوء په سلسله کښې حدیث شاته په باب غسل الوجه باليدين من غرفة واحدة د لاندې تیر شوې دې، خو په هغې کښې د استنثار ذکر نشته.
علامه عینی رحمه الله فرمائی چه د بخاری په بعض نسخو کښې د سیدنا ابن عباس رضي الله عنهما په حدیث کښې د ﴿ واستنشق ﴾ په ځائې ﴿ واستنثر ﴾ راغلې دې.
خو د دې نسخې ذکر نه خو حافظ ابن حجر رحمه الله کړې دې او نه علامه قسطلانی، او حال دا دې چه علامه قسطلانی رحمه الله د نسخې په نقل کښې ډیر معتمد دې، هم دغه شان د یونینیه چه کومه نسخه د شيخ زهير ناصر په تحقیق سره چهاپ شوې ده، چه په هغې کښې د نسخو د ذکر ډیر اهتمام دې، په هغې کښې هم د واستنثر د نسخې ذکر کولو نشته. (۵)

---

۱) اوګورئ: فتح الباری ج ۱ ص ۲۶۲
۲) پورته حواله
۳) صحيح البخاری ج ۱ ص ۲۸، كتاب الوضوء، باب المضمضة والاستنشاق رقم ۱٦٤، قال الحافظ: ذكره اى روى الاستنثار عثمان، وقد تقدم حديثه، فتح الباری ج ۱ ص ۲٦۲، قلت نعم قد تقدم حديث عثمان فى باب الوضوء ثلاثا ثلاثا الا انه لم يذكر فيه الاستنثار وانما ذكر الاستنثار فيما سياتى من حديث عثمان فى باب المضمضة فى الوضوء، كما نقلته انفا.
٤) انظر صحيح البخاری ج ۱ ص ۳۱، كتاب الوضوء، باب مسح الراس كله، رقم ۱۸۵، وباب غسل الرجلين الى الكعبين رقم ۱۸٦
٥) اوګورئ: فتح الباری ج ۱ ص ۲٤۱، ارشاد السارى ج ۱ ص ۲۳۲، والجامع الصحيح بتحقيق زهير الناصر ج ۱ ص ٤۰، رقم ۱٤۰

دا تول د دي خبرې قرينه ده چه دا نسخه ثابته نه ده. والله اعلم
حافظ رحمه الله فرمائي چه غالبا امام بخاري رحمه الله د ابن عباس رضي الله عنهما د هغه احاديثو طرف ته اشاره کړې ده کوم چه امام احمد، امام ابوداؤد او امام حاکم رحمهم الله د ابن عباس رضي الله عنهما نه مرفوعا روایت کړي دي: ﴿واستنثروا مرتين بالغتين او ثلاثا﴾ (١)
هم دغه شان په مسند ابی داؤد طیالسی کښې د ابن عباس رضي الله عنهما مرفوع روایت دې!
﴿اذا مضمض احدكم واستنثر فليفعل ذلك مرتين بالغتين او ثلاثا﴾ (٢) والله سبحانه وتعالى اعلم

١٥٩: ﴿حَدَّثَنَا عَبْدَانُ قَالَ أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللَّهِ قَالَ أَخْبَرَنَا يُونُسُ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ أَخْبَرَنِي أَبُو إِدْرِيسَ أَنَّهُ سَمِعَ أَبَا هُرَيْرَةَ (٣) عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ قَالَ مَنْ تَوَضَّأَ فَلْيَسْتَنْثِرْ وَمَنِ اسْتَجْمَرَ فَلْيُوتِرْ﴾ [١٦٠]

## رجال الحديث

① **عبدان**: دا عبدالله بن عثمان رحمه الله دي چه معروف دې په عبدان سره، د هغه حالات په بدء الوحی کښې د پنځم حدیث د لاندې تیر شوې دی. (٤)

② **عبدالله**: دا امام عبدالله بن المبارك بن واضح المروزی الحنظلی رحمه الله دې. د هغه حالات هم په بدء الوحی کښې د پنځم حدیث د لاندې تیر شوې دی. (٥)

③ **یونس**: دا یونس بن یزید ایلی رحمه الله دې، د هغه حالات هم د بدء الوحی د پنځم حدیث د لاندې او په کتاب العلم کښې د باب من یرد الله به خیرا یفقهه فی الدین د لاندې تیر شوې دی. (٦)

④ **الزهری** دا امام محمد بن مسلم بن عبید الله بن عبد الله بن شهاب زهری مدنی رحمه الله دې، د هغوی حالات په (بدء الوحی) کښې د دریم حدیث د لاندې تیر شوې دی. (٧)

---

١) اوګورئ: سنن ابی داؤد، کتاب الطهارة، باب الاستنثار رقم ١٤١، ومسند احمد ج ١ ص ٢٢، رقم ٢٠١١، والمستدرک للحاکم ج ١ ص ١٤٨، رقم ٥٢٦

٢) مسند ابی داؤد الطیالسی ج ٤ ص ٤٤٥، حدیث ابی غطفان عن ابن عباس، ٢٨٤٨

٣) قوله "ابا هريرة" الحديث اخرجه البخاری فی صحيحه ايضا ج ١ ص ٢٨، کتاب الوضوء، باب الاستجمار وترا، رقم ١٦٢، ومسلم فی صحيحه، فی کتاب الطهارة، باب الايتار فی الاستنثار والاستجمار، رقم ٥٧٢، ٥٧٥، والنسائی فی سننه، فی کتاب الطهارة، صفة الوضوء، باب ايتار الاستنشاق (وفی نسخة: اتخاذ الاستنشاق)، رقم ٨٦، وباب الامر بالاستنثار رقم ٨٨، وابن ماجة فی سننه، فی کتاب الطهارة وسننها، باب المبالغة فی الاستنشاق والاستنثار رقم ٤٠٩.

٤) کشف الباری ج ١ ص ٤٦١

٥) کشف الباری ج ١ ص ٤٦٢

٦) کشف الباری ج ١ ص ٤٦٣، و ج ٣ ص ٢٨٢

٧) کشف الباری ج ١ ص ٣٢٦

⑤ **ابو ادريس** : دا عائذ الله بن عبدالله ابو ادريس الخولاني رحمه الله دي، د هغه حالات په كتاب الايمان كښ د باب بلاترجمة، بعد باب علامة الايمان حب الانصار د لاندي تير شوي دى. (١)

⑥ **سيدنا ابوهريره رضي الله عنه** : د ابوهريره رضي الله عنه حالات په كتاب الايمان ﴿ باب امور الايمان ﴾ د لاندي تير شوي دى. (٢)

**قوله**: عَنْ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ قَالَ مَنْ تَوَضَّأَ فَلْيَسْتَنْثِرْ: رسول الله ﷺ اوفرمائيل: څوك چه اودس كوى هغه لره پكار دى چه استنثار اوكړى.

اوس مونږ ذكر كړي دى چه كوم حضرات د استنشاق د وجوب قائل دى د هغوى په مسلك باندي استنثار هم واجب كيدل پكار دى، لكه امام احمد، امام اسحاق بن راهويه، امام ابو عبيده، ابو ثور او ابن المنذر وغيره.

خو جمهور علماء كرام د وجوب قائل نه دى، هغوى د امر صيغي لره په استحباب باندي حمل كوى، د دې دليل هغه حديث دې چه په هغې كښ رسول الله ﷺ يو اعرابى ته اوفرمائيل: ﴿ فتوضاء كما امرك الله ﴾(٣)

په دې باندې دا اشكال كيدې شى چه رسول الله ﷺ د ﴿ ما امرك الله ﴾ حواله وركړې ده او په ﴿ ما امرالله ﴾ يعنى قران كريم كښ د مضمضه او استنشاق هيڅ ذكر نشته.

د دې جواب داسې وركړې كيدې شى چه رسول الله ﷺ د ﴿ ما امرك الله ﴾ حواله وركړې ده او د ﴿ ما امرالله ﴾ په عموم كښ امر قرانى او امر نبوى دواړه شامل كيدې شى، ځكه چه قران كريم د رسول الله ﷺ د اقتداء او اتباع حكم كړې دې، پس فرمائى: ﴿ وَمَا آتَاكُمُ الرَّسُولُ فَخُذُوهُ وَمَا نَهَاكُمْ عَنْهُ فَانْتَهُوا ﴾(٤). يعنى رسول الله ﷺ چه تاسو ته څه دركوى هغه واخلئ او د څۀ نه چه مو منع كړى د هغې نه منع شئ.

بلۀ دا چه رسول الله ﷺ د قران كريم شارح او مفسر دې، چا چه د رسول الله ﷺ د اودس تفصيلى تذكره كړې ده ټولو د مضمضه او استنشاق ذكر كړې دې، د دې تقاضه دا ده چه استنشاق دې هم واجب شى او د هغې سره مضمضه هم. (٥)

---

١) كشف البارى ج ١ ص ٤٨١٢

٢) كشف البارى ج ١ ص ٦٥٩

٣) اوګورئ: سنن ابى داؤد، كتاب الصلاة، باب صلاة من لا يقيم صلبه رقم ٨٦١، وجامع الترمذى، ابواب الصلاة، باب وصف الصلاة، رقم ٣٠٢، والسنن الكبرى للنسائى، كتاب الصلاة، باب الاقامة لمن يصلى وحده، رقم ١٦٤٣، وصحيح ابن خزيمه ج ١ ص ٢٧٤، كتاب الصلاة، باب اجازة الصلاة بالتسبيح والتكبير والتحميد والتهليل لمن لا يحسن القران رقم ٥٤٥

٤) الحشر : ٧

٥) فتح البارى ج ١ ص ٢٦٢

امام شافعی رحمه الله چه په عدم وجوب استنشاق باندې کوم استدلال کړې دې هغه ئې د دې خبرې نه کړې دې چه ځوك هم په ترك استنشاق باندې د اودس د اعادې قائل نه دی. (۱)

**قوله: وَمَنْ اسْتَجْمَرَ فَلْيُوتِرْ:** او كه ځوك كاڼړی استعمالوی نو پكار ده چه طاق عدد كښې استعمال كړی.

د دې نه بعض خلقو استدلال كړې دې چه استنجاء واجب نه ده، د دې وضاحت په وړاندې باب كښې راروان دې.

★★★★★★★★

## ۲۵ الاِسْتِجْمَارِ وِتْرًا

**د مخكښې باب سره مناسبت:** علامه عینی رحمه الله فرمائی چه مخكښې باب ﴿ باب الاستنثار فی الوضوء ﴾ د لاندې چه ئې كوم حدیث راوړې وو په هغې كښې د دوه ځیزونو ذكر دې، یو استنثار او بل استجمار وترا، په اول باب كښې ئې اول ځیز ذكر كړو او اوس ئې دا دویم باب قائم كړو، چه په هغې كښې دویم ځیز یعنی ﴿ استجمار وترا ﴾ ذكر كړې شوې دې. (۲) والله اعلم

**د ترجمة الباب د بې ترتیبه ذكر كولو اشكال او د هغې جواب:** تاسو ګورئ چه دا ابواب د اودس شروع دی، پس د استنثار فی الوضوء ذكر اوشو وړاندې د ﴿ غسل رجلین ﴾ او مضمضه ذكر راروان دې، امام بخاری رحمه الله په مینځ كښې استجمار، كوم چه د استنجاء او استطابة د قبیل نه دی، دا ځنګه داخل كړو؟

① حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه امام بخاری رحمه الله ابواب وضوء او ابواب استطابة جدا جدا نه دی ذكر كړی، بلكه په یو بل كښې ئې خلط ملط كولو سره ذكر كړې دی.

② هم دغه شان فرمائی چه دا هم ممكنه ده چه دا د امام بخاری رحمه الله د طرف نه نه وی بلكه د ناسخین د طرف نه وی، ځكه چه قاضی باجی د ابوذر هروی نه او هغه د ابو اسحاق ابراهیم بن احمد مستملی نه نقل كړې دی، هغه فرمائی چه ما صحیح بخاری د محمد بن یوسف فربری رحمه الله د نسخې نه نقل كړې دې، ما چه هغه اولیدو نو معلومه شوه راته چه په هغې كښې بعض ځیزونه ناپوره دی، بعض مقامات پكښې داسې وو چه هلته صرف بیاض وو، بعض ځایونو كښې تراجم خو شته خو د هغې د لاندې احادیث نشته، بعض ځایونه داسې دی چه هلته احادیث خو شته خو ترجمه نشته، پس مونږ هغه ټول د یو بل سره متصل كړل.

قاضی باجی رحمه الله فرمائی چه د دې قول دلیل دا دې چه سرخسی، مستملی، كشمهینی او ابو زید مروزی رحمهم الله د یو اصل نسخې نه نقل كړې دې، خو د هغوی په نسخو كښې د تقدیم او تاخیر اختلاف دې، د دې مقصد هم دا دې چه بعض احادیث امام بخاری رحمه الله په غاړه كښې

---

۱) پورته حواله
۲) عمدة القاری ج ۳ ص ۱۶

نقل كړې وو او بعض ئې په څه څيز باندې ليكلې وو، اوس د نقل كولو په وخت تقديم او تاخير اوشو. (۱)

③ دريم جواب دا دې چه د مخكښ باب په حديث كښ دوه حكمونه وو، ﴿ من توضأ فليستنثر ومن استجمر فليوتر ﴾ چونكه دواړه حكمونه يوځائې په يو حديث كښ موجود وو، لهذا چه كله په يو حكم باندې مصنف رحمه الله ترجمه قائم كړه نو د هغې سره ئې په بل باندې هم منعقد كړه، څكه چه دويم د اولنى قرين دې (۲) او په دواړو كښ اشتراك دې چه د دواړو تعلق د تنظيف سره دې.

④ څلورم جواب دا دې چه په اصل كښ دا مستقل ترجمه نه ده، بلكه ﴿ باب فى باب ﴾ دې، په دې باب كښ چه كوم روايت مصنف رحمه الله ذكر كړې دې د هغې تعلق د تير شوى باب سره دې، خو چونكه د هغې نه د استجمار وترا مسئله ثابتيدله، په دې وجه امام بخارى رحمه الله د تنبيه على الفائدة په طور دا ترجمه دلته منعقد كړه. (۳)

⑤ پنځمه توجيه د حضرت شيخ الحديث رحمه الله ده هغه فرمائى چه اصل كښ امام بخارى رحمه الله دا ترجمه دلته په دې وجه ذكر كړه چه د وتر عدد د استجمار سره راغلې دې، د استنثار سره نه دې راغلې، نو امام بخارى رحمه الله دا ترجمه راوړلو سره اشاره اوكړه چه هر كله طاق عدد په استجمار كښ مطلوب دې نو په استنثار كښ به هم مطلوب وى، څكه چه د دواړو مقصد تنظيف دې او چه كله په استنجاء كښ عدد وتر مستحب يا واجب دې نو هغه عدد په استنثار كښ بدرجه اولى مطلوب كيدل پكار دى. (۴)

⑥ يوه توجيه دا هم كيدې شى چه امام بخارى رحمه الله دا دواړه ترجمې يوځائې په دې وجه راوړلې چه دا دواړه څيزونه په پورته حديث كښ مقرونا راغلى دى او په دې كښ معنوى مناسبت دې، د دې معنوى مناسبت د وجې رسول الله ﷺ دواړه يو ځائې ذكر كړل.
او معنوى مناسبت په احاديثو كښ د نظر كولو نه معلوميږى!

امام بخارى رحمه الله د سيدنا ابوهريره رضى الله عنه نه مرفوع حديث نقل فرمائيلې دې! ﴿ اذا استيقظ احدكم من منامه فتوضاء فليستنثر ثلاثا، فان الشيطان يبيت على خيشومه ﴾(۵)

امام مسلم رحمه الله هم دا حديث روايت كړې دې او د هغه الفاظ داسې دى: ﴿ على خياشيمه ﴾(۶)

---

۱) اوګورئ: التعديل والتجريح للباجى ج ۱ ص ۲۸۷. وهدى السارى ص ۸. الفصل الثانى فى بيان موضوعه والكشف عن مغزاه فيه.
۲) عمدة القارى ج ۳ ص ۱۶
۳) اوګورئ: لامع الدرارى مع الكنز المتوارى ج ۳ ص ۵۰
۴) الكنز المتوارى تعليقات لامع الدرارى: ۳/۵۰ و ۵۱
۵) صحيح البخارى ج ۱ ص ۴۶۵، كتاب بدء الخلق، باب صفة ابليس وجنوده، رقم ۳۲۹۵
۶) صحيح مسلم، كتاب الطهارة، باب الايتار فى الاستجمار والاستنثار رقم ۵۷۶

امام ابوداؤد رحمه الله او امام ابن ماجه رحمه الله د سيدنا زيد بن ارقم رضي الله عنه نه مرفوعا نقل كړې دي!

﴿ ان هذه الحشوش محتضرة، فاذا اتى احدكم الخلاء فليقل : اعوذ بالله من الخبث والخبائث ﴾(١)

يعنى دې بيوت الخلاء ته شيطانان حاضريږي، لهذا په تاسو كښې چه څوك بيت الخلاء ته داخليږي نو دا دعا دې اوائي چه اې الله! زه د خبيث مذكر جناتو او د خب١يث مؤنث جناتو نه په تا پورې پناه نيسم.

هم دغه شان په ابوداؤد كښې يو حديث دې!

﴿ فان الشيطان يلعب بمقاعد بنى ادم ﴾(٢)

يعنى شيطان د انسان د مقعد سره لوبې كوي.

د دې رواياتو نه معلوميږي چه د شيطان د موضع استنثار سره هم تعلق دې او د موضع استجمار سره هم، لهذا چه كله رسول الله ﷺ د يو د تنظيف حكم اوكړو نو د بل د تنظيف حكم ئې هم اوكړو، هم په دې وجه امام بخاري رحمه الله دواړه رايوځائې كړل. والعلم عند الله سبحانه

١٦٠ : ﴿ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ يُوسُفَ قَالَ أَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ أَبِي الزِّنَادِ عَنْ الْأَعْرَجِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ (٣) أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِذَا تَوَضَّأَ أَحَدُكُمْ فَلْيَجْعَلْ فِي أَنْفِهِ ثُمَّ لِيَنْثُرْ وَمَنْ اسْتَجْمَرَ فَلْيُوتِرْ وَإِذَا اسْتَيْقَظَ أَحَدُكُمْ مِنْ نَوْمِهِ فَلْيَغْسِلْ يَدَهُ قَبْلَ أَنْ يُدْخِلَهَا فِي وَضُوئِهِ فَإِنَّ أَحَدَكُمْ لَا يَدْرِي أَيْنَ بَاتَتْ يَدُهُ ﴾ [ر : ١٥٩]

## رجال الحديث

① **عبدالله بن يوسف** : دا عبدالله بن يوسف تنيسى رحمه الله دې. د هغه حالات په كتاب بدء الوحى كښې د دويم حديث د لاندې مختصرا او په كتاب العلم كښې د باب ليبلغ العلم الشاهد الغائب د لاندې تفصيلا تير شوي دي. (٤)

② **مالک** : د مالك بن انس رحمه الله حالات د كتاب بدء الوحى په دويم حديث كښې او په كتاب الايمان، باب من الدين الفرار من الفتن د لاندې تير شوي دي. (٥)

---

١) سنن ابى داؤد، كتاب الطهارة، باب ما يقول الرجل اذا دخل الخلاء، رقم ٦، وسنن ابن ماجة، كتاب الطهارة، باب ما يقول الرجل اذا دخل بيت الخلاء، رقم ٢٩٦، وصحيح ابن خزيمة ج ١ ص ٣٨، كتاب الطهارة، باب الاستعاذة من الشيطان الرجيم عند دخول المتوضاء رقم ٦٩

٢) سنن ابى داؤد، كتاب الطهارة، باب الاستتار فى الخلاء رقم ٣٥، وسنن ابن ماجة، كتاب الطهارة، باب الارتياد للغائط والبول رقم ٣٣٧

٣) قد مر تخريجه فى الباب السابق.

٤) اوګورئ : كشف البارى ج ١ ص ٢٨٩، و ج ٤ ص ١١٣

٥) اوګورئ : كشف البارى ج ١ ص ٢٩٠، ج ٢ ص ٨٠

③ **ابو الزناد** : دا ابو الزناد عبدالله بن ذکوان رحمه الله دي، د هغه حالات په کتاب الایمان کښ د باب حب الرسول ﷺ من الایمان د لاندې تیر شوې دی. (۱)

④ **الاعرج** : دا عبدالرحمن بن هرمز الاعرج مدني رحمه الله دې. د هغه حالات هم په کتاب الایمان کښ د باب حب الرسول من الایمان د لاندې تیر شوې دی. (۲)

⑤ **سیدنا ابوهریره** رضی الله عنه : د ابوهریره رضی الله عنه تفصیلي حالات په کتاب الایمان ﴿باب امور الایمان﴾ د لاندې تیر شوې دی. (۳)

**قوله:** أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِذَا تَوَضَّأَ أَحَدُكُمْ فَلْيَجْعَلْ فِي أَنْفِهِ ثُمَّ لِيَنْثُرْ: رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه کله په تاسو کښ څوك اودس کوی نو په خپله پوزه کښ دې اوبه واچوی، بیا دې هغه سونړ کړی.

یعنی اول دې استنشاق اوکړی چه د ساه په ذریعه پوزه کښ اوبه واچوی او بیا دې استنثار اوکړی. یعنی هغه دې سونړ کړی.

**قوله:** وَمَنِ اسْتَجْمَرَ فَلْيُوتِرْ: او څوك چه استنجاء کوی هغه دې ایتار اوکړی.

د استجمار یوه معنی ده د استنجاء دپاره وړه کاڼړی استعمالول. (٤)

**په استنجاء کښې د ائمه کرامو اختلاف** : د استنجاء په مسئله کښ اختلاف دې!

امام ابوحنیفه رحمه الله فرمائی چه استنجاء اصلا سنت ده، خو که نجاست یو درهم وی نو واجب ده او که د یو درهم نه زیات وی نو فرض ده. (۵)

د امام مالك رحمه الله نه هم یو روایت د سنیت دې. (۶)

او امام مالك، امام شافعي او امام احمد بن حنبل رحمهم الله استنجاء ته واجب وائی. (۷)

هر چه د عدد احجار تعلق دې، نو دا مسئله مونږ شاته په باب لایستنجی بروث د لاندې بیان کړې ده، امام ابوحنیفه رحمه الله د استنجاء په عدم وجوب باندې د ابوداؤد د دې حدیث نه استدلال کوی چه په هغې کښ دی!

﴿ومن استجمر فلیوتر، من فعل فقد احسن، ومن لا فلا حرج﴾(۸)

---

۱) کشف الباری ج ۲ ص ۱۰
۲) کشف الباری ج ۲ ص ۱۱
۳) کشف الباری ج ۱ ص ۶۵۹
٤) الاستجمار التمسح بالجمار، وهی الاحجار الصغار، النهایة ج ۱ ص ۲۸۵
۵) اوګورئ: رد المحتار ج ۱ ص ۲٤۶
۶) اوګورئ: المجموع شرح المهذب ج ۲ ص ۹۵
۹) المغنی ج ۱ ص ۱۰۰، باب الاستطابة والحدث، والمجموع ج ۲ ص ۹۵
۸) سنن ابی داؤد، کتاب الطهارة، باب الاستتار فی الخلاء رقم: ۳۵

يعنى څوك چه استنجاء كوى نو ايتار دې اوكړى، كه چا استنجاء اوكړه نو ښه ئې اوكړل او كه چا اونكړه نو هيڅ باك نشته.
اونور ائمه كرام هم دابوداؤد دسيده عائشه رضي الله عنها د حديث نه استدلال كوى[1]
﴿ اذا ذهب احدكم الى الغائط فليذهب معه بثلاثة احجار، يستطيب بهن، فانها يجزئ عنهٗ ﴾
يعنى چه كله په تاسو كښ څوك دقضاء حاجت دپاره ځى نو دځان سره دې درې كانړى يوسى او په هغې سره دې پاكى حاصله كړى، ځكه چه دا د پاكوالى د حاصلولو دپاره كافى دى.
خو احناف دا امر په سنيت او ندب باندې محمول كوى، ځكه چه د حديث شريف په اخره كښ دى ﴿ فانها تجزئ عنه ﴾ دلالت كوى چه دا حكم معلول بالعلة دې چه كه ناپاكى وى نو دا درې كانړى د ازالې دپاره كافى دى او كه نجاست د مخرج نه متجاوز نه وى نو ظاهره ده د وجوب محل نه دې. والله اعلم

**د استجمار دويمه معنى** : د استجمار يوه معنى اوس مونږ بيان كړې ده يعنى ﴿ التمسح بالجمار اى الاحجار الصغار ﴾ هم دا مشهوره معنى ده، اهل لغت او محدثين هم دا معنى بيانوى. (۱)
د استجمار دويمه معنى استعمال البخور هم ده، يعنى كه څه لوړې كول وى نو په كوم ځيز سره چه لوړې وركولې شى د هغې درې ټكړې كولو سره استعمال كړې شى، يا درې كرته لوړې وركړې شى. (۲)
امام ابن خزيمه رحمه الله د امام مالك رحمه الله نه اوله معنى نقل كړې ده، يعنى په حديث كښ د استجمارنه مراد استنجاء او استطابة بالاحجارمراد دې.(۳)
قاضى عياض رحمه الله د امام مالك رحمه الله نه دويم قول هم نقل كړې دې، يعنى ﴿ استجمار بمعنى استعمال البخور ﴾(٤)
حافظ سيوطى رحمه الله د قاضى عياض رحمه الله نه نقل كړى دى چه امام مالك رحمه الله د دويمې معنې قائل وو بيا ترې هغه رجوع اوكړه. (۵)
حافظ ولى الدين ابوزرعه عراقى رحمه الله فرمائى چه دلته داستجمار دواړه معنى استعماليدلې شى يعنى استنجاء او تبخر. (۶) پس د سيدنا ابن عمر رضي الله عنهما نه ابن عبد البر رحمه الله نقل كړى دى

---

۱) اوګورئ : طرح التثريب ج ۱ ص ۲۰۷، باب الوضوء، الحديث الثانى
۲) انظر اكمال المعلم بفوائد مسلم للقاضى عياض ج ۲ ص ۳۰، كتاب الطهارة، باب الايتار فى الاستنثار والاستجمار، وقال الزبيدى فى تاج العروس ج ۱۰ ص ٤٦۹، استجمر بالمجمر : اذا تبخر بالعود.
۳) صحيح ابن خزيمة ج ۱ ص ٤۱، كتاب الوضوء، باب الامر بالاستطابة بالاحجار وترا لا شفعا، رقم ۷۵
٤) اوګورئ : اكمال المعلم بفوائد مسلم للقاضى عياض ج ۲ ص ۳۰، كتاب الطهارة، باب الايتار فى الاستنثار والاستجمار
۵) اوګورئ : مرقاة الصعود ج ۱ ص ۱۱۶، كتاب الطهارة، باب الاستتار فى الخلاء
۶) پورته حواله

چه هغه به وترا استنجاء هم کوله او خپلو کپړو ته به ئې وترا د عود لوړې هم کولو. (۱)

**ایا د دې حدیث نه په عدم وجوب استنجاء باندې استدلال کیدې شي؟** : په دې حدیث کښې ﴿من استجمر فلیوتر﴾ نه بعض حضرات دا استدلال کوی چه استنجاء واجب نه ده، ځکه چه ﴿من استجمر فلیوتر﴾ قضیه شرطیه ده ... ﴿والشرطیة لا تقتضي الوجوب﴾ (۲)

خو د دې جواب دا دې چه رسول الله ﷺ دا شرط د تخییر بین الماء والاحجار اعتبار سره استعمال کړې دې، یعنې استنجاء کونکی ته اختیار دې که استنجاء په اوبو سره کوی یا په کاڼړی سره، که استنجاء په کاڼړو او لوټو سره کوی نو طاق عدد دې اختیار کړی، په دې کښې د نفس استنجاء د کولو او نه کولو اختیار ورکول مقصود نه دی.

په ابوداؤد کښې : ﴿ومن استجمر فلیوتر، من فعل فقد احسن، ومن لا فلا حرج﴾ (۳) راغلي دي، بعض احنافو وئیلي دی چه د دې نه معلومه شوه چه استنجاء واجب نه ده، ځکه چه رسول الله ﷺ اختیار ورکړې دې چه که کونکې ئې اوکړی نو ډیره ښه ده او که وو ئې نه کړی نو هیڅ باك نشته. (٤)

خو دا استدلال په دې وجه صحیح نه معلومیږی چه د ﴿من فعل فقد احسن، ومن لا فلا حرج﴾ تعلق د استجمار سره نه دې بلکه د ایتار سره دې او مطلب دا دې چه که څوك د طاق عدد لحاظ ساتی نو ښه به اوکړی او که د ایتار لحاظ ئې او نه ساتلو نو واجب نه دې. (۵)

---

۱) قال ابن عبدالبر رحمه الله : وقد كان ابن عمر يستحب الوتر في تجمير ثيابه وكان يستعمل العموم في قوله صلى الله عليه وسلم: "ومن استجمر فليوتر" فكان يستجمر بالأحجار وترا وكان يجمر ثيابه وترا تأسيا بالنبي صلى الله عليه وسلم ومستعملا عموم الخطاب والله الموفق للصواب. التمهيد ج ۱۸ ص ۲۲۶

۲) قال المناوي في فيض القدير شرح جامع الصغير ج ۵ ص ۳۲۱ : ان القضية الشرطية لا يلزم منها الوقوع. وقال القسطلاني في ارشاد الساري ج ۲ ص ۱۵۶، كتاب الجمعة، باب فضل الغسل يوم الجمعة، وهل على الصبي شهود يوم الجمعة او على النساء : فان القضية الشرطية لا تدل على وقوع المجئ. وقال ايضا (في كتاب الادب، باب من سمى باسماء الانبياء ﷺ ج ۹ ص ۱۱۳، ان القضية الشرطية لا تستلزم الوقوع.

۳) سنن ابي داؤد، كتاب الطهارة، باب الاستتار في الخلاء رقم ۳۵

٤) قال الكاساني في البدائع : ثم ابتداء الدليل على أن الاستنجاء ليس بفرض ما روى عن النبي صلى الله عليه وسلم أنه قال { من استجمر فليوتر ، من فعل فقد أحسن ، ومن لا فلا حرج } ، والاستدلال به من وجهين : أحدهما أنه نفى الحرج في تركه ، ولو كان فرضا لكان في تركه حرج ، والثاني : أنه قال : " من فعل فقد أحسن ، ومن لا فلا حرج " ومثل هذا لا يقال في المفروض ، وإنما يقال في المندوب إليه ، والمستحب ..... انظر بدائع الصنائع ج ۱ ص ۱۸ سنن الوضوء الكلام على الاستنجاء

۵) استدل بعض الحنفية بقوله { من استجمر فليوتر } أنه لا يجب الاستنجاء ؛ لأن ظاهره التخيير بين الاستنجاء وتركه. والجواب أن هذا اللفظ لا يدل على التخيير فقد قال في رواية أبي إدريس المتفق عليها {من توضأ فليستنثر ومن استجمر فليوتر} وليس هومخيرا في الوضوء فكذلك في الاستجمارعلى أنا لانقول يتعين الاستجمار بل هو مخير بينه وبين الاستنجاء بالماء ، فإن اختار الاستجمار بالأحجار فهو حينئذ مأمور بالإيتار وليس فيه عدم وجوب الأمرين. طرح التثريب ج ۱ ص ۲۱۱، الحديث الثاني، الفائدة الثانية عشرة.

صاحب هدايه فرمائي چه د ايتار سره د متعلق كيدو په صورت كښ هم مدعى ثابتيدلې شي، په داسې طريقه چه عدد طاق يعنى ايتار كښ واحد هم داخل دې نو اوس مطلب دا شو چه انسان ته په استنجاء كولو كښ اختيار دې چه عدد طاق، اګر كه يو ولې نه وى، كه هغه استعمالوى نو غوره ده او كه نه استعمالوى نو هيڅ باك نشته. (١)

خو د صاحب هدايه دا تقرير په ظاهر كښ صحيح نه دې ځكه چه رسول الله ﷺ خو د ايتار د اختيارولو او نه اختيارولو اختيار هغه سړى ته وركړې دې چه استنجاء كوى او دا هم هغه وخت كيدې شي چه د وتر نه مافوق الواحد مراد واخستلې شي.

علامه ابن الهمام رحمه الله فرمائي چه د ﴿ من فعل فقد احسن، ومن لا فلا حرج ﴾ تعلق د ايتار او استجمار دواړو سره دې او مطلب دا دې چه د ايتار او استنجاء دواړو په فعل او ترك كښې ورله اختيار دې. (٢)

خو د ابن همام رحمه الله دا تقرير خلاف تبادر دې. د انصاف خبره دا ده چه دا حديث د احنافو په مدعى باندې دلالت نه كوى.

اصل كښ دلته فقهاء احنافو يو بل اصل ته كتلې دى او هغه دا دې چه عرب د ګرم ملك اوسيدونكى دى، هلته د اوبو قلت هم دې، عام طور به كانړى په استنجاء كښ استعماليدل او ظاهره ده چه په كانړو باندې پوره، مكمل او قطعى صفائى نه راځى، د دې نه معلومه شوه چه محل نجاست معفو عنه دې او چه كله معفو عنه دې نو استنجاء به واجب نه وى.

خو په دې باندې اشكال دا دې چه معفو عنه ما بقى دې او د ما بقى د معفو عنه كيدو نه دا څنګه معلومه شوه چه ټول معفو عنه دې، كيدې شى چه د استنجاء نه مخكښ كوم نجاست وى هغه واجب الازاله وى، او د استنجاء نه پس چه كوم باقى پاتې شى هغه غير واجب الازاله دي

رسول الله ﷺ ټول عمر استنجاء كړې ده، چرته يو صحابى هم د رسول الله ﷺ نه د دې خلاف نه دى نقل كړى. (٣) او رسول الله ﷺ په استنجاء باندې حكم فرمائيلې دې، د دې

---

١) قال المرغيناني : ولنا قوله عليه الصلاة والسلام من استجمر فليوتر، فمن فعل فحسن، ومن لا فلا حرج، والايتار يقع على الواحد. الهداية مع فتح القدير ج ١ ص ١٤٨، ١٤٩، كتاب الطهارة فصل في الاستنجاء

٢) قال ابن الهمام: وفيه نظر فإن المنفي على هذا التقدير إنما هو الإيتار ممن استنجى ، وذلك لا يتحقق إلا بنفي إيتار هو فوق الواحدة ، فإن بنفي الواحدة ينتفي الاستنجاء فلا يصدق نفي الإيتار مع وجود الاستنجاء فلا يتم الدليل إلا بصرف النفي إلى كل ما ذكر فيدخل فيه أصل الاستنجاء إن أحب ، ومجرد الإيتار فيه ، والمعنى : من فعل ما قلته كله فقد أحسن ومن لا فلا حرج... فتح القدير ج ١ ص ١٨٨، فصل في الاستنجاء،

٣) قال ابن الهمام : وما عن أنس رضى الله عنه { كان رسول الله صلى الله عليه وسلم يدخل الخلاء فأحمل أنا وغلام نحوى إداوة من ماء وعنزة فيستنجي بالماء } متفق عليه ظاهر في المواظبة بالماء . ومقتضاه كراهة تركه . وكذا ما روى ابن ماجه عن عائشة قالت { ما رأيت رسول الله صلى الله عليه وسلم خرج من غائط قط إلا مس ماء. فتح القدير ج ١ ص ١٨٧، فصل في الاستنجاء

جلد نمبر ٦

طريقه ئې بيان كړې ده.(۱) دا ټول د دې خبرې و ضح قرائن دی چه استنجاء واجب ده. والله اعلم

﴿وَإِذَا اسْتَيْقَظَ أَحَدُكُمْ مِنْ نَوْمِهِ فَلْيَغْسِلْ يَدَهُ قَبْلَ أَنْ يُدْخِلَهَا فِي وَضُوئِهِ، فَإِنَّ أَحَدَكُمْ لَا يَدْرِي أَيْنَ بَاتَتْ يَدُهُ﴾

او كله چه په تاسو كښې څوك د خپل خوب نه رابيدار شي نو هغه له پكار دی چه د خپل اودس په اوبو كښې د لاس داخلولو نه مخكښې هغه وينځي، ځكه چه په تاسو كښې څوك هم نه پوهيږی چه د هغه لاس چرته شپه تيره كړې ده.

په دې روايت كښې فرمائي : ﴿ اذا استيقظ احدكم ... ﴾ چه كله په تاسو كښې څوك راپاسي، ځكه چه دا د عام خلقو حكم دې. حضرات انبياء كرام ﷺ د دې حكم نه مستثنى دی ځكه چه د هغوی په باره كښې معلومه ده چه د هغوی سترګې اوده كيږی خو زړونه ئې ويخ وی.(۲)

هم دغه شان استيقاظ له د ﴿ من النوم ﴾ سره مقيد كړې شوې دې، ځكه چه د دې لفظ استعمال كله كله د خوب نه په علاوه باندې هم كيږی، لكه چه يوسړې د بې هوشئ نه پس رابيدار شي نو وئيلې شی : ﴿ استيقظ من الاغماء او الغشى ﴾ هم دغه شان چه په چا باندې غفلت راشي او هغه په څه خيال كښې غرق وی نو د دې كيفيت د زوال نه پس وئيلې شی ﴿ استيقظ من الغفلة ﴾ (۳) نو چونكه دا لفظ كله د بې هوشئ يا غفلت د لرې كولو دپاره هم استعماليږی، په دې وجه دلته د ﴿ من نومه ﴾ قيد اولګولې شو، چه دا معلومه شی چه د غفلت يا بې هوشئ زوال نه دې مراد. والله اعلم

**قوله:** فَلْيَغْسِلْ يَدَهُ قَبْلَ أَنْ يُدْخِلَهَا فِي وَضُوئِهِ: خپل لاس دې د اودس په اوبو كښې د داخلولو نه مخكښې وينځي. په دې روايت كښې د اودس په لوښی كښې د لاس وينځلو نه مخكښې د هغې د وينځلو حكم كړې شوې دې.

**د اودس په اوبو كښې لاس د وينځلو نه مخكښې د داخلولو حكم** : حسن بصری، اسحاق بن راهويه. ابن جرير طبری او امام احمد بن حنبل رحمه الله فرمائي چه د بيداريدو نه پس په لوښی كښې د لاس داخلولو نه مخكښې لاس وينځل واجب دی.

---

۱) فإذا ذهب أحدكم إلى الغائط فلا يستقبل القبلة ولا يستدبرها لغائط ولا بول ، وليستنج بثلاثة أحجار ». ونهى عن الروث والرمة.وان يستنجي الرجل بيمينه. السنن الكبرى للبيهقي ج ۱ ص ۱۰۲، كتاب الطهارة، باب وجوب الاستنجاء بثلاثة احجار، رقم ۵۰۹

۲) عن انس بن مالک .... جاءه ثلاثة نفر قبل أن يوحى إليه وهو نائم في المسجد الحرام .... والنبي صلى الله عليه وسلم نائمة عيناه ولا ينام قلبه وكذلك الأنبياء تنام أعينهم ولا تنام قلوبهم. صحيح البخاري، كتاب المناقب، باب كان النبي ﷺ تنام عينه، ولا ينام قلبه، رقم ۳۵۷۰

۳) يقظ من نومه ونحوه، ييقظ يقظا ويقاظة : صحا وانتبه. وتنبه للامور وفطن ... يقال استيقظ من نومه وغيره، المعجم الوسيط مادة : يقظ

جمهور علماء كرام فرمائى سنت دى، واجب نه دى، هم دا د امام احمد رحمه الله يو روايت دې.(۱)

د وجوب قائلين په حديث شريف كښې د امر صيغې «فليغسل» ته ګورى او كوم حضرات چه د سنيت او استحباب قائل دى، هغوى فرمائى چه رسول الله ﷺ د وينځلو حكم په يو علت موهومه باندې معلق كړې دې، هغه دا چه : په تاسو كښې چاته هم نه ده معلومه چه د هغه لاس چرته شپه تيره كړې ده. او د علت موهومه د وجې نه وجوب نه ثابتيږى.

پس امام شافعى رحمه الله فرمائى چه د عربو خلق د ګرم ملك اوسيدونكى وو، په كانړو سره به ئې استنجاء كوله، په شپه كښې د خوب په وخت كښې كيدې شوه چه د هغوى لاسونه يو خوا بل خوا لاړ شى، په دې وجه هغوى ته د لاس وينځلو حكم اوكړې شو. (۲)

قاضى ابو الوليد باجى رحمه الله فرمائى چه زمونږ د مشائخو رائې دا ده چه د لاس وينځلو حكم تنظيفى دې، انسان چه اوده شى نو كله ئې د لاس د لاندې كتمل راشى، كله يوه دانه ماته شى. كله په خوب كښې بدن ګروى نو په نوكونو كښې خيرې جمع شى، په دې وجه د نظافت په غرض سره د لاس وينځلو حكم وركړې شو. (۳) والله اعلم

**بغير د وينځلو نه د لاس داخلولو په صورت كښې د اوبو حكم** : كوم حضرات چه په اوبو كښې د لاس داخلولو نه مخكښې د هغې وينځل واجب وائى په هغوى كښې حسن بصرى، اسحاق بن راهويه او ابن جرير رحمهم الله فرمائى چه كه بغير د وينځلو نه ئې لاس اوبه ته داخل كړو نو اوبه به ناپاكې شى.

خو جمهور علماء كرام فرمائى چه كه په لاس باندې نجاست كيدل يقينى وى او اوبه لږې وى نو بيا به اوبه ناپاكې وى، ګينې اوبه صرف د شك په وجه باندې او د نجاست د وهم د وجې نه نه ناپاك كيږى. (٤) والله اعلم

**ايا د شپې او د ورځې په خوب كښې به فرق كولې شى؟** : د جمهور علماء كرامو په نزد بغير د لاس وينځلو نه په اوبو كښې د داخلولو دا ذكر شوې حكم عام دې كه د ورځې وى يا د شپې.

او د امام احمد رحمه الله يو روايت خو د جمهورو مطابق دې او په بل روايت كښې ئې په دواړو كښې تفريق كړې دې چه كه د ورځې د اوده كيدو نه پس راپاسى او په اوبو كښې لاس داخل

---

۱) د مذاهب تفصيل دپاره اوګورئ : المغنى لابن قدامة ج ۱ ص ۷۰، ۷۱، باب السواك وسنة الوضوء، والمجموع شرح المهذب ج ۱ ص ۳۵۰

۲) اوګورئ : المجموع شرح المهذب ج ۱ ص ۳٤۸

۳) قال الباجي : وروى عيسى بن دينار عن ابن القاسم أحب إلي أن يفرغ على يديه فيغسلهما كما جاء في الحديث... ووجه ما ذهب إليه ابن القاسم أن غسل اليد قبل إدخالها في الإناء إنما هو على معنى التنظيف بما عسى أن يكون علق بها من أوساخ البدن والعرق وغسل اليدين بعضهما ببعض أنظف لهما وأبلغ في إزالة ما يقدر تعلقه بهما.المنتقى شرح الموطا:ج ۱ ص ۲۷۰

٤) اوګورئ : المغنى لابن قدامة ج ۱ ص ۷۱، والمجموع شرح المهذب ج ۱ ص ۳٤۸، ۳٤۹، وطرح التثريب ج ۱ ص ۱۹۶، ۱۹۷

كړی نو کراهت تنزیهی دي او که د شپې . اوده کیدو نه پس پکښې لاس داخل کړی نو کراهت تحریمی دې، هم دا د داؤد ظاهري رحمه الله قول دې. (١)

ددې حضراتو دلیل په بعض روایاتو کښې د ﴿من اللیل﴾ د قید راتلل دی.(٢)

هم دغه شان دا حضرات په دې حدیث کښې د موجود لفظ ﴿باتت﴾ نه هم استدلال کوی چه د ﴿مبیت﴾ معنی د شپې تیرولو ده.

جمهور وائی چه په ډیرو روایاتو کښې د ﴿من اللیل﴾ قید موجود نه دې. (٣) خو که ﴿من اللیل﴾ قید وی یا د ﴿مبیت﴾ قید وی نو دا د غالب اعتبار کولو سره تقیید دې چه عموما اوږد او ښخ خوب، دغه شان غفلت د شپې په خوب کښې وی. (٤) والله اعلم

**قوله:** فَإِنَّ أَحَدَكُمْ لَا يَدْرِي أَيْنَ بَاتَتْ يَدُهُ: ځکه چه په تاسو کښې څوك هم نه پوهیږی چه د هغه لاس چرته شپه تیره کړې ده.

دا جمله تعلیلیه ده او په دې کښې اشاره ده چه د دې حکم منشا احتمال دنجاست دې، ځکه چه شارع کله حکم بیان کړی او روستو ترې علت ذکر کړی نو د دې مطلب دا وی چه دا حکم د هغه علت سره مقید او معلول دې. (٥)

**قوله:** أَيْنَ بَاتَتْ يَدُهُ: ای من جسده ! یعنی دا معلومه نه ده چه د هغه لاس د هغه د بدن کومې کومې حصې سره لګیدلې دې.

شاته مونږ د امام شافعي رحمه الله په حوالې سره نقل کړی دی چه د دې حکم سبب دا پیښ شوې وو چه عرب ګرم ملك دې، په لوټو او کاڼړو سره به د هغه خائې خلقو استنجاء کوله، ظاهره ده چه په هغې سره پوره طریقې سره د نجاستونو ازاله نه کیږی، لهذا د شپې په خوب کښې چه کله خوله راشي او لاس په هغې کښې اولګی نو نجاست به خور شی، په دې وجه د بیداریدو نه پس په لوښی کښې د لاس داخلولو نه مخکښې د وینځلو حکم ورکړې شو.

په دې باندې قاضی ابوالولید باجی رحمه الله اعتراض کړې دې چه د دې نه خو به دا هم لازمه شی چه د جامې کوم خائې د محل استنجاء سره اولګی د هغې وینځل هم ضروری دی.

ــ هغه فرمائی چه په اصل کښې د لاس د وینځلو دا حکم په دې وجه نه دې چه په لاس کښې یقینی نجاست لګیدلې دې، بلکه دا حکم په تنظیف باندې محمول دې چه په خوب کښې

---

١) اوګورئ : المجموع شرح المهذب ج ١ ص ٣٤٩

٢) اوګورئ : جامع الترمذي، ابواب الطهارة، باب اذا استیقظ احدکم من منامه فلا یغمسن یده فی الاناء حتی یغسلها رقم ٢٤، ومسند احمد ج ٢ ص ٢٥٣، رقم ٧٤٣٢

٣) پس داصول سته، سنن دارمي، صحیح ابن خزیمه، صحیح ابن حبان او مسنداحمدپه ډیرو روایتونو کښې په یو کښې هم د﴿من اللیل﴾ قید موجود نه دې.

٤) اوګورئ : المجموع شرح المهذب ج ١ ص ٣٤٩

٥) قاله البیضاوی، انظر فتح الباری ج ١ ص ٢٦٤

لاس د پتونانو ترمينځه چرته چه خولې او خيرې جمع کيږي، يا څه دانه پولۍ وي او هغه اوچوی نو په داسې موقع باندې احتياطا لاسونه وينځلې شي او صفا کړې شي. (۱)

خو حافظ ابن حجر رحمه الله وغيره د محل استنجاء سره د لګيدونکې کپړې اعتراض رد کړې دې او فرمائي چه ممکنه ده چه اصل خوله په لاسونه کښې وي، نه په پتونانو کښې، په داسې صورت کښې به متاثر اصل کښې لاس وي نه کپړې.

دويم جواب ئې دا ورکړې دې چه دلته په اوبو کښې د کپړې اچول مسئله نه ده چه د کپړې د وينځلو حکم ورکړې شی خو د لاس د وينځلو حکم کړې شوې دې، ځکه چه که په هغه باندې د محل استنجاء اثر راغلو او بيا لاس اوبه ته لاړو نو دا عفو نه دې، ځکه چه ماء قليل ناپاک کيږي.(۲)

علامه خليل احمد سهارنپوری رحمه الله د شاه عبدالغنی مجددی رحمه الله نه د سنن نسائی اولنې حديث لوستلو سره اجازت طلب کړو، په دې موقع باندې سهارنپوری رحمه الله د شاه عبدالغنی صاحب نه د حديث مستيقيظ په باره کښې تپوس اوکړو چه په دې کښې صرف د احتمال په وجه باندې د لاس د وينځلو حکم کړې شوې دې چه لاس چرته يو خوا بل خوا نه وی رسيدلې نو د پاجامې ميانه ښختګ خو په بدرجه اولی پاکول پکار دی؟

شاه عبدالغنی رحمه الله اوفرمائيل چه د لاس ضرر متعدی دې چه که لاس ناپاك شو او هغه اوبو ته لاړ شی نو هغه اوبه به ناپاکې شی او څومره خلق چه په هغې سره اودس کوی د هغوی اودس به نه کيږی او نه به د هغوی مونځ کيږی، دغه شان چه د هغه اوبو څاڅکی کوم ځائې ته ځی هغه ټولو ځايونه به ناپاك شی، په خلاف د ښختګ چه د هغې ناپاك کيدل که متحقق شی نو دا خبره به د هم هغه حده پورې وی او د هغه په ذمه به د يو مونځ نيم قضاء لازم وی او بس؛ په دې وجه د لاس د وينځلو حکم دې، د ښختګ د وينځلو نه! (۳) والله اعلم

........

**هذا اخر ما اردنا ايراده من شرح كتاب الوضوء من الجامع الصحيح للامام البخاری رحمه الله تعالی وبه تم المجلد الخامس من كتاب كشف البارى عما فی صحيح البخاری ويليه باذن الله تعالی المجلد السادس، وأوله باب غسل الرجلين ولا يمسح على القدمين.**

**والحمد لله بنعمته تتم الصالحات، والصلاة والسلام الاتمان الاكملان على افضل الكائنات، وعلى اله واصحابه ومن تبعهم باحسان، ما دامت الارضون والسماوات.**

...

(۱) اوګورئ: فتح البارى ج ۱ ص ۲۶٤، وطرح التثريب ج ۱ ص ۱۹۸

(۲) پورته حواله جات

(۳) اوګورئ: الكنز المتوارى على لامع الدرارى ج ۳ ص ۵۲

نوټ: د كتاب په مضمون كښې څه فرق نشته البته د صفحو په شمار كښې غلطى وه ځكه مو دا صفحه په مينځ كښې داخله كړه.

# مصادر ومراجع

١ــ القرآن الكريم.
٢ــ إتحاف السادة المتقين بشرح إحياء علوم الدين، للعلامة السيد محمد بن محمد الحسيني، بيروت، الطبعة الثالثة:١٤٢٢ھ/ ٢٠٠٢م.
٣ــ الأحاديث المختارة أو المستخرج من الأحاديث المختار مما لم يخرجه البخارى ومسلم في صحيحيهما، للإمام العلامة ضياء الدين أبي عبدالله محمد بن عبدالواحد بن أحمد الحنبلي المقدسي، رحمه الله تعالى، المتوفى ٦٤٣ھ، تحقيق: الدكتور عبدالملک بن عبدالله بن دهيش، الطبعة الرابعة ١٤٢١ھ/ ٢٠٠١م، دار خضربيروت.
٤ــ الإحسان بترتيب صحيح ابن حبان، للأميرعلى بن بلبان الفارسى، رحمه الله تعالى، المتوفى ٧٣٩ھ، تحقيق: الشيخ شعيب الأرنؤوط، مؤسسة الرسالة، بيروت الطبعة الأولى: ١٩٨٨م.
٥ــ أحكام القرآن، للإمام أبي بكرأحمد بن علي الرازي الجصاص رحمه الله تعالى، المتوفى ٣٧٠ھ، تحقيق: عبد السلام ومحمد شاهين، دار الكتب العلمية، بيروت الطبعة الثانية: ١٤٢٤ھ/ ٢٠٠٣م.
٦ــ الإحكام في أصول الأحكام، للإمام أبي الحسن علي بن أبي علي محمد بن سالم التغلبي الآمدي رحمه الله تعالى، المتوفى ٦٣١ھ، دار الصميعي الرياض، ١٤٢٤ھ/ ٢٠٠٣م.
٧ــ إحكام الأحكام شرح عمدة الأحكام للإمام تقي الدين أبي الفتح محمد بن علي بن وهب بن مطيع المعروف بابن دقيق العيد، رحمه الله تعالى، المتوفى ٧٠٢ھ أملاه على الوزيرعماد الدين بن الأثير الحلبي، رحمه الله تعالى، المتوفى ٦٩٩ھ، تحقيق: محمد حامد الفقي ومراجعة: أحمد محمد شاكر، ١٣٧٢ھ/ ١٩٥٣م، مطبعة أنصار السنة المحمدية القاهرة.
٨ــ أحكام القرآن، للإمام أبي بكر محمد بن عبدالله المعروف بابن العربي رحمه الله تعالى، المتوفى ٥٤٣ھ، دار الكتب العلمية، بيروت.
٩ــ إحياء علوم الدين، للإمام أبي حامد محمد بن محمد الغزالي رحمه الله تعالى، المتوفى ٥٠٥ھ، تحقيق: أحمد عزوعناية، وأحمد زهوة، دار الكتاب العربي، بيروت.

١٠ــ أخبار مكة في قديم الدهر وحديثه، للإمام أبي عبد الله محمد بن إسحاق بن العباس الفاكهي المكي رحمه الله تعالى، من علماء القرن الثالث الهجري، تحقيق: عبد الملك بن عبد الله بن دهيش، الطبعة الثانية ١٤١٤ه/ ١٩٩٤م.

١١ــ أخبار مكة وما جاء فيها من الآثار، للإمام أبي الوليد محمد بن عبد الله بن أحمد الأزرقي، رحمه الله تعالى، المتوفى ٢٥٠ه، تحقيق: رشدي الصالح ملحس، الطبعة الثالثة ١٤٠٣ه/ ١٩٨٣م.

١٢ــ الأدب المفرد، للإمام أبي عبدالله محمد بن إسماعيل بن إبراهيم الجعفي البخاري، رحمه الله تعالى، المتوفى٢٥٦ه، تحقيق: محمد فؤاد عبد الباقي، الطبعة الثالثة، ١٤٠٩ه/ ١٩٨٩م، دار البشائر الإسلامية بيروت.

١٣ــ إرشاد الساري شرح صحيح البخاري، للإمام شهاب الدين أبي العباس أحمدبن محمد الشافعي القسطلاني رحمه الله تعالى، المتوفى ٩٢٣ه، المطبعة الكبرى الأميرية، ببولاق مصر، الطبعة السادسة: ١٣٠٤ه.

١٤ــ الإرشاد في معرفة علماء الحديث، للحافظ أبي يعلى الخليل بن عبدالله بن أحمد بن الخليل الخليلي القزويني، رحمه الله تعالى، المتوفى٤٤٦ه، تحقيق: الدكتور محمد سعيدبن عمر إدريس، مكتبة الرشدالرياض.

١٥ــ الاستذكار الجامع لمذاهب فقهاء الأمصار وعلماء الأقطار، فيما تضمنه الموطأ من معاني الرأي والآثار، وشرح ذلك كله بالإيجاز والاختصار، للإمام الحافظ أبي عمر يوسف بن عبدالله بن محمد بن عبدالبربن عاصم النمري القرطبي المالكي رحمه الله تعالى، المتوفى ٤٦٣ه، تحقيق: سالم محمد عطا ومحمد علي معوض، الطبعة الثانية١٤٢٣ه/ ٢٠٠٢م، دار الكتب العلمية بيروت.

١٦ــ الاستيعاب في أسماء الأصحاب (هامش الإصابة)، للإمام الحافظ أبي عمر يوسف بن عبدالله بن محمد بن عبدالبر المالكي رحمه الله تعالى، المتوفى ٤٦٣ه، دار الفكر، بيروت، الطبعة الأولى ١٣٩٨ه/ ١٩٧٨م.

١٧ــ أسد الغابة في معرفة الصاحبة، للإمام عزالدين أبي الحسن علي بن محمد الجزري المعروف بابن الأثير، رحمه الله تعالى، المتوفى٦٣٠ه، دار الكتب العلمية بيروت.

١٨ــ إسعاف المبطأ برجال الموطأ للإمام عبدالرحمن بن أبي بكرجلال الدين السيوطي رحمه الله تعالى، المتوفى ٥٩١١، تحقيق وتعلق: موفق فوزي جبر، الطبعة الأولى ٥١٤١٠/ ١٩٩٠م، دار الهجرة بيروت.

١٩ــ الإصابة في معرفة الصحابة، للإمام الحافظ أحمد بن علي بن حجرالعسقلاني رحمه الله تعالى، المتوفى٥٨٥٢، دار الفكر، بيروت، الطبعةالأولى: ٥١٣٩٨/١٩٧٨م.

٢٠ــ إصلاح غلط المحدثين، للإمام أبي سليمان حمد بن محمد الخطابي البستي رحمه الله تعالى، المتوفى ٥٣٨٨، تحقيق: الدكتور حاتم صالح الضامن، الطبعة الثانية ٥١٤٠٥/ ١٩٨٥م، مؤسسة الرسالة.

٢١ــ أصول الفقه الإسلامي للدكتور وهبة الزحيلي حفظه الله تعالى، دار الفكردمشق، الطلبة الأولى ٥١٤٠٦/١٩٨٦م.

٢٢ــ إعانة الطالبين على حل ألفاظ فتح المعين، لأبي بكر بن محمد شطاالدمياطي المعروف بالبكري، رحمه الله تعالى، المتوفى بعد ٥١٣٠٢، الطبعة الأولى ٥١٤١٨/ ١٩٩٧م، دار الفكر بيروت.

٢٣ــ أعلام الحديث في شرح صحيح البخاري، للإمام المحدث أبي سليمان حمد بن محمد الخطابي رحمه الله تعالى، المتوفى٥٣٨٨، مركز إحياء التراث الإسلامي، جامعة أم القرى، مكة المكرمة.

٢٤ــ الاغتباط بمن رمي من الرواة بالاختلاط، للإمام برهان الدين إبراهيم بن محمد سبط ابن العجمي رحمه الله تعالى، المتوفى ٥٨٤١ تحقيق: علاء الدين علي رضا(باسم نهاية الاغتباط) الطبعة الدولى ٥١٤٠٨/ ١٩٨٨م، دار الحديث القاهرة.

٢٥ــ إكمال المعلم بفوائد مسلم، للإمام الحافظ أبي الفضل عياض بن موسى بن عياض اليحصبي رحمه الله تعالى، المتوفى ٥٥٤٤، تحقيق: الدكتور يحيى إسماعيل،دار الوفاء للطباعة والنشر والتوزيع، ط: ٥١٤١٩/ ١٩٩٨م.

٢٦ــ إكمال تهذيب الكمال، للعلامة الحافظ علاء الدين مغلطاي بن قليج بن عبد الله الحنفي رحمه الله تعالى، المتوفى ٥٧٦٢، الفاروق الحديثة للطباعة والنشر، القاهرة، الطبعة الأولى: ٥١٤٢٢/ ٢٠٠١م.

٢٧ــ آكام المرجان في أحكام الجان، للإمام أبي عبدالله بدرالدين محمد بن تقي الدين عبد الله الشبلي الدمشقي الحنفي، رحمه الله تعالى، المتوفى ٥٧٦٩، مكتبة القوآن القاهرة.

٢٨ــ إكمال إكمال المعلم شرح صحيح مسلم، لأبي عبدالله محمد بن خلفة الوشتاني الأبي- المالكي، رحمه الله تعالى، المتوفى ٨٢٧ھ أو ٨٢٨ھ، دار الكتب العلمية، بيروت.
٢٩ــ الإلزامات والتتبع على الصحيحين، للإمام أبي الحسن علي بن عمر بن أحمد المعروف بالدار قطني، رحمه الله تعالى، المتوفى ٣٨٥ھ، تحقيق: أبي عبدالرحمن مقبل بن هادي الوادعي، الطبعة الثانية ١٤٠٥ھ/ ١٩٨٥م.
٣٠ــ الانتقاء في فضائل الأئمة الثلاثة الفقهاء: مالک بن أنس ومحمد بن إدريس الشافعي وأبي حنيفة، للإمام الحافظ أبي عمريوسف بن عبدالبر الأندلسي، رحمه الله تعالى، المتوفى ٤٩٣ھ، اعتنى به الشيخ عبد الفتاح أبوغدة رحمه الله تعالى، الطبعة الأولى ١٤١٧ھ/ ١٩٩٧م، مكتب المطبوعات الإسلامية بحلب/ دار البشائر الإسلامية بيروت.
٣١ــ الأنساب، للإمام أبي سعد عبدالكريم بن محمد بن منصور التميمي السمعاني رحمه الله تعالى، المتوفى ٥٦٢ھ، تعليق: عبدالله عمرالبارودي، ٥٦٢ھ، دار الجنان، بيروت الطبعة الأولى: ١٤٠٨ھ/ ١٩٨٨م.
٣٢ــ إنسان العيون في سيرة الأمين المامون، المعروف بالسيرة الحلبية، لأبي الفرج نور الدين علي بن إبراهيم بن أحمد الحلبي الشافعي رحمه الله تعالى، المتوفى: ١٠٤٤ھ، دار الكتب العلمية، بيروت،ط: ٢٠٠٨م.
٣٣ــ الإنصاب في معرفة الراجح من الخلاف على مذهب الإمام المبجل أحمد بن حنبل، لشيخ الإسلام علاء الدين أبي الحسن علي بن سليمان المرداوي، رحمه الله تعالى، التموفى ٨٨٥، تصحيح وتحقيق: محمد حامد الفقي، الطبعة الأولى ١٣٧٤ھ/ ١٩٥٥م.
٣٤ــ أوجزالمسالک إلى موطأمالک، للإمام المحدث شيخ الحديث محمد زكريا الكاندهلوي المدني رحمه الله تعالى، التموفى ١٤٠٢ھ، تحقيق: الدكتور تقي الدين الندوي، دار القلم، دمشق، الطبعة الأولى: ١٤٢٤ھ/ ٢٠٠٣م.
٣٥ــ الأوسط في السنن والإجماع والاختلاف، للإمام أبي بكرمحمد بن إبراهيم بن المنذر النيسابورى رحمه الله تعالى، المتوفى سنة ٣١٩ھ، تحقيق: الدكتور أبوحماد صغيرأحمد بن محمد حنيف، دار طيبة، الرياض، ط: ١٤٠٥ھ/ ١٩٨٥م.
٣٦ــ البحرالرائق شرح كنز الدقائق، للإمام زين الدين بن إبراهيم بن نجيم رحمه الله تعالى، المتوفى ٩٦٩ھ أو ٩٧٠ھ، مكتبة رشيدية كوئتة.

البحر الزخار (انظر: مسند البزار).
٣٧ـ بداية المجتهد ونهاية المقتصد، للإمام القاضي أبي الوليد محمد بن أحمد بن محمد بن أحمد بن رشد المالكي القرطبي رحمه الله تعالى، المتوفى ٥٥٩٥ تحقيق: علي محمد معوض وعادل أحمد عبد الموجود، الطبعة الثانية: ١٤٢٤ه/ ٢٠٠٣م. دار الكتب العلمية، بيروت.
٣٨ـ البداية والنهاية، للإمام الحافظ أبي الفداء إسماعيل بن كثير الدمشقي رحمه الله تعالى، المتوفى ٧٧٤ه الطبعة الثانية ١٩٧٧م، مكتبة المعرف، بيروت.
٣٩ـ بدائع الصنائع في ترتيب الشرائع، للإمام علاء الدين أبي بكر بن مسعود الكاساني الحنفي رحمه الله تعالي، المتوفى ٥٥٨٧ ايچ ايم سعيد كمبني كراتشي.
٤٠ـ بذل المجهود في حل سنن أبي داود، للإمام المحدث الكبير الشيخ خليل أحمد السهار نفوري رحمه الله تعالى، المتوفى ١٣٤٦ه، تعليق: الدكتور تقي الدين الندوي، مركز الشيخ أبي الحسن الندوي للبحوث والدراسات الإسلامية، الهند، الطبعة الأولى: ١٤٢٧ه/٢٠٠٣م.
٤١ـ بغية الألمعي في تخريج الزيلعي (تعليقات نصب الراية) للشيخ المحدث عبد العزيز السهالوي، رحمه الله تعالى، المتوفى ١٣٥٩ه/ ١٩٤٠م، بعناية الشيخ محمد عوامة، دار القبلة جدة.
٤٢ـ البناية شرح الهداية، للإمام المحدث الفقيه العلامة محمود بن أحمد بن موسى بن أحمد بن الحسين، المعروف ببدر الدين العيني الحنفي رحمه الله، المتوفى ٨٥٥ه، دار الكتب العلمية، بيروت، الطبعة الأولى: ١٤٢٠ه/١٩٩٩م.
٤٣ـ تاج العروس من جواهر القاموس للعلامة اللغوي المحدث الفقيه أبي الفيض السيد محمد بن محمد المعروف بالمرتضى الزَّبيدي رحمه الله تعالى، المتوفى ١٢٠٥ه، دار مكتبة الحياة بيروت.
٤٤ـ تاريخ أسماء الثقات للإمام عمر بن أحمد بن عثمان المعروف بابن شاهين رحمه الله تعالى، المتوفى ٣٨٥ه، تحقيق: صبحي السامرائي الطبعة الأولى ١٤٠٤ه/ ١٩٨٤م، الدار السلفية، الكويت.
٤٥ـ تاريخ الإسلام ووفيات المشاهير والأعلام، للإمام شمس الدين أبي عبدالله محمد بن أحمد بن عثمان بن قايماز الذهبي الدمشقي رحمه الله تعالى، المتوفى ٧٤٨ه، تحقيق: مصطفى عبدالقادر عطا، دار الكتب العلمية، بيروت، الطبعة الأولى: ١٤٢٦ه/٢٠٠٥م.

٤٦ــ التاريخ الكبير، للإمام محمد بن إسماعيل بن إبراهيم الجعفي البخاري رحمه الله تعالى، المتوفى ٢٥٦ھ، دار الكتب العلمية بيروت.
٤٧ــ التاريخ الكبير لأمير المؤمنين في الحديث محمد بن إسماعيل بن إبراهيم الجعفي البخاري رحمه الله تعالى، المتوفى ٢٥٦ھ، دار الكتب العلمية بيروت.
٤٨ــ تاريخ بغداد أو مدينة السلام، للإمام الحافظ أبي بكر أحمد بن علي بن ثابت المعروف بالخطيب البغدادي رحمه الله تعالى، المتوفى٤٦٣ھ، تحقيق: مصطفى عبدالقادرعطا، دارالكتب العلمية، بيروت، الطبع الثانية: ١٤٢٥ھ/ ٢٠٠٤م.
٤٩ــ تاريخ مدينة دمشق وذكر فضلها وتسمية من حلها من الأماثل، للإمام الحافظ أبي القاسم علي بن الحسن بن هبة الله بن عبدالله الشافعي، المعروف بابن عساكر، رحمه الله تعالى، المتوفى٥٧١ھ، تحقيق:محب الدين أبي سعيد العمري دارالفكر، بيروت، ١٤١٥ھ/ ١٩٩٥م.
٥٠ــ تاريخ يحيى بن معين للدارمي، للإمام يحيى بن معين بن عون المري، رحمه الله تعالى، المتوفى ٢٣٣ھ، رواية عثمان بن سعيد الدارمي، رحمه الله تعالى، المتوفى ٢٨٠ھ، تحقيق: الدكتور أحمد محمد نورسيف، دار المأمون للتراث.
٥١ــ تاريخ يحيى بن معين للدوري، للإمام يحيى بن معين بن عون المري، رحمه الله تعالى، المتوفى ٢٣٣ھ، رواية أبي الفضل العباس بن محمد بن حاتم الدوري، رحمه الله تعالى، المتوفى ٢٧١ھ، تحقيق: عبدالله أحمد حسن، دار القلم بيروت.
٥٢ــ تأنيب الخطيب على ماساقه في ترجمة أبي حنيفة من الأكاذيب، للإمام محمد زاهدبن الحسن الكوثري رحمه الله تعالى، المتوفى ١٣٧١ھ طبعة ١٤١٠ھ/ ١٩٩٠م.
٥٣ــ تجريد أسماء الصحابة، للحافظ شمس الدين أبي عبد الله محمد بن أحمد بن عثمان بن قايماز الذهبي، رحمه الله تعالى، المتوفى ٧٤٨ھ، دار المعرفة بيروت.
٥٤ــ تحريرتقريب التهذيب، للدكتور بشارعواد معروف والشيخ شعيب الأرنؤوط، مؤسسة الرسالة، بيروت، الطبعة الأولى: ١٤١٧ھ/١٩٩٧م.
٥٥ــ تحفة الأشراف بمعرفة الاطراف، للحافظ المتقين جمال الدين أبي الحجاج يوسف بن الزكي عبد الرحمن بن يوسف المزّي رحمه الله تعالى، المتوفى ٧٤٢ھ، تحقيق: عبد الصمد شرف الدين، المكتب الإسلامي، بيروت الطبعة الثانية ١٤٠٣ھ/ ١٩٨٣م.

٥٦ـ تحفة الباري شرح صحيح البخاري، للإمام شيخ الإسلام أبي يحيى زكريا بن محمد الانصاري الشافعي رحمه الله تعالى، المتوفى ٥٩٢٦، الطبعة الأولى: ٥١٤٢٥/ ٢٠٠٤م. دار الكتب العلمية، بيروت/ دار ابن حزم، بيروت.

٥٧ـ الترغيب والترهيب للإمام عبد العظيم بن عبد القوي المنذري، رحمه الله تعالى، المتوفى ٥٦٥٦، الطبعة الثالثة ٥١٣٨٨/١٩٦٨م، دار إحياء التراث العربي بيروت.

٥٨ـ التعديل والتجريح لمن خرج له البخاري في الجامع الصحيح للإمام أبي الوليد سليمان بن خلف بن سعد الباجي رحمه الله تعالى، المتوفى ٥٤٧٤، تحقيق الدكتور أبي لبابة حسين، الطبعة الأولى ٥١٤٠٦/ ١٩٨٦م، دار اللواء، الرياض.

٥٩ـ تعريف أهل التقديس بمراتب الموصوفين بالتدليس، للحافظ أحمد بن علي بن حجر العسقلاني رحمه الله تعالى، المتوفى ٥٨٥٢، تحقيق عاصم عبدالله القريوتي، الطبعة الأولى ٥١٤٠٣/ ١٩٨٣م، مكتبة المنار، عمان.

٦٠ـ التعليق الممجد على موطا الإمام محمد، للعلامة الفقيه المحدث محمد عبد الحي اللكنوي رحمه الله تعالى ، المتوفى ٥١٣٠٤، نور محمد أصح المطابع كراتشي.

- التعليق الممجد، بتحقيق الدكتور تقي الدين الندوي، الطبعة الأولى ٥١٤١٢/١٩٩١م، دار السنة والسيرة بومبائي/ دارالقلم دمشق.

٦١ـ تعليقات الإمام المحدث محمد زكريا الكاندهلوي رحمه الله تعالى، المتوفى ٥١٤٠٢، على بذل المجهود في حل سنن أبي داود، للإمام المحدث الكبير الشيخ خليل أحمد السهارنفوري رحمه الله تعالى، المتوفى ٥١٣٤٦، تحقيق: الدكتور تقي الدين الندوي، مركز الشيخ أبي الحسن الندوي للبحوث والدراسات الإسلامية، الهند، الطبعة الأولى: ٥١٤٢٧/ ٢٠٠٦م.

٦٢ـ تعليقات تهذيب الكمال، الدكتوربشار عواد معروف، مؤسسةالرسالة، بيرون، ٥١٤١٣/ ١٩٩٢م

٦٣ـ تعليقات على الأنساب، عبدالله عمر البارودي، دار الجنان، بيروت، الطبعة الأولى: ٥١٤٠٨/ ١٩٨٨م.

١ـ تعليقات على المحلى، للشيخ المحقق أحمد محمد شاكر رحمه الله تعالى، المتوفى ٥١٣٧٧، إدارة الطباعة المنيرية بمصر٥١٣٥٢.

